فَسْئَلُوْا أَهْلَ الذِّكْرِ إِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ

فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاویٰ فریدیه

پښتو نهم جلد


افادات

محدث کبیر فقیہ العصر مفتی اعظم عارف باللہ مولانا مفتی محمد فرید رحمہ اللہ

جامعہ دار العلوم حقانیہ اکوڑہ خٹک


تخریج او ترتیب — مفتی انور شاه، مفتی احمد عباس (کرک)

ترجمه او کمپوزنگ — مولانا عبد المنان صاحب مدظله، مولانا نجم الرحمن فضلي مدظله

زیر سرپرستی — مولانا حافظ حسین احمد صدیقي نقشبندی
مهتمم دار العلوم صدیقیه زروبی ضلع صوابی


جدید مکتبه رشیدیه

جاده میوند سرچوک کابل
0782690850

محله جنگی قصه خوانی پشاور
091-2580074

**دکتاب نوم:** فتاوی دیوبند پاکستان المعروف بفتاوی فریدیه (**نهم جلد**)

**افادات:** محدث کبیر فقیه العصر مفتی اعظم عارف بالله مولانا
مفتی محمد فرید مجددی زروبی رحمه الله
شیخ الحدیث وصدر الافتاء، جامعه دار العلوم حقانیه اکوړه خټک

**ترتیب او تخریج:** مفتی انورشاه، مفتی احمد عباس (کرک)
دار الافتاء دار العلوم صدیقیه

**مترجمین:** مولانا عبد المنان صاحب مدظله، مولانا نجم الرحمن فضلی مدظله

**تصحیح:** مفتي محمد یعقوب نائل

**ستنګ:** دار الترجمه او کمپوزنګ سنتر عبد الغنی پلازه محله جنګی پشاور

**مخونه:** ۵۹۲

**دچاپ کال:** اګست ۲۰۱۸ء مطابق ۱۴۳۹ھ

**ناشر**

جدید مکتبه رشیدیه

محله جنګی قصه خوانی پشاور 091-2580074

**دکتاب تر لاسه کولو ځایونه**

| | | | |
|---|---|---|---|
| (۱) پیښور | (۵) پروان | (۹) جلال آباد | (۱۳) لوګر |
| (۲) اکوړه خټک | (۶) کندوز | (۱۰) قندهار | (۱۴) خوست |
| (۳) کوټه | (۷) غزنی | (۱۱) بغلان | (۱۵) کابل |
| (۴) فاریاب | (۸) مزارشریف | (۱۲) لشکرګاه | جاده سرچوک |

# د مضامينو فهرست

| صفحه | مضمون |
|---|---|

## باب اللباس والزينة

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |



## باب الشعر

| مضمون | صفحه |
|---|---|



## باب الأسماء

| مضمون | صفحه |
|---|---|



## باب الختان



## باب الضیافة و إجابة الدعوة

| مضمون | صفحه |
|---|---|



## باب السلام

## باب التداوی والمعالجة

| مضمون | صفحه |
|---|---|



## باب الرياضة البدنية



## باب الأشربة

| مضمون | صفحه |
|---|---|

## باب الرشوة

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |



## باب أموال اليتامى



## باب التصوير

## باب الغناء ورسومات النکاح

## باب الکذب

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |



## باب الشتم

| صفحه | مضمون |
|---|---|



## باب الوعد

| صفحه | مضمون |
|---|---|



## باب حقوق الوالدين وعقوقهما

| مضمون | صفحه |
|---|---|
| مطلقه مور ته د روپیو په ورکولو سره د پلار ناراضه کېدل | ۳۹۸ |
| د مور وهونکی او هغې ته د بد معاش او کنجرې ویونکی کس فاسق دی | ۳۹۹ |
| د مال برباد کوونکي فضول خرچه او د نافرمان | ۴۰۰ |
| زوی له میراث څخه محرومه کول | ۴۰۰ |
| پلار ته کنځل کول او هغه ته چې (په تا به | ۴۰۱ |
| ګولی یخه کړم، د الفاظو ویونکي کس حکم | ۴۰۱ |
| پلار ته کافر، او مور ته د کنجرې او فحش الفاظو ویونکي زوی حکم | ۴۰۲ |
| پلار ته د کافر، ظالم او سیک ویونکي کس حکم | ۴۰۳ |
| د پلار وهونکي او زه تا له شپږ ویشتو کلونو راهیسې | ۴۰۴ |
| خنزیر بولم د داسې الفاظو ویونکي زوی حکم | ۴۰۴ |
| د مور وهونکي کس سره پریکون کول | ۴۰۵ |
| د عاق امامت او له هغه سره د دوستانه تعلقاتو ساتلو حکم | ۴۰۶ |
| پلار ته د کنځل کوونکي او بې وجې تنګوونکي حکم | ۴۰۷ |
| دوالدینو بې عزتي کوونکي زوی عاق کیدل له جایداد څخه محرومه کیدل | ۴۰۸ |
| مورپلارته کنځل کوونکي، وهونکي اود ناوړه الفاظوویونکي کس حکم | ۴۰۹ |
| د والدینو د اجازې پرته د علم حاصلولو مسئله | ۴۱۰ |
| د مور په وهلو او کنځل کولو سره په نکاح باندې اثر نه پریوځي | ۴۱۲ |
| له پلار سره په ناوړه چلند کنځل کولو او غیره | ۴۱۳ |
| سره زوی له میراث څخه محرومه کېدی نه شي | ۴۱۳ |
| دوالدینو له اجازې پرته تبلیغ ته د تلو مسئله | ۴۱۴ |

| مضمون | صفحه |
|---|---|



## باب حقوق الأستاذ



## باب توهین الامام والعلماء

## باب ختم القرآن وتعليمه وآدابه والأجرة عليه

| صفحه | مضمون |
|---|---|



## باب آداب الکواغذ



## باب التوبة

## باب الأمر بالمعروف والنهی عن المنكر

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |

## باب ترک الموالات

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |



## باب أحكام الآلات الجديدة

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |

## باب مسائل الکهرباء وعدّادها



## باب مسائل البیشی



## باب التصرف في الملکیة

الله الله

# فتاوی فریدیہ

## نهم جلد

## باب اللباس والزينة

الله الله

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

قَالَ اللهُ تَبَارَکَ وَتَعَالٰی

قُلۡ مَنۡ حَرَّمَ زِيۡنَةَ اللّٰهِ الَّتِيۡ اَخۡرَجَ لِعِبَادِهٖ وَالطَّيِّبٰتِ مِنَ الرِّزۡقِ، الآيَة.

(سورة الاعراف)

# باب اللباس والزينة

## مسنون لباس او د پګړی تعریف

**سوال:** علماء کرام دې مسئلې باره کې څه وايي چې نن سبا طالبان بلکې عالمان هم يو نيم ګز پګړۍ تړي ځينې زېړ رنګ، ځينې سپين رنګ او ځينې شين رنګ، په دې اړه څه شرعي دليل شته؟ او جناب دا هم وليکئ چې په کومو کتابو کې ددې يادونه شوې، ځکه چې پېښور او باړه کې په همدې جګړه ده. ځينې عالمان وايي، چې دا خو بلکل پګړۍ نه دي، شرعي پګړۍ خو درې ګزه وي، نو مونږ ته ډاډ من ځواب راکړئ؟ بينوا توجروا

**المستفتي** طالب العلم ثمرګل آفريدي قمبر خېل ضلع پشاور... ۱۹۶۹ع/۱/۲۷.

**الجواب:** مولانا لکهنوي رحمه الله تعالى دعمامې (پګړۍ) معنا داسې ليکلې ده چې عمامه هغه ټوټه ده کومه چې په سر باندې تړل کيږي، (التعليق الممجد) (۱) نو دا رومال هم عمامه ده البته عرف سليماني او نورو کې دې ته عمامه نه ويل کيږي او ښکاره شوه چې مسنون لباس کميس (۲) پګړۍ (۳)

---

۱) قال العلّامة عبدالحی اللكنوی: العمامة بكسر العين ما يعتم به الرجل رأسه.
(التعليق الممجّد على موطّا محمد رحمه الله تعالى: ۷۰)

وفي قواعد الفقه: العمامة بالكسر ما يلفّ على الرأس.
(مجموعة قواعد الفقه ۳۸۹)

۲) عن أم سلمة رضي الله عنها قالت: كان أحب الثياب إلى رسول الله ﷺ القميص.
(شمائل الترمذي، باب ماجاء في لباس رسول الله ﷺ ص ۳۶)

۳) عن جابر رضي الله تعالى عنه: أن النبي ﷺ دخل... (باتي حاشيه په بل مخ)

څادر[۱] وغیره دي، که هغه دپېغمبر لباس سره برابر وي که کم وي او یا هم زیات وي. **وهوالموفق**

## د شعار تعریف او کالر لګول

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې کمیس کې کالر لګول څنګه دي؟ د «من تشبّه بقوم فهو منهم» کې راځي که نه؟ دلته یو سړی وایي چې د کالر لګوونکو حشر به د کافرانو سره وي، مهرباني به مو وي، ښه تحقیق وکړئ، چې کالر شعار دی او که نه؟ د شعار تعریف او د حدیث لفظي ترجمه په پوره وضاحت سره ولیکئ؟ أجرکم علی الله.

**المستفتي:** یوسف خان سرډېری چارسده

**الجواب:** «من تشبه بقوم[۲] فهو منهم» حدیث او د الله تعالی دا قول «ولا ترکنوا الی الذین ظلموا»[۳] د ایت مقصد دا دی چې فاسقانو د رغبت او میلان له وجې چې کوم امر کیږي نو هغه ناروا او منکر وګرځي او د کوم قوم شعار عملي کول د رغبت او میلان ښکاره دلیل دی؛ نو څکه یې استعمال ناروا دی[۴]، کالر د نکټایي له لوازمو څخه دی کوم چې د نصاراوو قومي

---

(د حاشیې پاتې برخه) عام الفتح مکة وعلیه عمامة سوداء۔
(سنن أبي داؤد ۲:۵۶۳، باب في العمائم، کتاب اللباس)

۱) عن أنس بن مالک رضي الله عنه قال: کان أحب الثیاب إلی رسول الله ﷺ یلبسه الحبرة۔ (شمائل الترمذي ص ۳۹، باب ماجاء في لباس رسول الله ﷺ)

۲) عن ابن عمر رضي الله تعالی عنه قال قال رسول الله ﷺ: من تشبه بقوم فهو منهم۔
(سنن أبي داؤد ۲:۵۵۹ کتاب اللباس، باب في لبس الشهرة)

۳) (سورة هود، آیت نمبر ۱۱۳، پاره: ۱۲)

۴) قال العلامة محمّد طاهر رحمه الله تعالی: من تشبه ...(پاتې حاشیه په بل مخ)

او مذهبي تنبه ده، نو ځان ساتنه ترې ضروري ده،بس والسلام. وهوالموفق

## نارينه ته کوم ډول وربښم حرام دي

**سوال:** څه وايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې کوم ډول وربښم حرام دي؟ بينوا توجروا

المستفتي محمد منصور وزيرستاني

**الجواب:** وربښم صرف له چنجي نه د راوتلي جنس نوم دی[۱] نو که ددې لنګی سدا (پلنوالي) او لحمه (اوږداولي) يا صرف لحمه (اوږد والی) يې د وربښمو وي نو نارينه وو ته يې استعمالول حرام دي.[۲] وهو الموفق

## پتلون نکټايي اچول او د لمانځه حکم

**سوال:** څه وايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې پتلون او نيکټايي اچول په اسلام کې منع دي او که نه؟

---

(د حاشيې پاتې برخه) بقوم فهو منهم أی من تشبه بالكفار في اللباس وغيره أو بالفساق أو بأهل التصوف أو بالصلحاء فهو منهم۔

(مجمع بحار الأنوار ۳:۱۷۸، باب الشين مع الباء)

۱) وفي البناية: الحرير هو الإبريسم المطبوخ وسمي الثوب المتخذ منه حريرا وفي جمع التفاريق: الحرير ما كان مصمتا أو لحمته حرير۔

(البناية في شرح الهداية ۱۴:۴۳۶ كتاب الكراهية، فصل في اللبس)

۲) قال العلامة الشامي رحمه الله تعالىٰ: إعلم أن لبس الحرير لا يجوز بلاضرورة مطلقًا فما كان سداه غير حرير ولحمته حرير يباح لبسه في الحرب للضرورة۔

(ردالمحتار ۵:۲۵۱، كتاب الحظر والإباحة، فصل في اللبس)

وفي السراجية: يكره لبس الحرير للذكر صغيرا كان أو كبيرا...يكره مالحمته حرير وسداه غير حرير۔

(فتاوى سراجيه ص ۳۲۷-، ۳۲۸ كتاب الكراهية والإستحسان، باب اللبس)

که يو کس تول عمر دا ډول جامې اغوندي نو څه حکم لري؟
او په دا سې جامه کې لمونځ کول روا دي که نه؟ بينوا تو جروا

المستفتي: سيف الرحمن پشاور يونيورستي

**الجواب:** پتلون که د ذهني غلامۍ پر بناء نه وي نو مباح ده، (١) او نکټايي خو مذهبي تشبه ده (په صليبي شکل باندې مبني دی) ځکه يې استعمال ناروا دی. (ورد في الحديث مثله) (٢) او لمونځ په دا سې جامه کې له مکرو والي سره روا ده. (٣) **وهوالموفق**

---

١) وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله ولا يضر التصاقه) أى بالألية مثلًا... وأمّا لو كان غليظا لا يرى منه لون البشرة إلّا أنه التصق بالعضو وتشكل بشكله فصار شكل العضو مرئيا فينبغي أن لا يمنع جواز الصلوة لحصول الستر.
(رد المحتار ١:٣٠٢ باب شروط الصلوة، مطلب في النظر إلى وجه الأمرد)

وفي المرقاة: (قال رسول الله ﷺ: من تشبه بقوم فهو منهم) أى من شبه نفسه بالكفار مثلًا في اللّباس وغيره أو بالفسّاق أو بالفجّار أو بأهل التصوّف أو الصلحاء الأبرار (فهو منهم) أى في الإثم والخير. (مرقاة المفاتيح ٨:٢٥٥، كتا ب اللباس، مسئلة التشبه)

٢) عن عائشة رضي الله تعالى عنها: أن رسول الله ﷺ كان لايترك في بيته شيئا فيه تصليب أى صورة الصليب التي للنصارى من نقش في ثوب أو غيره إلّا قضبه، ولفظ البخاري إلّا نقضه أى قطعه وكسره وغير صورة الصليب.
(بذل المجهود ٥:٦٨، كتاب اللباس، باب الصليب في الثوب)

٣) وقال العلامة الدكتور وهبة الزحيلي: يكره في الصّلاة ما يأتي ... ٣٠: الصّلاة بثياب فيها تصاوير الحيوان أو الإنسان ... ويكره الصليب ... (پاتې حاشيه په بل مخ)

## د عامې (پګړۍ) شرعي حیثیت او بې عامې د لمانځه حکم

**سوال:** څه وايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې زمونږ امام د جمعې په ورځ تقرير کې دخولۍ مسئله بيان کړه. فتوى بې ولګوله چې صرف خولۍ په سر کولو سره لمونځ نه کیږي. مهرباني وکړئ. تاسو صاحبان مونږ ته دا مسئله تفصيلي بيان کړئ؛ بينوا توجروا

**المستفتي:** صوفي اشرف حسن خټک رجمنټ ایف ایف کهاريان چهاونی.

**الجواب:** مسلمانانو ته پګړۍ تړل سنت دي، (۱) که لمانځه کې وي.که د لمانځه نه بهر وي، که امام وي او که مقتدي. نو بې پګړۍ لمونځ مکروه تنزيهي يعنې خلاف اولى دى او غوره

---

(د حاشيې پاتې برخه) في ثوب لحديث عائشة أن رسول الله ﷺ كان لايترک في بيته شيئا فيه تصاليب إلّا نقضه۔

(الفقه الإسلامى وأدلته، ۲:۹۷۴، المبحث الرابع، مكروهات الصّلاة)

۱) قال العلامة أنور شاه الكشميري رحمه الله تعالى: شيخ عبدالحق رحمه الله تعالى در ترجمه مشكوة گفته بدانكه پوشيدن عمامه سنت است واحاديث بسيار در فضل آن وارد شده۔(العرف الشذي على هامش سنن الترمذي ۱:۴۳۶، أبواب اللّباس، باب ماجاء في العمامة السوداء)

وقال الشّيخ محمّد زكريا رحمه الله تعالى: قال المناوى: العمامة سنة لاسيما للصّلوة وبقصد التجمل لأخبار كثيرة۔

(خصائل نبوي شرح شمائل ترمذي ص ۶۷، باب ما جاء في عمامة النبي ﷺ)

نه دی (١) البته لمونځ یې صحیح او درست دی (٢) بس۔ وهوالموفق

## د پګړې اندازه، کیفیت او دپرېښودونکي حکم

**سوال:** څه وايي علماء کرام په دې مسئله کې چې دپګړې شرعي حیثیت څنګه دی. بینوا توجروا

**المستفتي:** عبدالمعبود دارچوټا لاهور ... ۶/ محرم ۱۳۹۶ هـ

**الجواب:** په اتفاق سره پګړې په سر کول سنت ده. څکه چې نبي ﷺ پګړې تړلې او نورو ته یې د په سر کولو ترغیب ورکړی، فليراجع الى كتاب اللباس في المشكوة (٣) وأبي داود و غيره (۴)

---

١) وفي المنهاج: وبالجملة أن ترک العمامة ترک الأولى نعم! جاز ترک مالا يكون مطلوبًا شرعًا عند مصلحة العوام۔

(منهاج السنن شرح جامع السنن ٢:٢٢٥، باب ماجاء في الصلوة في الثوب الواحد)

٢) قال العلامة عبد الحي اللكنوي رحمه الله تعالى: وقد ذكروا أن المستحب أن يصلى في قميص وإزار وعمامة ولا يكره الإكتفاء بالقلنسوة، ولا عبرة لما اشتهر بين العوام من كراهته ذلک۔

(عمدة الرعاية على هامش شرح الوقاية ١:١٩٨، قبيل باب الوتر والنوافل)

٣) عن عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنهما قال: عَمَّمَنِى رسول الله ﷺ فسدلها بين يدىّ ومن خلفي، وعن ركانة عن النبي ﷺ قال: فرق ما بيننا وبين المشركين العمائم على القلانس۔ (مشكوة المصابيح ص ٣٧۴، كتاب اللباس)

۴) عن جابر رضي الله عنهما أن النبي ﷺ دخل عام الفتح مكة وعليه عمامة سوداء ... وعن جعفر بن عمرو بن حريث عن أبيه قال رأيت النبي ﷺ على المنبر وعليه عمامة سوداء قد ارخى طرفها بين كتفيه۔

(سنن أبي داؤد ٢:٥٦٢، كتاب اللباس، باب في العمائم)

خو د پګړۍ اندازه له سهي رواياتو څخه ثابته نه ده. د ځينو علماوو څخه روايت دی چې د نبي ﷺ یوه پګړۍ اوه ګزه (درې نيم انګريزي) ګزه وه بله دولس ګزه (شپږ انګريزي ګزه) او په حاوي کې يې درې ګزه هم روا ګڼلې ده.
فليراجع إلى هامش أبي داؤد ۲:۵۶۲ کتاب اللباس (۱)
توره پګړۍ مستحب ده او سپينه هم مستحسنه ده، البته سره او زيړه مکروه ده .د ردالمحتار څخه اخيستل شوې. ۵:۶۶۰ (۲)، ۳۱۴ (۳)
په پګړۍ کې لمونځ ادا کول په هر حال کې سنت دی. (۴) البته پرېښودل يې مکروه تحريمي نه دي، په دې حديث کې

---

۱) وفي حاشية أبي داؤد: قال السيوطى في الحاوى في الفتاوى وأمّا مقدار العمامة الشريفة فلم يثبت في حديث، وقد روى البيهقي في شعب الإيمان عن ابن سلام قال سألت ابن عمر كيف كان النبي ﷺ يعتمّ قال كان يدير العمامة على رأسه ويغرزها من وراء ه ويرسل له ذوابة بين كتفيه، وهذا يدلّ على أنها عدة أذرع، والظاهر أنها كانت نحو العشرة أو فوقها بيسير إنتهى، أقول ولا أدري هذا الظاهر الذي زعمه فإن كان الظهور من هذاالحديث الذي ساقه بإعتبار ما فيه من ذكر الإدارة والغرز وإرسال الذوابة، فهذه الأوصاف تحصل في عمامة دون ثلاثة أذرع۔
(التعليق المحمود حاشية أبي داؤد ۲:۵۶۴ حاشيه نمبر ۱، كتاب اللباس، باب في العمائم)

۲) وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وندب لبس السوداء وإرسال ذنب العمامة بين كتفيه ويكره لبس المعصفر والمزعفر لقول ابن عمر رضي الله تعالى عنهما: ونهانا رسول الله ﷺ عن لبس المعصفر، وقال إياكم والأحمر فإنه زيّ الشيطان۔
(در مختار مختصراً ۵:۵۳۳، مسائل شتّى بعد كتاب الخنثى)

۳) وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: ويستحب الأبيض وكذا الأسود لأنه شعار بني العباس ودخل عليه الصلوة والسّلام مكّة وعلى رأسه عمامة سوداء۔
(رد المحتار ۵:۲۴۷ فصل في اللّبس، كتاب الحظر والإباحة)

۴) قال العلامة أنورشاه الكشميري رحمه الله تعالى: ... (پاتې حاشيه په بل مخ)

(من تمسك... رواه البيهقي كذا في حاشية المشكوة ١ : ٣١ (١)، وهو الموفق

## نيمه پتلون (پينټ) او پكې د تلاوت اوريدلو حكم

**سوال:** څه وايي علماء كرام په دې مسئله كې چې عام طور فوځيان د سهار په وخت كې نيم پتلون اچوي چې پكې فرض عورت پټول ناكافي وي. نو څه حكم يې دى؟ څكه چې حكومت د پي ټي ډريس (نيمه پتلون) اچولو حكم كوي. گونډې يې زياتې لوڅې وي، په همدې حال اسمبلى كې دريږي. تلاوت او حديثونه اوري، ددې باره كې شرعي حكم څه دى؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** سپاهي محمد نسيم چهونيا چهاوني نزد لاهور... ۱۹۹۰ء/۵/۲۴

**الجواب:** مناسبه نه ده. خوسخت انكار ترې كول هم مناسب نه دي څكه چې (۲)

---

(د حاشيې پاتې برخه) شيخ عبد الحق در ترجمه مشكوة گفته بدانكه بوشيدن عمامه سنت است واحاديث بسيار در فضل آن وارد شده۔

(العرف الشذى على هامش سنن الترمذي ١: ٤٣٦، باب ماجاء في العمامة السوداء، أبواب اللباس)

وفي المنهاج: أن العمامة سنّة ولها فضيلة مثل سائر السنن الزائدة۔

(منهاج السنن شرح جامع السنن ٤: ٢١٢، باب سدل العمامة بين الكتفين)

وقال الشيخ محمد زكريا رحمه الله تعالىٰ: قال المناوى العمامة سنة لا سيما للصلوة وبقصد التجمل لأخبار كثيرة۔

(خصائل نبوي شرح شمائل ترمذي ص ٦٧، باب ما جاء في عمامة النبي ﷺ)

١) (مشكوة المصابيح ٣٠، باب الاعتصام بالكتاب والسنة)

٢) قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالىٰ: وحكم العورة في الركبة أخف منه في الفخذ حتى لو رأى رجل غيره مكشوف الركبة ينكر عليه برفق ولا ينازعه إن لجّ وإن رآه مكشوف الفخذ ينكر عليه بعنف ولا يضربه إن لجّ۔

(البحر الرائق ١: ٢٦٩، باب شروط الصلوة (قوله وستر عورة وهى من تحت الخ)

ددي په عورتوالي کې د امام مالک رحمه الله خلاف شته.[۱] وهوالموفق

## ښځو ته د غټ او سپین ټیکري استعمال

**سوال:** څه وايي علماء کرام په دې مسئله کې چې اوسني دور کې مترجلانه او متؤنثانه (د نارينو او ښځو يو بل ته ورته) لباس جوړول ډېر دي. چې په اړه يې د رسول الله وعيد موجود دی (لعن الله المترجلات والمؤنثات) خو زمونږ ځای کې د جماعت اسلامي يو رکن وايي چې د ښځو دپاره سپين لباس خصوصاً ټيکری اګر که ډېر رخت وي حرام دی چې عوامو ته يې پريشاني وراچولې ده. ځکه چې زمونږ په ځای کې سپين ټيکری ډېر رواج دی. کله چې ښځې له کوره بهر وځي: نو پوښتنه دا ده چې لوی سپين ټيکری په سر کول روا دي که نا روا؟ بينوا توجروا

المستفتي: فضل.تيمر ګره دير.... ارمی ۱۹۸۴ء

**الجواب:** څنګه چې دا سپين ټيکری په عرف کې مشترک لباس دی. نو ناروا به نشو ګڼلی.[۲] وهوالموفق

---

۱) قال الدكتور وهبة الزحيلي رحمه الله تعالى: مذهب المالكية : عورة الرجل في الصلوة هي المغلظة فقط وهي السوأتان ...فليس الفخذ عورة عندهم ... والعورة بالنسبة للرؤية، للرجل ما بين السرة والركبة.
(الفقه الإسلامي وأدلته ۷۴۷،۷۴۶:۱، شروط الصلاة، الشرط الرابع : ستر العورة)

۲) قال العلامة العيني رحمه الله تعالى: وهيئة اللباس قد تختلف باختلاف عادة كل بلد، فربما لا يفترق زیّ نسائهم من رجالهم لكن تمتاز النساء بالاحتجاب والاستتار.
(عمدة القاري ۴۱:۲۲، كتاب اللباس، باب المتشبهون بالنساء الخ)
وفي شرح المجلة: العادة محكمة يعني أن العادة...(باتي حاشيه په بل مخ)

## ښځو ته د نارينو سره مشابهت

**سوال:** علماء کرام څه وايي په دې مسئله کې چې زمونږ د مروتو علاقه کې د ښځوانې زمانې لباس (کميس، پاجامه) باندې تقريباً شل گز ه رخت مصرفيږي، او نن سبا چې کوم لباس اغوستل کيږي. البته عام رواج نه دی او تقريباً اووه يا اته گزه رخت پکې مصرفيږي، دا لباس اگر که نارينوالو جامو سره مشابه دی، خو ښځينه ډول تصرفات يې پکې کړي وي، بيا دا لباس له نارينوال لباس نه ښبخي ځانگړی وي، بلکې گنډلو کې هم نارينه لباس ته ورته نه وي، البته د پاجامې ورته والی وي، خو له دومره لاس وهنو سره بيا هم مردانه پاجامه نه گڼل کيږي. نو څنگه دا ډول لباس اغوستل ښځو ته روا که ناروا دي که روا وي، نو اولنی ډول خو به اسراف نه وي؟

(۲) که د ښځينه شرعي لباس اندازه بيان کړئ نو ډېره مهرباني به مو وي؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** سيف الله مروت متعلم دارالعلوم حقانيه... ۱۵/۹/۱۹۷۰

**الجواب:** ښځو ته نارينوال لباس اغوستل او نارينو ته ښځينه لباس اغوستل ناروا دي؟ قال النبي ﷺ لعن الله المتشبهين من الرجال بالنساء و المتشبهات من النساء بالرجال (رواه البخاري بحواله مشکوة ص ۲۸۷)[۱] البته صورت مسئوله کې نه تشبه شته اونه ددې اراده، ځکه چې د ښځينه او مردانه لباس رخت غالباً جدا جدا وی، هيئت او صنعت خو به ضرور بېل وي،

---

(د حاشيې پاتې برخه) عامّة کانت أو خاصّه تجعل حکماً لإثبات حکم شرعي ... واعلم أنه يرجع في مسائل کثيرة إلى العرف والعادة حتّى جعلوا ذلک أصلًا۔ (شرح المجلة ۷۸:۱، المادة: ۳۶)

۱) (مشکوة المصابيح ۳۸۰، کتاب اللباس، باب الترجّل)

لهذا ښځو ته د دويم ډول استعمالول څه باک نه لري[۱] ځکه چې اول ډول کې اسراف نشته،[۲] او دا د مخکښنۍ زماني ښځينه لباسونه دي او له پخوا نه دا کارول کيږي[۳] وهوالموفق

## تنګ لباس اغوستل

**سوال:** څه وايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې مختلف رنګونه زره وړونکي وي ښځې يې د ډمو په څېر تنګ جوړوي. په ګرځېدو کې يې سينې او ورونونه هم ښکاري ايا شرعا دا جائز دي او که نه؟

**المستفتي** محمد ثناء الله کنوزئي... ۲۰/جولای ۱۹۷۵ع

**الجواب:** که د داډول لباس اغوستونکي ښځې کومه برخه ښکاره شي نو حکم يې واضح دی[۴]

---

۱) وقال العلامة العيني رحمه الله تعالى: وهيئة اللباس قد تختلف باختلاف عادة كل بلد فربما قوم لا يفترق زيّ نسائهم من رجالهم لكن تمتاز النساء بالاحتجاب والاستتار۔ (عمدة القاري ۲۲:۴۱، كتاب اللباس، باب المتشبهون بالنساء الخ)

۲) الإسراف: صرف الشيئ فيما ينبغي زائداً على ما ينبغي۔
(مجموعة قواعد الفقه ۱۷۷، التعريفات الفقهية)

وقال ابن عباس رضي الله تعالى عنه: كل ما شئت والبس ما شئت ما أخطأتك اثنتان سرف أو مخيلة۔
(صحيح البخاري ۲:۸۶۰، كتاب اللباس: قول الله تعالى: قُل مَن حَرّمَ زِينةَ الله ...الآية)

۳) وقال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: العادة محكمة وأصلها قوله عليه الصلوة والسّلام ما رآه المسلمون حسناً فهو عند الله حسن ... واعلم أن اعتبار العادة والعرف يرجع إليه في الفقه في مسائل كثيرة حتى جعلوا ذلك أصلًا۔(الأشباه والنظائر ص ۹۳، القاعدة السادسة)

۴) وفي المرقاة: (قال رسول الله ﷺ إياكم والتعرّى)...(باتي حاشيه په بل مخ)

او که ښځه پټه وي خو د تنګۍ له وجې داندامونو ترجماني کوي؛ نو بيا يې استعمالول حرام دي،کما في ردالمحتار ۳۲/۵ أقول مفاده أن رؤية الثوب بحيث يصف حجم العضو ممنوعة و لو كثفا.(۱) و يؤيد حديث ينظر اليها أی الى المنعوتة.(۲) **وهوالموفق**

## د سوچه يا ګډوډ ورېښمو لنګۍ استعمال

**سوال:** څه وايي علماء كرام په دې مسئله کې چې ځينې علماء وايي چې مخلوطه لونګۍ حرامه ده يعنې هغه چې څه پکښې ورېښم وي او څه تار وي ددې څه حکم دی؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** مولوي آغا جان هرنائي بلوچستان ضلع سبی....۱۳/ اکتوبر ۱۹۷۳ع

**الجواب:** که دا ورېښم له چينجيو نه لاس ته راغلي وي او په لحمه او سدا(اوږدوالي او پلنوالي) دواړو يا صرف په لحمه (اوږدوالي) کې لګېدلي وي نو استعمال يې ناروا دی. که نه نو روا دی (هدايه)(۳) و الله أعلم

(د حاشيي باتي برخه)أی احذروا من كشف العورة (فإنّ معكم)أی من الملائكة ( من لا يفارقكم إلّا عند الغائط وحين يفضی الرجل إلى أهله فاستحيوهم وأكرموهم)...قال ابن الملک فيه إنه لا يجوز كشف العورة إلا عند الضرورة ...(قال رسول الله ﷺ احفظ عورتک)أی من التكشف أو من الجماع ( إلا من زوجتک أوما ملكت يمينک)۔
(مرقاة المفاتيح ۶:۲۰۰، كتاب النكاح، باب النظر إلى المخطوبة)

۱) (رد المحتار ۵ :۲۵۸، كتاب الحظر والإباحة، فصل في النظر والمسّ)

۲) عن ابن مسعود ﷺ قال قال رسول الله ﷺ لاتباشر المرأةُ المرأةَ فتنعتها لزوجها كأنّه ينظر إليها۔(مشكوة المصابيح۔ ص ۲۶۸، كتاب النكاح، باب النظر إلى المخطوبة)

۳) وفي الهداية: لا يحلّ للرجل لبس الحرير لأن النبي ﷺ نهى عن لبس الحرير والديباج ولابأس بلبس ما سداه حرير ولحمته غير حرير كالقطن والخزفي الحرب وغيره... وما كان لحمته حريرا وسداه غير حرير ...(پاتي حاشيه په بل مخ)

## د کالر لګولو حکم

**سوال:** څه وايي علماء کرام په دې مسئله کې چې د کالر څه حکم دی؟ بينوا توجروا

**المستفتي** اسماعيل وزيرستاني .متعلم حقانيه ... ۲۶ ربيع الأول ۱۴۰۱ هـ

**الجواب:** چونکه کالر د کفارو او فاسقانو شعار دی او د طوق لعنت تتمه دہ. لهذا کالر جوړول مکروه تحريمي دي. قال الله تعالى ولا تركنوآ الى الذين ظلموا ... الآية (۱) وقال عليه الصلوة والسلام من تشبه بقوم فهو منهم .رواه أبو داود (۲) **وهوالموفق**.

## د چينجيو له وربښمو پرته د نورو وربښمو حکم

**سوال:** څه وايي علماء کرام په دې مسئله کې چې نن سبا ملتان کې درې قسمه لنګی.

---

(د حاشيې پاتې برخه) لابأس به في الحرب للضرورة ويكره في غيره لانعدامها والاعتبار للحمة على مابينا۔(الهداية ۴۵۶-۴۵۵:۴، كتاب الكراهية، فصل في اللبس)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: حاصل المسئلة على ثلاثة أوجه قال في التاتر خانية : ما لحمته غير حرير وسداه حرير يباح لبسه في حالة الحرب وغيرها، وما لحمته حرير وسداه غير حرير يباح لبسه في حالة الحرب بالإجماع ، وأما ما لحمته وسداه حرير ففي لبسه حالة الحرب خلاف بين أصحابنا۔

(ردالمحتار ۲۵۱:۵، كتاب الحظر والإباحة، فصل في اللبس)

۱) (سورة هود،آيت نمبر ۱۱۳، پاره نمبر ۱۲)

۲) سنن أبي داؤد، ۵۵۹:۲، كتاب اللباس، باب في لبس الشهرة)

وفي المرقاة ( من تشبه بقوم) أى من شبه نفسه بالكفار مثلًا في اللباس وغيره أو بالفسّاق أوالفجّار أو بأهل التصوّف والصلحاء الأبرار (فهو منهم) أى في الإثم والخير۔

(مرقاة المفاتيح ۲۵۵:۸، كتاب اللباس)

جوړيږي. لومړی بې ثار والا ده. دویمه مکس لنګۍ او دریمه وریښمي لنګۍ ده چې قیمت یې ډېر دی. د دریم قسم لنګۍ استعمال شرعا څنګه ده؟ ځینې حضرات څکه جائز ورته وایي چې دا حریر نه دی او ځینې یې ناروا بولي، غرض دا چې د وریښمو نه جوړ وي، په عرف کې ورته د وریښمو لنګۍ وایي، شرعي حکم یې وښییئ؟ بینوا تو جروا

**المستفتي:** مولوي نور احمد .لورلائي ....۱۹۹۴/۸/۱ع

**الجواب:** له چینجیو لاس ته راغلو وریښمو پرته وریښم، وریښم نه دي، ددې استعمال ممنوع نه دی.(۱) والله اعلم

## د قراقل خولۍ په سرول او د ناخن پالش خرڅولو او اخیستلو حکم

**سوال:** څه وایي علماء کرام په دې مسئله کې چې د ناخون پالش د خرڅ او اخیستنې څه حکم دی او هم د قراقل خولۍ په سرولو څه حکم دی؟ بینوا توجروا

**المستفتي:** نور زمان جنرل ستور، مردان ...۸/محرم/۱۴۰۲ھ

**الجواب:** جائز دي (دواړه) (۲) **وهوالموفق**

---

۱) وفي البحر: وفي الخلاصة لا بأس بلبس الثياب الجميلة إذا كان لا ينكر عليه فيه. (البحر الرائق ۸:۱۹۰، كتاب الكراهية، فصل في اللبس)

وفي الهندية: يحب أن يعلم أن لبس الحرير حرام على الرجال في جميع الأحوال. (فتاوى هندية ۵:۳۳۰، كتاب الكراهية، الباب التاسع في اللبس)

۲) وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: وشرط المعقود عليه ستة كونه موجوداً مالًا متقوماً مملوكاً في نفسه وكون الملك فيما يبيعه لنفسه. (ردالمحتار ۶:۴كتاب البيوع، مطلب شرائط البيع أنواع أربعة)

وفي المرقاة: وكان ربما نزع قلنسوته فجعلها...(پاتې حاشیه په بل مخ)

## ملتانی لنگی وربښمي نه دي

**سوال:** څه وايي علماء کرام په دې مسئله کې چې په ملتانی لونګی پاندې ليکلي وي چې دا خالص د وربښمو ده ددې استعمال څنګه ده؟
بينوا توجروا

**المستفتي:** عبدالوهاب فاضل حقانيه..... ۱۴۰۱ھ/۹/۷

**الجواب:** ملتانی لونګی وربښمينه نه ده، دا لونګی له اوره جوړيږي او د وربښمو له چينجي نه نه تر لاسه کيږي (۱)**وهوالموفق**

## سرې او ښځې ته دوسپينې او سرو زرو ګوته اچول

**سوال:** .......... چې دګوتې استعمال نر او ښځې ته جائز ده يا نه؟ او ښځو ته بې له سرو زرو، د سپينو زرو يا د اوسپنې ګوتمی استعمالول جائز ده يا نه؟ بينو توجروا

**المستفتي:** وزير محمد بلوچستاني متعلم حقانيه...۱۸/جماد ی الثاني۱۴۰۳ھ

**الجواب:** د اوسپنې ګوته استعمالول نر او ښځې دواړو ته مکروه ده او د سرو ګوتمی

---

(د حاشيې پاتې برخه) سترة بين يديه وهو يصلّى.(مرقاة الفاتيح ۸:۲۴۶، كتاب اللباس ، الفصل الثانى)

وفي السراجية : لبس الثياب الجميلة مباح إذا لم يتكبّر.

(فتاوى سراجية ص ۳۲۷، كتاب الكراهية والاستحسان ، باب اللبس)

۱) وفي البناية : الحرير هو الإبريسم المطبوخ وسمي الثوب المتخذ منه حريرا وفي جمع التفاريق الحرير ماكان مصمتا أو لحمته حرير.

(البناية في شرح الهداية ۱۲:۴۳۶ كتاب الكراهية ، فصل في اللبس)

صرف نارينه وو ته مكروه ده. (هنديه ۵: ۳۷۱)[۱] والله أعلم

## نارينه ته ساعت په لاس كول او كالر لګول

**سوال:** څه وايي علماء كرام په دې مسئله كې چې ساعت په لاس كول ځينې خلك ناروا ګڼي، كه هغه له ځنځير يا پټې سره وي، د هغوى دا وينا څومره صحيح ده. بينوا توجروا

المستفتي: مولنا آغا جان، هرنائي ضلع سبي، بلوچستان ۳/۱۱/۱۹۸۳

**الجواب:** څوك چې په ټاكلي وخت با ندې كارونه سرته رسوي، امام وي كه مدرس و غيره وي د هغوى لپاره ساعت په حاجت اصلي كې راځي [۲] او ساعت په لاس كول په هر حال كې روا دي [۳] وهو الموفق.

## ښځې ته د سرو يا سپينوزرو د ساعت استعمال

**سوال:** څه وايي علماء كرام په دې مسئله كې چې د سرو يا سپينو زرو ساعت يا ځنځير ښځو ته په لاس كول روا دي كه نا روا؟ بينوا توجروا

المستفتي: پرويز عبدالغني راولپنډی. ۹/۱۰/۱۹۷۲

---

۱) وفي الهندية: ويكره للرجال التختم بما سوى الفضة والتختم بالذهب حرام في الصحيح... التختم بالحديد والصفر والنحاس والرصاص مكروه للرجال والنساء جميعا. (فتاوى هندية ۵:۳۳۵، كتاب الكراهية، الباب الثامن في استعمال الذهب)

۲) الحاجة الأصلية: هي ماتدفع الهلاک عن الإنسان تحقيقا كالنفقة ودور السكنى وآلات الحرب والثياب المحتاج إليها لدفع الحر والبرد أو تقديرا كالدين فانّ المديون محتاج إلى قضاءه بما في يده من النصاب دفعاً عن نفسه الحبس الذى هو الهلاک. (مجموعة قواعد الفقه ۲۵۷)

۳) وفي الأشباه والنظائر: الحاجة تنزل منزلة الضرورة عامّة كانت أو خاصّة. (الأشباه والنظائر ۹۱، القاعدة الخامسة: الضرر يزال)

**الجواب:** كه دا ساعت له زيوراتو (ګاڼي) څخه نه وي، نو استعمال يې ناروا دی. (۱) وهو الموفق

## د سټيل د بټنې او ځنځير حكم

**سوال:** څه وايي علماء كرام په دې اړه چې د سټيل ځنځير او بټن په كميس كې لګېدلي وي څه حكم لري؟

**المستفتي:** اكبر زمان ميډيكل سټور. ميران شاه... ۲۳ شوال ۱۴۰۱هـ

**الجواب:** د سټيل بټن او ځنځير روا دی. فقهاوو چې د وسپنې استعمالول كوم ځای منع كړي هغه كې د بټن او ځنځير ذكر نشته (۲). والله اعلم

---

۱) وفي الهندية: والنساء فيما سوى الحلي من الأكل والشرب والادّهان من الذهب والفضة والقعود بمنزلة الرجال.

(فتاوى هندية ۵:۳۳۵، كتاب الكراهية، الباب العاشر في استعمال الذهب)

وفي الاختيار: ويجوز للنساء التحلي بالذهب والفضة ...ولا يجوز استعمال آنية الذهب والفضة ...وعلى هذا المجمرة والملعقة والمدهن والميل والمكحلة والمرأة ونحو ذلك، والنصوص وإن وردت في الشرب فالباقي في معناه لاستوائهم في الاستعمال ... ويستوي فيه الرجال والنساء لعموم النهي وعليه الإجماع.

(الاختيار لتعليل المختار ۱۹۷–۱۹۶:۴، كتاب الكراهية، قبيل فصل في الاحتكار)

وقال العلامة ظفر احمد عثماني رحمه الله تعالى: لكون الذهب حل لهن للزينة لا لغيرها من الاستعمالات فكذا الساعة من الذهب يجوز لبسها للنساء على اليد للزينة ولكن لا يجوز لمعرفة الوقت.

(إمداد الأحكام ۳۵۲:۴، كتاب اللباس والزينة)

۲) وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ...(پاتې حاشيه په بل مخ)

## د ضرورت پېښېدو په نيت د سرو زرو ګوتمه اچول

**سوال:** علماء کرام ددې مسئلې په اړه څه وايي چې يو سړی د سرو زرو ګوتمه په دې وجه په ګوته کوي چې فرضاً که زما روپۍ يا بل څه ورک شي. نو د ضرورت پوره کېدو لپاره به دا خرڅوم نو ايا د سرو ګوته په دې وجه اچول روا دي که نه؟ بينوا تو جروا

**المستفتی:** محمد شريف الله خادم دارالعلوم حقانيه ... ۱۲صفر المظفر ۱۴۰۱هـ

**الجواب:** دګوتمې ساتنې ځايونه نور هم شته هلته يې وساتئ. د پيسو ورکېدل کله کله پېښيږي(۱) په دې پېښه کې يې د قيمت احتمال هم شته او د رنګه په ګوته کولو کې يې د ګوتمې غوځېدو او د غلو د دعوې کولو خطر هم شته. **وهوالموفق**

## د سرزرو ګوتې سره لمو نځ کول اوپه ګوته کې کاڼي لګول

**سوال:** علماء کرام دې مسئلې باره کې څه وايي چې د سرو زرو

---

(د حاشيې پاتې برخه) وفي التتارخانيه عن السير الكبير لابأس بأزرار الديباج والذهب ... وحل مسمار الذهب في حجر الفص.

(الدر المختار، ۲۵۴-۵:۲۵۰، كتاب الحظر والإباحة، فصل في اللبس)

وقال العلامة نظام الدين الأعظمي رحمه الله تعالى: د سپين ځنځير په زيور (کالي) کې نه دې شمار، چه ددې تړل دی حرام شی، بلکه د يو ضرورت په حيثيت سره استعماليږی، هاں کومه ګهړئ يا ځنځير چې د زنانه طرز او ساخت والا وی هغه سړو لره استعمالول به د (لعن الله المتشبهين بالنساء والمتشبهات بالرجال أوكما قال عليه الصّلاة والسّلام) په مطابق درست نه وی.

(نظام الفتاوی ۱:۳۸۰، كتاب الحظر والاباحة، د لاس په ګهړئ کې د اسټيلو ځنځير تړل)

۱) وفي شرح المجلة: العبرة للغالب الشائع لاللنادر. (شرح المجلة، ۲:۹۷، المادة: ۴۲)

ګوتمه د نارينو لپاره روا ده که نه؟ او د سپينوزرو د ګو تمی څه حکم دی؟

(۲) د سرو یا سپينو زرو ګوتمه اچولو کې یا په جبب کې ساتلو سره لمونځ ادا کيږي که نه؟

(۳) په ګوتمه کې د کاڼي لګولو څه حکم دی ؟ بينوا توجروا.

المستفتي: محد ابرهيم، نيو بس سټينډ مردان. ۱۹۸۴/۴/۱۰ع

**الجواب:** سړي ته د سپينو زرو ګوتمه اچول روا دي او د سرو زرو ناروا ده. (۱) خو په جبب کې کېښودلو یا په ګوته کولو سره لمونځ ادا کيږي او په ګوتمه کې کاڼي لګول منع نه دي. (۲) والله أعلم

## د نارينه وو لپاره د سرو او سپينو زرو ساعت په لاس کول

**سوال:** علماء کرام دې مسئلې باره کې څه وايي. ساعت د سرو زرو وي یا د سپينو زرو وي يا تسمه د سرو زرو. سپينو زرو. وسپنې. پيتلو. یا بدله اوسپنه وي. د نارينه وو لپاره په لاس کول روا دي که نه؟ ايا پهه دې سره د لمانځه په ثواب کې څه کمی راځي ؟ بينوا توجروا

**المستفتي** پرويز عبدالغني راولپنډی... ۱۹۷۲/۱۰/۹.

**الجواب:** د سرو او سپينو زرو د ساعت استعمالول ناروا دي. (۳) ځکه چې دا

---

۱) وفي الهندية: ويكره للرجال التختم بما سوى الفضة كذا في الينابيع، والتختم بالذهب حرام في الصحيح. (فتاوى هندية، ۵:۳۳۵، كتاب الكراهية، الباب العاشر في استعمال الذهب والفضة)

۲) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: والعبرة بالحلقة من الفضة لا بالفصّ فيجوز من حجر وعقيق وياقوت. (الدر المختار، :۲۵۴، كتاب الحظر والإباحة، فصل في اللبس)

۳) وفي الاختيار: ولا يجوز استعمال انية الذهب والفضة قال عليه الصّلاة والسّلام: من شرب في إناء ذهب وفضة فكأنّما يجرجر في بطنه نار جهنم، وعلى هذا المجمرة والملعقه والمدهن والميل والمكحلة والمرأة ونحو ذلک،...(باتي حاشيه په بل مخ)

دول ساعت نه له هغه شيانو څخه دي چې د کومو استعمال فقهاوو روا ګڼلي، نه له هغو سره مشابهت لري او نه لمونځ کول ورسره مکروه دي. څنګه چې د وربېښمو له جامو سره لمونځ مکروه دی (صرح به الحموی فی شرح الاشباه والنظائر ۱۹۷)[۱] د چاندی، اوسپنې او پيتلو ځنځير څه باک نه لري. لأنه مشابه بالحمائل والمنطقة وفی الهندية: ولا بأس بحلية السيف وحمائله والمنطقة من فضة لامن ذهب ۵: ۳۷۱ ([۲]) قلت والنهی انما ورد فی الخاتم ([۳]) لافی غيره، وهذا ما عندی ولعل عند غيری أحسن منه. وهو الموفق.

## د اوسپنې ځنځير والا ساعت حکم

**سوال:** علماء کرام دې مسئلې باره کې څه فرمايي چې د ځنځير والا ساعت حرام دی که مکروه؟

ځينې علماء کرامو حرام ګڼلي او ځينو مکروه څکه چې دا د بنګړو په څېر دي بينوا توجروا

**المستفتي:** وزير محمد بلو چستاني، متعلم حقانيه ۱۸، جمادی الثاني ۱۴۰۳ھ

---

(د حاشيې پاتې برخه) والنصوص وإن وردت في الشرب فالباقي في معناه لاستوائهم في الاستعمال. (الإختيار لتعليل المختار، ۱۹۸–۱۹۷:۴، كتاب الكراهية، فصل في الاحتكار)

۱) وقال العلامة الحموي رحمه الله تعالى: قوله فلولم تجد غيرها صلّى في الحرير الخ أی يفترض عليه الصلاة فيه ... لأن الصلاة في الحرير مكروهة للرجال.
(غمز عيون البصائر شرح الأشباه والنظائر ۲:۳۶، كتاب الصلاة)

۲) (فتاوى هندية: ۵:۳۳۴، كتاب الكراهية، الباب العاشر في استعمال الذهب والفضة)

۳) وفي الهندية: ويكره للرجال التختم بما سوى الفضة والتختم بالذهب حرام على الصحيح والتختم بالحديد والصفر والنحاس والرصاص مكروه للرجال والنساء جميعا.
(فتاوى هندية، ۵:۳۳۵، كتاب الكراهية، الباب العاشر في إستعمال الذهب والفضة)

**الجواب:** د اوسپنيز ځنځير استعمال روا دی (لأنه كالزر والمسمار دون اللباس وجاز من الذهب كما في شرح التنوير(١) والهندية(٢) فجوازه من الحديد بأولى وكذا الساعة لاتسمى لباساً. وهوالموفق

## غابونو ته دسرو زرو پوښ ورکول

**سوال:** محترم مفتي صاحب السلام عليكم ورحمة الله و بركاته: د سلام وروسته عرض دادی چې يو سړي درې غابونه وېستلي. نن سبا ډاکټرانو د غابونو لګولو نوې طريقه راوېستې ده چې په دا ډول يې درې مصنوعي غابونو سره د سرو زرو پوښونه هم جوړ کړي. دا خالي پوښ اصل غاښ ته وراغوندي، په شريعت کې څه حکم لري؟ بينو توجروا.

**المستفتي** ملک شاه محمود خان، شمالي وزيرستان ۱۵/اکتوبر/۱۹۶۹

**الجواب:** ددليل له مخې جواز راجح معلومېږي. في الدر المختار: ولا يشد سنه المتحرك بذهب بل بفضة وجوزوها محمد ويتخذ أنفاً منه لأن الفضة تنتنه (٣).

---

١) وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وفي التتارخانيه عن السير الكبير لابأس بأزرار الديباج والذهب ... وحل مسمار الذهب في حجر الفص.
(الدر المختار، ۵:۲۵۰–۲۵۴، كتاب الحظر والإباحة، فصل في اللبس)

٢) وفي الهندية: لابأس بلبس الثوب في غير الحرب إذاكان أزراره ديباج أو ذهب ... ولا بأس بمسامير ذهب وفضة.
(فتاوى هندية، ۵: ۳۳۵–۳۳۲، كتاب الكراهية، الباب التاسع في اللبس)

٣) الدر المختار ۵:۲۵۵، كتاب الحظر والإباحة، فصل في اللبس).......
وفي الخلاصة: ويشد الأسنان بالفضة ولا يشد ها بالذهب (پاتې حاشيه په بل مخ)

انتهى قلت علة النتن مشتركة فالراجح الجواز ولايضر الغسل بوجود الحرج في ازالته فقط يدل عليه مافي شرح الوقاية.(۱) وهوالموفق

## ښځو ته ناخن پالش او ورسره د لمانځه حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې ښځو ته د ناخن پالش استعمال څنګه دی؟

که جائز وي او غسل هم ورسره کيږي؛ نو وجه او علت يې څه ده؟ توجروا

**المستفتي:** خواجه عبدالماجد صاحب. جامع مسجد صديقيه مينار والي مسجد. خانيوال.....۱۹۹۸ع/۶/۲۴

**الجواب:** ناخن پالش د غسل او د اوداسه لپاره مانع نه وي، ځکه چې دا پالش اوبو سره نه ورکيږي. او شريعت کې يې په بل بل څه لرې کول ضروري نه دي او ددې لپاره څه نظائر هم شته. مثلاً کله چې د رنګ مال په نوکانو رنګ ونښلي نو معاف دی. كما في شرح التنوير على هامش رد المحتار ۱:۱۰۴ في فرائض الغسل: ولايمنع ماعلى ظفر صباغ(۲) وفي ردالمحتار ۱:۲۲۰: فاذاكان لايكلّف بازالة الاثر الذى يزول بماء حار أوصابون فعدم

---

(د حاشيې پاتې برخه) وقال محمّد رحمه الله تعالى لابأس به.

(خلاصة الفتاوى، ۴:۳۷۰ كتاب الاستحسان، الفصل السابع في اللبس)

۱) وفي شرح الوقاية: وغسل سائر البدن أى جميع ظاهر البدن حتى لو بقى العجين في الظفر فاغتسل لا يجزى وفي الدرن يجزى إذ هو متولد من هناک وكذا الطين لأن الماء ينفذ فيه وكذا الصبغ بالحناء، فالحاصل أن المعتبر في هذا أى في باب جواز الغسل وعدمه الحرج.

(شرح الوقاية ۱:۷۸، كتاب الطهارة، فرض الغسل)

۲) (الدر المختار ۱:۱۱۴، مطلب في أبحاث الغسل)

التكليف هنا أولى (١) انتهى ما في بحث حكم الوشم. واضحه شوه چې څنګه جامې رنګول يو مباح غير مطلوب زينت دى؛ نو دا رنګه نوكان رنګول هم يو مباح غير مطلوب زينت دى (٢)، هذا ما عندى ولعلّ عند غيرى أحسن منه. وهوالموفق.

## كورونو كې نارينه او ښځو ته بېل بېل لوښي استعمالول ثابت نه دي

**سوال:** څه وايي علماء كرام په دې مسئله كې چې ربښتيا د كور ښځو او سړيو ته بېل بېل لوښي استعمالول پكار دي، يو لوښى كارول صحيح نه دى. كه هغه مينځل شوى هم وي؟ نو د قران او حديثو په رڼا كې وضاحت وكړئ؟

بينوا توجروا **المستفتي:** الله داد، رسالپور ۱۹۸۹ع/۸/۲۳

**الجواب:** ددې ثبوت نه په قران، حديث او نه د فقهې په كتابونو كې شته. دغه فتوا وركوونكي ته ضروري ده چې د معتبرو كتابونو حواله راولېږي. وهوالموفق

## چشمو كې د وسپنې فريم لګول

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام په دې مسئله كې چې دعينكو فريم كوم چې د عامې اوسپنې وي، روا دى كه نه؟ بينوا توجروا.

المستفتي: پرو فيسر عبدالغني، راولپنډى..... ۱۹۷۲ع/۱۰/۹

**الجواب:** روا دي (٣)، وهوالموفق

---

١) (رد المحتار ١:٢٤٢، مطلب في حكم الوشم، باب الأنجاس)

٢) قال الله تعالى: قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِينَةَ اللَّهِ الَّتِي أَخْرَجَ لِعِبَادِهِ وَالطَّيِّبَاتِ مِنَ الرِّزْقِ... الآية. (سورة الاعراف آيت: ٣٢)

٣) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ولا يتحلّى ...(پاتې حاشيه په بل مخ)

## سړي ته د سرو زرو ګاڼه، بټن، ځنځير، چين او د غابښ استعمال

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئله کې چې نارينه وو ته د زرو د استعمالول، زيور، بټن، ځنځير، چين يا د مصنوعي غابښ په شکل کې روا دی که نه؟

که روا نه وي؛ نو څوک يې چې روا بولي د هغه څه حکم دی؟

که چېرته څوک په غابښ باندې پوښ لګوي؛ نو ايا د دغه سړي اودس به پوره وي او له جنابته به پاکيږي او که نه؟ ځکه چې اصلي غابښ وچ پاتې کيږي؟ بينوا توجروا!

**المستفتي:** مولانا ضياء الله، خطيب مسجد ګيلاني.
دوبئ امتحده امارات..... ۱۳/ محرم ۱۴۰۳هـ

**الجواب:** ومنه الصدق والصواب د سرو زرو بټن او غابښ جائز ده. كما في شرح التنوير على هامش رد المحتار ۵:۳۱۱، فصل في اللبس: وفي التتارخانية عن السير الكبير لا بأس بأزرار الديباج والذهب() انتهى، وفي الهندية ۵:۳۷۹ وذكر الحاكم في المنتقى لو تحركت سن رجل وخاف سقوطها فشدها بالذهب أو بالفضة لم يكن به بأس عند أبي حنيفه وأبي يوسف رحمهما الله تعالى وروى الحسن

(د حاشيې پاتې برخه) الرجل بذهب وفضة مطلقاً إلّا بخاتم ومنطقة وحلية سيف منها أي الفضة إذا لم يرد به التزين ... ولا يكره في المنطقة حلقة حديد أو نحاس وعظم. (الدر المختار ۵: ۲۵۳، كتاب الحظر والإباحة، فصل في اللبس)

وفي شرح المجلة: الحاجة تنزل منزلة الضرورة عامّة أو خاصّة ... أشارت المادة إلى أن الضرورة وإن كانت أشد الّا أن الحاجة عامّة كانت أو خاصّة تنزل أيضا منزلتها في تجويز الممنوع شرعا. (شرح المجله ۱:۷۵، المادة: ۳۲)

۱) (الدر المختار ۵:۲۵۰، كتاب الحظر والإباحة، فصل في اللبس)

عن أبي حنيفة: انه فرق بين السن والأنف، فقال في السن لابأس بأن يشدها، وفي الأنف كره ذلك(١) انتهى. قلت: والأصل فيه ما أخرجه أبو داود أن عرفجة بن أسعد قطع أنفه يوم الكلاب فاتخذ أنفًا من فضة فأنتن عليه، فأمره النبي ﷺ بأن يتخذ أنفا من ذهب(٢) والوجه فيه أن السن أولى بالنتن لأن الفم أكثر رطوبة من الأنف. فافهم. وقلت أيضاً: ان ازالة السن عند كل غسل ثم الاعادة فيه حرج بين وهو مرفوع لنص ورد به(٣) وهوالموفق

## كوم لباس په اسراف كې داخل دى؟

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې لباس كې اسراف څه ډول راځي؟ بينوا توجروا

**المستفتي**: عزيزالدين متعلم حقانيه.... ۹/ربيع الأول/١٣٩٥هـ

**الجواب:** ناروا جامې (مثلاً د نارينه لپاره وريښمي جامې جوړې شوي وي) دا رنګه (٤)

---

١) (فتاوى هندية ٥:٣٣٦، كتاب الكراهية، الباب العاشر في استعمال الذهب)

٢) (سنن أبي داؤد ٢: ٥٨١، كتاب اللباس، باب ماجاء في ربط الأسنان بالذهب)

٣) وقال الله تبارك وتعالى: وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ.

(سورة الحج آيت: ٧٨)

٤) في الهندية: يجب أن يعلم أن لبس الحرير وهو ماكانت لحمته حريرا وسداه حريرا حرام على الرجال في جميع الأحوال... يكره لبس الديباج للرجال... ويكره للرجل أن يلبس المصبوغ بالعصفر والزعفران والورس.

(فتاوى هندية ٥:٣٣١، ٣٣٢ كتاب الكراهية، الباب التاسع في اللبس)

حلالې جامې خو چې له مشروع مقدار نه زياتې وي (١) **وهوالموفق**

## د نارينه لپاره د نكريزو لګول او د ښځو جامې اغوستلو حكم.

**سوال:** څه وايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې د سړي لپاره په لاسونو او پښو باندې نكريزې لګول روا دي يا نه؟ او سړي ته ښځينه لباس اغوستل روا دي كه نه؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** نامعلوم...... ۲۶ /شوال ۱۳۸۹ هـ

**الجواب:** دې باره كې لعنت وارد شوى. قال النبي ﷺ لعن الله المتشبهين من الرجال بالنساء (٢) رواه البخاري، وعن عائشة رضي الله تعالى عنها أن هند أبنت عتبة قالت يا نبي الله ! بايعني، لا أبائعك حتى تغيّري كفيك كأنهما كفا سَبُعٍ. رواه أبوداؤد (٣)

---

١) قال العلامة السهارنفوري رحمه الله تعالى: عن عليّ رضي الله تعالى عنه كان يمدُّ كُمّ القميص حتى إذا بلغ الأصابع قطع ما فضل.

(بذل المجهود ٥:٤٠ كتاب اللباس، باب ماجاء في كُمّ القميص)

عن حذيفة رضي الله تعالى: عنه قال اخذ رسول الله ﷺ بأسفل عضلة ساقى أوساقه فقال هذه موضع الإزار فإن أبيت فأسفل فإن أبيت فأسفل فان أبيت فلاحق للإزار في الكعبين... عن ابن عباس رضي الله تعالى عنه قال كان رسول الله ﷺ يلبس قميصا قصير اليدين والطول... عن البراء رضي الله تعالى عنه قال نهى رسول الله ﷺ عن الديباج والحرير والإستبرق. (سنن ابن ماجة ٢٦٤ كتاب اللباس، باب موضع الإزارين، باب كُمّ القميص كم يكون، باب كراهية لبس الحرير)

٢) (صحيح البخاري ٢:٨٧٤، كتاب اللباس، باب المتشبّهين بالنساء الخ)

٣) (سنن أبي داؤد ٢:٥٧٤، كتاب الترجل، باب في الخضاب للنساء)

استنبط منه بعض العلماء كراهة الخضاب للرجال في الأيدي.(١) وهو الموفق

## ښځو ته تندي باندې خال لګول نا روا دي

**سوال:** څه وايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې ښځې په تندي باندې خال لګوي دا روا دي که نه؟ او ګناه يې هم وليکئ. دا هم وليکئ چې لمونځ ورسره کيږي که نه؟ بينوا توجروا

**المستفتی:** مست علي خان متعلم دار العلوم حقانيه ٥ محرم ١٣٩٢ هـ

**الجواب:** خالونه لګول نا جائز دي. قال الله تعالى: وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا(٢)

وقال رسول الله لعن الله الواشمة والمستوشمة (متفق عليه)(٣)
البته له دې سره لمونځ کول صحيح دي. دا ځکه چې په لرې کولو کې يې حرج دی وفي الفتاوى الخيرية من كتاب الصلوة سئل في

---

١) قال الملا علي قاري رحمه الله تعالى: و فيه بيان كراهية خضاب الكفين للرجال تشبها بالنساء. (مرقاة المفاتيح ٨:٣١٢، باب الترجّل)

و قال العلامة السهارنفوري رحمه الله تعالى: باب في الخضاب للنساء... لكن تقييد في ترجمة الباب بالنساء يدل على أن المراد به خضاب الجسم فإن خضاب اليدين والرجلين بالحناء مستحب للنساء وحرام للرجال إلا لحاجة التداوي.

(بذل المجهود ٥:٧١ كتاب الترجل، باب في الخضاب للنساء)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله خضاب شعره ولحيته) لا يديه ورجليه فإنه مكروه للتشبّه بالنساء.

(ردالمحتار ٥:٢٩٩ كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

٢) (سورة الحشر آيت: ٧)

٣) في المشكوة: عن ابن عمر أن النبي ﷺ قال لعن الله الواصلة والمستوصلة والواشمة والمستوشمة. (مشكوة المصابيح ٣٨١ باب الترجل، الفصل الأول)

رجل على يده وشم هل تصح صلوة امامته معه أم لا؟ أجاب نعم! تصح صلوته و امامته بلا شبهة (ردالمحتار ۱: ۳۰۵)(۱). وهوالموفق

## ښځو ته د ساعت استعمال

**سوال:** څه وايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د قران او حديثو په رڼا کې ښځو ته مروند باندې ساعت تړل روا دي که ناروا؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** مشتاق احمد ۷۸۲۲۳، اير منيز بيس، پاک فضائيه لاهور

**الجواب:** څنګه چې ساعت هم زيور دی ښځې او سرې دواړه ورته ضرورت لري، لهذا ښځو ته ساعت تړل څه باک نه لري (۲)

البته د مروند ښکاره کول د نامحرم په وړاندې حرام دی. (۳) **وهوالموفق**

---

۱) (ردالمحتار ۱: ۲۴۲ باب الأنجاس، مطلب في حكم الوشم)

۲) قال العلامة ظفرأحمد العثماني رحمه الله تعالى: يجوز للنساء لبس أنواع الحلى كلها من الذهب والفضة كالخاتم والسوار والخلخال والطوق والعقد والقلائد ونحوها ولا نعلم فيها خلافًا. (إعلاء السنن ۱۷: ۳۱۷، كتاب الحظر والإباحة، باب ماجاء في الرخصة في التختم بخاتم الذهب للنساء)

۳) قال العلامة ابن كثير رحمه الله تعالى: وقوله تعالى: (وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا...الآية) أى لا يظهرن شيئا من الزينة للأجانب إلّا مالا يمكن إخفاؤه، قال ابن مسعود: كالرداء والثياب، وقال بقول ابن مسعود الحسن وابن سيرين وأبوالجوزاء وإبراهيم النخعي وغيرهم... عن عبد الله: الزينة زينتان: فزينة لا يراها إلّا الزوج: الخاتم والسوار، وزينة يراها الأجانب وهى الظاهر من الثياب.

(تفسير ابن كثير ۳: ۳۷۵، ۳۷۶ سورة النور، آيت: ۳۱)

## په ساعت کې د سرو زرو پرزې او د پېنلو د چين حکم

**سوال:** څه وايي علماء ديوبند دې مسئلې باره کې چې دلاس ساعت چې ځينې پرزې يې د سرو زرو وي. د سرېو لپاره يې استعمال جائز دی که ناجائز؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** عبدالقدوس ساهيوال ... ۳ دسمبر ۱۹۷۴

**الجواب:** چې کيس د سپينو زرو او سرو نه وي نو استعمال يې روا دی که وي؛ نو ناروا دی (۱)

دپرزو په حلالوالي او حراموالي کې هيڅ دخل نشته. **ونظيره المرآة كما في الهندية ٥: ٣٧٠، يكره النظر في المرآة المتخذة من الذهب والفضة (٢) انتهى ويمكن أن يستدل بما في الهندية ٥: ٣٦٨: ولا بأس بلبس الجبة المحشوة من الخز كذا في الوجيز للكردري (٣) على استعمال الساعة اللتي يكون أعضاءها من الذهب والفضة سوى الظرف المحيط لكونها مستورة وهذا ما عندي غيري أحسن منه.**

(۲) او د پيتلو چين څه باک نه لري. لعدم ورود النهي فيه بخلاف الخاتم (۴)

**وهوالموفق**

---

۱) في المرقاة: قال النووي أجمعوا على تحريم الأكل والشرب في إناء الذهب والفضة على الرجل والمرأة... فيحرم استعمالها في الأكل والشرب والطهارة والأكل بالملعقة من أحدهما والتجمر بمجمرته والبول في الإناء وسائر استعمالهما سواء كان صغيرا أو كبيرا. (مرقاة المفاتيح ٧:٢٢٠ باب الأشربة)

۲) (فتاوى هندية ٥:٣٣٤ كتاب الكراهية، الباب العاشر في استعمال الذهب والفضة)

۳) (فتاوى هندية ٥:٣٣٢ كتاب الكراهية، الباب التاسع في اللبس مايكره من ذلك)

۴) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ولا يتختم... (باتي حاشيه په بل مخ)

## د پټي او چين والا ساعت استعمال

**سوال:** علماء دين دې مسئلې باره کې څه وايي چې نن سبا څوک لاس باندې ساعت تړي نو ځيني د څرمنې پټي، وې ځيني د اوسپنې. ځيني د پيتلو او يا د بل څه اوسپني ځنځيرونو څخه وي. دا ډول څه ځنځيرونه رنګين وي او څه ساده او ساعت که د وسپنې جوړ وي يا بل څه توګي نه. د دغه ماډل ساعتونو استعمال روا دی که نا روا؟ بينوانو جروا

**المستفتي** معين الدين ... ١٩٧ع ٢٠٠٥

**الجواب:** د کوم ساعت کيس د سرو يا سپينو زرو نه وي استعمال يې جائز دی. **لعدم المحرم وهو استعمالهما بلا حائل كما يدل عليه ما في الهندية ٥: ٣٧٠ : ولا بأس بالأكل والشرب من اناء مذهب ومفضض اذا لم يضع فاه على الذهب و الفضة ()الخ**، لهذا د سرو ناجائز او بې له سرو او سپينوزرو نور جائز شو. اګر که ښکاره د سپينو زرو جواز معلوميږي. **لأنه كالمسامير والأزرار والمنطقة وهي**

---

(د حاشيي باتي برخه) إلا بالفضة... فيحرم بغيرها (الدر المختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله فيحرم بغيرها الخ)... لما روى صاحب السنن بإسناده إلى عبد الله بن بريدة عن أبيه: أن رجلًا جاء إلى النبي ﷺ وعليه خاتم من شبه فقال له: ما لي أجد منك ريح الأصنام فطرحه ... والشبه محركا النحاس الأصفر، قاموس، وفي الجوهرة: والتختم بالحديد والصفر والنحاس والرصاص مكروه للرجال والنساء.

(ردالمحتار ٥:٢٥٣ كتاب الحظر والإباحة، فصل في اللبس)

١) (فتاوى هندية ٥:٣٣٤ كتاب الكراهية، الباب العاشر في استعمال الذهب والفضة)

جائزة كما في الدر المختار على هامش رد المحتار ٥: ٣١٥ (١) والهندية ٥: ٣٠٧ (٢)
لوجود الاستعمال بلا حائل غالباً بخلاف ما مرّ فليتأمل. وهو الموفق

## د سرو زرو، د وسپنې او د پیتلو د ګوتمې حکم

**سوال:** څه وايي علماء كرام په دې مسئله کې چې د سرو لپاره ګوتمه اچول جائز دي يا نه او دسټيل ګوتمه څه حکم لري؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** عبيد الله پشاور ... ٢٣ رمضان

**الجواب:** د سرو لپاره، د زرو، د اوسپنې او د پيتلو ګوتمه مکرو ده. لحديث (٣)

---

١) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وفي التتارخانية عن السير الكبير لابأس بأزرار الديباج والذهب... ولا يتحلى الرجل بذهب وفضة مطلقا إلّا بخاتم ومنطقة وحلية سيف منها أى الفضة... وحلّ مسمار الذهب في حجر الفصّ.

(الدر المختار ٥: ٢٥٠، ٢٥٣، ٢٥٤ كتاب الحظر والإباحة، فصل في اللبس)

٢) في الهندية: في السير الكبير لا بأس بلبس الثوب في غير الحرب إذا كان أزراره ديباجاً أو ذهباً... ولابأس بحلية السيف وحمائله والمنطقة من فضة لا من ذهب... ولا بأس بمسامير ذهب وفضة.

(فتاوى هندية ٥: ٣٣٢، ٣٣٤، ٣٣٥ كتاب الكراهية، الباب التاسع، الباب العاشر)

٣) في المشكوة: عن بريدة رضي الله تعالى عنه أن النبي ﷺ قال لرجل عليه خاتم من شبه مالى أجد منك ريح الأصنام فطرحه، ثم جاء وعليه خاتم من حديد فقال مالى أرى عليك حلية أهل النار فطرحه، فقال يا رسول الله! من أىّ شئ أتخذه؟ قال: من ورق ولا تتمّه مثقالًا.

(مشكوة المصابيح ٣٧٨ باب الخاتم)

هنديه (۱) وهوالموفق

## د پيتلو، جص او سټيلو د زيوراتو حکم

**سوال:** څه وايي علماء کرام په دې مسئله کې چې نن سبا ښځې د سرو زرو، سپينو زرو له ګاڼې پرته ګلټ، جص او د سټيل زيورات اچوي، ددې استعمال څنګه دی؟ چې اوازهم ولري استعمال او حکم يې څنګه دی؟ بينوا توجروا

**المستفتي** شير عالم وزيرستاني متعلم حقانيه ... ۳ ربيع الثاني ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** په ښکاره له سرو او سپينوزرو پرته د نورو شيانو زيورات مکروه دي (۲) يدل عليه ما في الهندية ۵، ۳۷۱ وفي الخجندي التختم بالحديد والصفر والنحاس مكروه للرجال والنساء (۳) فا فهم او د سرو او سپينو زرو والا ګاڼه چې له ګونګريو خالي وي نو ناروا

---

۱) في الهندية: ويكره للرجال التختم بما سوى الفضة كذا في الينا بيع، والتختم بالذهب حرام في الصحيح كذا في الوجيز للكردري، وفي الخجندي التختم بالحديد والصفر والنحاس والرصاص مكروه للرجال والنساء جميعا.
(فتاوى هندية ۵:۳۳۵ كتاب الكراهية، الباب العاشر في إستعمال الذهب والفضة)

۲) في إعلاء السنن: والبحث الثاني إن النهى عن خاتم الحديد وغيره مخصوص بالخاتم أو شامل لسائر الحلي منها؟ فلم أرنصّافيه في كلام الفقهاء إلّا أن الحديث وكلام الفقهاء يرشدان إلىٰ عدم الإختصاص، لأن النبي ﷺ قال: مالي أرى عليك حلية أهل النار؟ وقال: مالي أرى منك ريح الأصنام؟ فدل ذلک على أنه غير مخصوص بالخاتم بل يشمل كل حلية من الحديد أو الشبه والنحاس والصفر.
(إعلاء السنن ۱۷:۳۲۹،۳۳۰ كتاب الحظر والإباحة، باب خاتم الحديد وغيره)

۳) (فتاوى هندية ۵:۳۳۵ كتاب الكراهية، الباب العاشر في استعمال الذهب والفضة)

نه ده (١) کرنګ کرنګ او کړکړ کې فرق شته. **وهوالموفق**

## مجاهدينو ته د سوچه وريښمو لونګی استعمالولو حکم

**سوال:** ماتقول العلماء الکرم فی المسئلة الآتية: ان فی وطننا بين علماء المجاهدين اختلافا فی العمامة الحريرية وهو معبر عنها فی الأفغانية بلن ګ ی، أهي جائزة لمجاهدی الأفغانستان؟ بينواتوجروا

**المستفتی:** نامعلوم.....ربيع الاول ١٤٠٥هـ

**الجواب:** لبس الثوب الذی يکون سداه ولحمته کلاهما حريرا لايجوز عند الإمام حنيفة رحمه الله کمافی ردالمحتار٥: ٣١٣(٢) **وهوالموفق**

---

١) قال العلامة ظفر أحمد العثمانی رحمه الله تعالیٰ: يجوز للنساء لبس أنواع الحلی کلها من الذهب والفضة کالخاتم والحلقة والسوار والخلخال والطوق والعقد والقلائد ونحوها ولانعلم فيها خلافًا.

(إعلاء السنن ١٧:٣١٧ کتاب الحظر والإباحة، باب ماجاء في ارخصة في التختم بخاتم الذهب للنساء)

وعن بنانة مولاة عبد الرحمن بن حيان الأنصاري کانت عند عائشة إذ دخلت عليها بجارية وعليها جلاجل يصوّتن فقالت لا تدخلنها عليّ إلّا أن تقطعن جلاجلها، سمعت رسول الله ﷺ يقول: لا تدخل الملائکة بيتا فيه جرس.

(مشکوة المصابيح ٣٧٩، باب الخاتم)

٢) وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالیٰ: وأما ما لحمته وسداه حرير ففي لبسه حالة الحرب خلاف بين أصحابنا وعلمائنا ...... إعلم أن لبس الحرير لا يجوز بلا ضرورة مطلقاً... والحاصل أنه عند الإمام لا يباح... (د حاشيي پاتې برخه په بل مخ)

## د پګړۍ شرعي اندازه څومره ده

**سوال:** څه وايي علماء كرام په دې مسئله كې چې عمامه كې شرعاً څه تحديد شته يا نه؟ بينوا توجروا

**المستفتي** لوى لالا، مهمندي، فاضل حقانيه... ۱۴ ذى القعده ۱۴۰۱هـ

**الجواب:** عمامه شرعاً څه حد نه لري،(۱) لكه څنګه چې څادر، كميس او پرتوګ څه حد نه لري چې كومه ګناه وشمارل شي، البته د رسول الله ﷺ څخه انګريزي شپږ، درې يا درې نيم ګزه پګړۍ ثابته ده.(۲) **وهوالموفق**

---

(د حاشيې پاتې برخه) الحرير الخالص في الحرب مطلقاً
ردالمحتار ۵: ۲۵۱، كتاب الحظر والاباحة فصل في اللبس)

وفي الهندية: يجب أن يعلم أن لبس الحرير وهو كانت لحمته حريراً وسداه حريراً حرام على الرجال في جميع الأحوال عند أبي حنيفة رحمه الله تعالىٰ.
(فتاوى هندية ۵: ۳۳۰، كتاب الكراهية، الباب التاسع في اللبس)

۱) قال العلامة عبدالحي اللكنوي رحمه الله تعالىٰ: العمامة بكسر العين مايعتم به الرجل رأسه. (التعليق الممجد على موطأ لأمام محمّد رحمه الله تعالىٰ: ۷۰)

وفي مجموعة قواعدالفقه: العمامة بالكسر مايلف على الرأس.
(مجموعة قواعدالفقه: ۳۸۹)

۲) وفي المرقاة: أخبر من أثق به أنه وقف على شيئ من كلام النووي ذكر فيه أنه كان له ﷺ عمامة قصيرة وعمامة طويلة، وأن القصيرة كانت سبعة أذرع، والطويلة اثنى عشر ذراعاً. (مرقات المفاتيح ۸: ۲۵۰، كتاب اللبس، الفصل الثانى)

وقال الشيخ محمدزكريا رحمه الله تعالىٰ: علامه جزري رحمه الله....

(د حاشيې پاتې برخه په بل مخ)

## نارينه ته په شرعي حدودو كې دننه سينګار روا دى

**سوال:** څه وايي علماء كرام په دې مسئله كې چې يو كس ځان ډير سنګاروي او بيا وايي چې دا ناروا نه دى. بلكې مستحب كار دى. ايا دا خبره بې سمه ده؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** جمعه خان، نرياب هنګو...۵ جمادي الاولى ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** تزئين (سينګار) جائز او مستحب دى چې د شرعي حكم خلاف نه وي. كمافى الدر المختار:۵/ ۶۶۰،ويستحب التجمل الخ،لقوله تعالى: قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِينَةَ اللَّهِ.وخرج وعليه رداء قيمة ألف دينار(وأيضا فى الزيلعي (۱) وهوالموفق

## د ښځې سر تور سر بازار كې د ګرځيدو حكم

**سوال:** څه وايي علماء كرام دې مسئلې باره چې ښځه بازار كې سر توره

---

(د حاشيې پاتې برخه)..... وايي چې ما د سير كتابونه خاص طور باندې تلاش كړي خو د حضور پاک ﷺ د پګړۍ مقدار ماته ملاو نه شو، البته د امام نووي رحمه الله څخه نقل دي چې د حضور ﷺ دوه عمامې وې، يوه وړه وه شپږ لاسه د مناوى د قول موافق، او اووه لاسه د ملا علي قاري رحمه الله د قول موافق او يوه لويه دولس لاسه وه، صاحب د مدخل د حضور ﷺ د عمامې مقدار فقط اوه لاسه ښودلى دى، دويم يې نه دى ښودلى.

(خصائص النبوي شرح شمائل ترمذي ۶۸،باب ماجاء في عمامة النبي ﷺ)

۱) الدر المختار۵: ۵۳۳،مسائل شتّى بعد كتاب الخنثى)

وفي الهندية :وفي مجموع النوازل سئل عن الزينة والتجمل في الدنيا؟ قال: خرج رسول الله ﷺذات يوم عليه رداء قيمتُه ألف درهم ،وربما قام إلى الصلاة وعليه رداء قيمته أربعة آلاف درهم...وأبوحنيفه رحمه الله تعالى كان يرتدى برداء قيمته أربعَ مائة دينار كذافي الذخيرة.

(فتاوى هندية۵: ۳۳۲كتاب الكراهية ،الباب التاسع في اللبس)

کړځي. شرعاً ددې څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

المستفتي بشیر صوفي. مرې........ ۱۹۸۸ء/۸/۲۸

**الجواب:** کومه ازاده ښځه چې دا ډول په ښکاره سر وځي یا د بل پردي سړي مخې ته اوړې راوړي حرام دي، ځکه چې د ښځې ستر ضروري او اهم کار دی. لقوله تعالی: **وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَىٰ.** (پاره ۲۲ أحزاب) [۱]، ولقوله تعالی **وَغَيْرَ مُتَبَرِّجَاتٍ بِزِينَةٍ الآية** (الأحزاب) [۲]، و لقوله تعالی: «**لَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ**». الخ[۳]، او له دې پرته د څه ضروري کار لپاره بې سینګاره وتل مشروع او جائز دي. مګر په هیئت رثه او ثیاب بذله یعنې د بې ډوله خړو پړو جامو په پرده کې ووځي .لقوله تعالی: **يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَابِيبِهِنَّ.** [۴] لقوله: **مَا ظَهَرَ مِنْهَا.** الآیة[۵]. **وهوالموفق**

## د تورو جامو اغوستلو حکم

**سوال:** څه وایي علماء کرام په دې مسئله کې چې که کمیس تور او پرتوګ بدل رنګ والا وي؛ نو بیا څه حکم لري؟ او که دا کارونه عادتاً کیږي، نه د مذهب یا بل څه په خاطر او یا په مکتب کې لازمي وي، نو ددې جامو څه حکم

---

۱) سورة الاحزاب: آیت ۳۳)

۲) سورة النور: آیت ۶۰)

۳) سورة النور: آیت ۳۱)

۴) سورة الأحزاب: آیت ۵۹)

۵) سورة النور: آیت ۳۱

دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبد السبحان. جیکب آباد. پنجاب... یکم ذی الحجه ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** چونکه تور شیان اغوستل جائز بلکې مندوب دي. کما في شرح التنوير: وندب لبس السواد. (هامش ردالمحتار ۵/ ۶۶۰)(۱) وفي الهندية ۵: ۳۶۶ ندب لبس السواد(۲) البته د ماتم په اراده ممنوع دي. كما في الهندية ۵: ۳۶۱ (۳) فليراجع. وهوالموفق

---

۱) الدر المختار ۵: ۵۳۳، مسائل شتّى، قبيل كتاب الفرائض)

۲) فتاوى هندية ۵: ۳۳۰، كتاب الكراهية، الباب التاسع في اللبس)

۳) وفي الهندية: ولايجوز صنع الثياب أسود أوأكهب تأسفًا على الميت، قال صدر الحسام: لايجوز تسويد الثياب في منزل الميت، كذا في القنية.
(فتاوى هندية ۵: ۳۳۲، كتاب الكراهية، الباب التاسع في اللبس)

# باب الشعر

## ږیره په قرآن او حدیث کې ثابته ده که نه؟

**سوال:** څه وايي علماء کرام په دې مسئله کې چې ایا ږیره د قرآن او حدیث نه ثابته ده یا نه؟ بینوا توجروا

**المستفتي** مولانا علي رحمن مردان ... ۲۴/۹/۱۹۷۷ء

**الجواب:** محترم المقام دامت برکاتکم! د سلام وروسته! ښکاره خبره ده چې د ږیرې مسئله ډېره اوږده مسئله ده، حالاً دومره یادول بس دي چې ږیره پرېښودل واجب ده، (۱) او وجوب یې له سنتو نه ثابت دي. ږیره خریل مکرو تحریمي دي (۲). مرتکب یې فاسق دی او له یو موټي نه یې عادتاً هم کمول مکروه تحریمي او فسق دی (۳) **وهوالموفق**

---

۱) عن ابن عمر رضي الله تعالىٰ عنه عن النبي ﷺ: أنه أمر بإحفاء الشوارب وإعفاء اللحية... قال قال رسول الله ﷺ: خالفوا المشركين أحفوا الشوارب وأوفوا اللحى. (صحيح المسلم ۱:۱۲۹، كتاب الطهارة، باب خصال الفطرة)

۲) قال العلامة عبد الحق الدهلوي رحمة الله تعالىٰ: حلق كردن لحيه حرام است وروش افرنج وهنود است وگذاشتن آں بقدر قبضه واجب است واوراسنت گويند بمعنى طريقه مسلوك در دين است يا به جهت آں كه ثبوت آں به سنت است چنانچه نماز عيد راسنت گفته اند. (أشعة اللمعات ۱:۲۱۲، باب الترجل)

۳) قال العلامة ابن عابدين: إن الأخذ من اللحية وهي دون القبضة كما يفعله بعض المغاربة ومخنثة الرجال لم يبحه أحد وأخذ كلها فعل يهود الهنود ومجوس الأعاجم فحيث أدمن على فعل هذا المحرم يفسق.
(فتاوى تنقيح الحامدية ۱:۳۵۱، كتاب الشهادة)

## ږیره خریل لویه ګنا ده که وړه؟

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دي مسئلې باره کې چې شرعي لحاظ سره ږیره خریل کبیره ګناه ده او که صغیره ګناه؟ بینوا توجروا

**المستفتي** محمد شفیع پاک ارمی.... ۱۹۷۲ء ۶/۶

**الجواب:** ږیره خریل ګناه کبیره او حرامه ده. خصوصاً کله چې عادت جوړ شي. (فتاوی تنقیح الحامدیة ۱: ۳۵۱)(۱) **وهوالموفق**

## ږیره لویول افضل دي که له قبضې زیاته کمول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې کوم سړي ښخې ږیره خریلې نه وي یا له خریلو وروسته دومره لویه شي چې له قبضې هم اوږده شي. نو له قبضې نه زیاته کمول غوره دي که لویول؟ بینوا توجروا

**المستفتي** صاحب زاده بمعرفت نیاز محمد اینډ کو
چوک یادګار پشاور ښهر.... ۲/ محرم ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** ددې دواړو صورتونو یو حکم دی یعنې له قبضې نه زیاته کمول مکروه تحریمي دي او له قبضې نه

---

۱) قال العلامة ابن عابدين: سئل في شهادة محلوق اللحية هل تقبل أم لا؟

الجواب: لم أجد نقلًا صريحا في المسئلة مع ضيق الوقت وكثرة الاشتغال فإن كان حلق اللحية يخلّ بالمروء ة يمنع القبول وإلّا فلا... فعلى هذا فإن كان ممّن يعتادون الحلق ولا يعدّونه رذيلة بينهم لا يخل بمروء ته فتقبل شهادته لكن قد يقال إنّ الادمان على الصغيرة مفسق... إنّ الأخذ من اللحية وهي دون القبضة كما يفعله بعض المغاربة ومخنثة الرجال لم يبحه أحد وأخذ كلها فعل يهود الهنود ومجوس الأعاجم.

(فتاوی تنقيح الحامدية ۱:۳۵۱، كتاب الشهادة)

وتلې اندازه يې كمول واجب دي. كما هو رأى صاحب الهداية وابن الهمام.[۱]
او يا غوره دي. كما هو رأى البعض الآخر[۲]
نو بې مصلحته له شرعي قبضې زياته كمول غوره نه دي، بس.

**نوټ**: بحر الرائق ۲:۲۸ حاشيه (منحة الخالق) له زياتي نه كراهت معلومېږي.[۳] **وهوالموفق**

## د سنت مطابق وېښتانو پرېښودلو حد

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې د وېښتانو مسنون طريقه استركول يا اوږده پرېښودل دي. له دې پرته چې څومره وېښتان دي خلک يې انګريزي سر بولي. اګر كه اوس د انګريزانو وېښتانو ته وګورو نو زمونږ د سنتو برابر وېښتان يې پرېږدي. نو كه ټول وېښتان يو برابر پرېښودل شي او لاندې استرنشي نو دا به صحيح وي يا نه؟ بينوا توجروا

**المستفتي** معين الدين ګور نمنټ سكول شور سوات..... ۱۹۷۷ء/۸/۱۶

---

۱) قال العلامة ابن الهمام: (قوله وهو) أى القدر المسنون في اللحية (القبضة) قال في النهاية وما وراء ذلك يجب قطعه هكذا عن رسول الله ﷺ أنه كان يأخذ من اللحية من طولها وعرضها. (فتح القدير ۲:۲۷۰، باب مايوجب القضاء والكفارة)

۲) وفي المرقاة: وفي الإحياء قد اختلفوا فيما طال من اللحية فقيل إن قبض الرجل على لحيته وأخذ ما تحت القبضة فلا بأس به، وقد فعله ابن عمر وجماعة من التابعين واستحسنه الشعبي وابن سيرين. (مرقاة المفاتيح ۸:۲۹۸، باب الترجل)

۳) قال العلامة ابن عابدين: (قوله وقد صرح في النهاية بوجوب قطع ما زاد الخ)... مقتضاه الإثم بتركه إلّا أن يحمل الوجوب على الثبوت، قلت: وظاهر قول الهداية ولا يفعل لتطويل اللحية الخ يفيد الكراهة تأمل.
(منحة الخالق على البحر الرائق ۲:۲۸۰، كتاب الصوم، قبيل فصل في العوارض)

**الجواب:** تر اوږو پورې وېښتان لوېول مسنون دي لکه د غوږ تر نرمۍ او د اوږو تر منځ رسول مسنون دي، [1] يقال لها الوفرة، والجمة و اللمة [2] او له اوږو ښکته لوېول هم مشروع دي، [3] البته چې ښځو سره مشابهت نه وي، [4] چې کوم امر د مسنون اتباع سنت په نیت او ارادې وشي نو هغه د چا په تشبیه کولو ناروا کيږي نه [5] **وهوالموفق**.

## انګريزي وېښتان پرېښودل

**سوال:** څه وايي علماء دين دې مسئلې باره کې چې وېښته داسې سم شي چې انګريزي پيشن ګڼل کيږي جائز دي يا نا جائز؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** نا معلوم ... ۱۹۶۹ع/۹/۲

---

۱) عن أنس بن مالک قال کان شعر رسول الله ﷺ إلی نصف أذنيه ... وکان له شعر فوق الجمّة ودون الوفرة .. وکانت جمته تضرب شحمة أذنيه ... کان يبلغ شعره شحمة أذنيه. (شمائل ترمذي مع خصائل نبوي ۲۶،۲۵، باب ماجاء في شعر رسول الله ﷺ)

۲) قال العلامة محمّد زکريا رحمه الله: الجمة ما وصل من شعر الرأس إلی المنکبين والوفرة مالم يصل إليهما واللمّة ما جاوز شحمة الأذن سواء وصل إلی المنکبين أو لا. (حاشية شمائل ترمذي ۲۵، باب ماجاء في شعر رسول الله ﷺ)

۳) قال العلامة ملا علي القاري رحمه الله: لا شک أنّ طول الشعر ليس مذموماً ولا جاء أمر بقطع مازاد علی مقدار معلوم منه.
(مرقاة المفاتيح ۸:۳۰۹، باب الترجل، الفصل الثاني)

۴) عن ابن عباس رضي الله تعالی عنه قال قال النبي ﷺ لعن الله المتشبهين من الرجال بالنساء والمتشبهات من النساء بالرجال. (مشکوة المصابيح ۳۸۰، کتاب اللباس)

۵) قال العلامة ابن نجيم رحمه الله: اعلم أنّ التشبيه بأهل الکتاب لايکره في کل شئ فإنّا نأکل ونشرب کما يفعلون، إنّما الحرام هو التشبيه فيما کان مذموماً وفيما يقصد به التشبيه. (البحر الرائق ۲:۱۱، باب مايفسد الصلاة ومايکره فيها)

**الجواب:** د خلاف مسنون کېدو له وجې او هم د تشبه له وجې (۱) او د رکونت الى الكفار قلبي ميلان او رجحان ، لامله هم ناجائز دي . قال الله تعالى وَلَاتَرْكَنُوْا اِلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا (۲) **وهوالموفق**

## د سر وېښتانو شرعي حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د حضور ﷺ د سر مبارک وېښتان څنګه و او د سر د وېښتانو شرعي حکم څه دی ؟ بينوا توجروا

**المستفتي** شفيع الرحمن پيرپيائي

**الجواب:** ټول وېښتان خريل يا ټول وېښتان غټول د غوږونو تر نرمۍ پورې، تر اوږو او د نرمۍ او اوږو تر منځ ټول مسنون دي. (۳) البته ښځو (۴) او اهل هوا سره تشبيه حرامه ده (۵) **وهوالموفق**

---

۱) وفي المرقاة : (قال رسول الله ﷺ من تشبّه بقوم) أى من شبّه نفسه بالكفار مثلًا في اللباس وغيره أو بالفساق أو بالفجار أو بأهل التصوف والصلحاء الأبرار (فهو منهم) أى في الإثم والخير . (مرقاة المفاتيح ۸:۲۵۵، كتاب اللباس، مسئلة التشبيه)

۲) (سورة هود آيت :۱۱۳، پاره :۱۲)

۳) عن أنس بن مالک قال كان شعر رسول الله ﷺ إلىٰ نصف أذنيه... وكان له شعر فوق الجمة ودون الوفرة... وكانت جمته تضرب شحمة أذنيه ... كان يبلغ شعره شحمة أذنيه .

(شمائل ترمذي مع خصائل نبوي ۲۶،۲۵، باب ماجاء في شعر رسول الله ﷺ)

۴) عن ابن عباس رضي الله تعالىٰ عنه قال قال النبي ﷺ لعن الله المتشبهين من الرجال بالنساء والمتشبهات من النساء بالرجال . (مشكوة المصابيح ۳۸۰ كتاب اللباس)

۵) قال العلامة محمّد طاهر رحمه الله تعالىٰ :من تشبّه بقوم)...(باقي حاشيه په بل مخ)

## ښځو ته د وېښتانو د کاټولو حکم

**سوال:** څه وايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې ښځو ته د خپل سر د وېښتان کاټولو او کمولو څه حکم دی؟ بينوا توجروا

المستفتي: رحيم الله (رح) باچا نوشهره ... ۱۴۰۳هـ

**الجواب:** بې له حجه او عمرې (۱) نورو وختو کې ممنوع دي او بل دا چې د نارينه وو سره مشابهت راځي (۲) **وهوالموفق**

## تور خضاب لګول جائز نه دي

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې خضاب اسود

---

(د حاشيې پاتې برخه) بقوم فهو منهم أى من تشبه بالكفار في اللباس وغيره أو بالفساق أو بأهل التصوف أو بالصلحاء فهو منهم.

(مجمع بحار الأنوار ۱۷۸: ۳ باب الشين مع الباء)

۱) وفي الهندية: والمرأة في جميع ذلک كالرجل غير أنها... لا تحلق رأسها ولكن تقصر كذا في الهداية. (فتاوى هندية ۲۳۵: ۱، الباب الخامس في كيفية أداء الحج)

۲) قال العلامة الحصكفي رحمه الله: قطعت شعر رأسها أثمت ولعنت، زاد في البزازية وإن بإذن الزوج لأنه لا طاعة لمخلوق في معصية الخالق، ولذا يحرم على الرجل قطع لحيته والمعنى المؤثر التشبّه بالرجال.

(الدرالمختار ۲۸۸: ۵، كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

وقال العلامة طاهر رحمه الله: المرأة إذا حلقت رأسها إن كان لوجع أصابها لا بأس به وإن كان للتشبه بالرجال يكره.

(خلاصة الفتاوى ۳۷۷: ۴، كتاب الكراهية، الفصل التاسع في المتفرقات)

ځنګه دي؟ بينوا توجروا

**المستفتي** مسيح الله ډاكخانه نسته چارسده .... ۱۵/۷/۱۴۰۱ھ

**الجواب:** خالص په تورو باندي وېښته رنګول جائز نه دي. لحديث من سود لحيته سود الله وجهه، رواه الطبراني (ˈ) ولما في الهندية: وأما الخضاب بالسواد فمن فعل ذلك من الغزاة ليكون أهيب في أعين العدوّ فهو محمود عنه، اتفق عليه المشائخ رحمهم الله ومن فعل ذلك ليزين نفسه للنساء ويحبب نفسه اليهن فذلك مكروه وعليه عامة المشائخ، وبعضهم جوزوا ذلك من غير كراهة وروى عن أبي يوسف أنه قال كما يعجبني أن تتزين لي يعجبها أن أتزين لها كذا في الذخيرة (ˈ) انتهى، ولما في شرح التنوير: ويكره بالسواد (هامش ردالمحتار ۵: ۲۷۲)(ˈ). وهوالموفق

## د مودودي صاحب د ږيرې د غير محدود کېدو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دي مسئلې باره کې چې له څه مودې راهيسې جماعت اسلامي سره تړلي خلک وينو چې معمولي ږيره يې پرې اينښې وي، هغوی وايي چې شريعت کې د ږيرې هيڅ حد نشته او د مولانا مودودي د رسالو حواله ورکوي نو غوارم چې ماهنامه کې د ږيرې په شرعي حيثيت او اهميت باندي مدلل معلومات وليکئ او خپاره يې کړئ. د مسلمانانو لارښودنه وکړئ؟ بينوا توجروا

**المستفتي** نا معلوم ....

---

۱) قال العلامة العيني: وروى الطبراني عن جنادة عن أبي الدرداء يرفعه من خضب بالسواد سوّد الله وجهه يوم القيمة.

(عمدة القاري ۲۲:۵۱، كتاب اللباس: باب الخضاب)

۲) (فتاوى هندية ۵:۳۵۹، كتاب الكراهية، الباب العشرون في الزينة الخ)

۳) (الدرالمختار ۵:۲۹۹، كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

**الجواب:** ښکاره دې وي چې ږیره له یو موټي کمول د یو امام په نزد هم جائز نه ده، قال فی تنقیح الفتاوی ۱: ۳۵۱: قال العلائی فی کتاب الصوم قبیل فصل العوارض أن الأخذ من اللحیة وهی دون القبضه کما یفعله بعض المغاربة مخنثة الرجال لم یبحه أحد (۱) انتهی قلت: وکذا صرح به ابن الهمام فی شرح الهدایة (۲)

او مودودي صاحب چې د ږیرې د غیر محدودېدو قائل دی او د ږیرې له یو موټي کمېدو مجوز دی. نو له هغوی نه دا وپوښتئ چې که تاسو د فقهاء کرامو په رایه فیصله کول غواړئ، نو له مخکې عبارت نه معلومېږي چې ستاسي رایه د هغوی له رایې سره ټکر خوري.

که په مرفوع حدیثونو فیصله کول غواړئ نو په قولي حدیثونو کې د ږیرې متعلق پنځه لفظونه راغلي دي او د ټولو معنا او مراد بلا تعرضه لوېول دي.

قال الامام النووی فی شرح مسلم ۱: ۱۲۹: فحصل خمس روایات أعفوا وأوفوا وأرجوا ووفروا، ومعناها کلها ترکها علی حالها (۳) انتهی

یعنې ږیره لویه کړئ. او هیڅ تېرې ونکړئ او ددې د لوېولو لپاره هیڅ حد او منتهی نشته. خو مودودي صاحب د ږیرې لوېول د هر چا په زړه او ارادې پورې مقید او محدود کړي دي.

که د مودودي صاحب له فعلي حدیث نه چې عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده نه امام ترمذي روایت کړی دی.

---

۱) (فتاوی تنقیح الحامدیة ۱:۳۵۱، کتاب الشهادة)

۲) قال العلامة ابن الهمام رحمه الله: وأمّا الأخذ منها وهی دون ذلک کما یفعله بعض المغاربة ومخنّثة الرجال فلم یبحه أحد.

(فتح القدیر ۲:۲۷۰، کتاب الصوم باب مایوجب القضاء والکفارة)

۳) (حاشیة النواوی علی صحیح المسلم ۱:۱۲۹، باب مایوجب القضاء والکفارة)

ولفظه كان يأخذ من لحيته من عرضها وطولها(۱) نه استدلال کوي. نو په دې اره واضحه شوه چې په دې حديث کې د حد او مقدار بيان نشته. دا حديث مجمل ده. له بيان نه مخکې د عمل قابل نه دی. له پلټنې وروسته دا حقيقت ښکاره شو چې په مرفوع حديث کې ددې څه بيان نشته. البته په موقوفو احاديثو کې يعني د صحابه کرامو ﷺ په آثارو کې دا بيان شته. وهو ما ذكر الامام البخاري وغيره عن ابن عمر أنه كان يقبض على لحيته ويقطع ما زاد (بالمعنى)(۲)او حديث که په ښکاره موقوف دی. خو په حقيقت کې دا مرفوع دی. لأنّ حدّ الشيئ مما لا يدرک بالرأی والقياس نو د مبين له مجمل سره د يو ځای کولو نه وروسته معلومه شوه چې نبي ﷺ د قبضې له مقدار نه زيره نه ده کمه کړې او د مودودي استدلال غلط دی.

خو کېدای شي چې څوک دا پوښتنه وکړي چې قولي احاديث او فعلي حديث خپلو کې ټکر شوي. نو ځينو محققينو دا ځواب ورکړی چې قولي حديثونه منسوخ دي او فعلي حديث ناسخ دی او د اکثرو فقهاوو له عبارت نه څرګندېږي چې مقصود توسعه او پراخي ده. يې له تعرضه اوږدول هم جائز دي او له قبضې نه ونلې کمول هم جائز دي. بس(۳) وهو الموفق

۱) (جامع الترمذي ۲:۵۶۵، أبواب الإستيذان والأدب، باب ماجاء في الأخذ من اللحية)

۲) وكان ابن عمر إذا حجّ أو اعتمر قبض على لحيته فما فضل أخذه.
(صحيح البخاري ۲:۸۷۵، باب تقليم الأظفار، كتاب اللباس)

۳) قال العلامة ابن الهمام رحمه الله: القدر المسنون في اللحية القبضة قال في النهاية وما وراء ذلک يجب قطعه هكذا عن رسول الله ﷺأنه كان يأخذ من اللحية من طولها وعرضها... فإن قلت: يعارضه ما في الصحيحين عن ابن عمر رضي الله تعالى عنهما عنه عليه الصلوة والسلام أحفوا الشوارب واعفوا اللحى، فالجواب: أنه قد صحّ عن ابن عمر راوی هذا الحديث أنه كان يأخذ الفاضل عن القبضة... فأقل ما في الباب (پاتې حاشيه په بل مخ)

## د فیشن (موډ) په توګه تر اوږو وېښتان اوږدول

**سوال:** څه فرمايي علماء دين دې مسئلې باره کې چې نن د سر د وېښتانو فيشن. چې له اوږ و هم زيات اوږده وي څه حکم لري ؟ د ځينو حضراتو وېښتان تر اوږو هم زيات اوږده وي. محلقين رؤسکم ومقصرين. له مخې د غوږ له نرمۍ نه اوږدول د شريعت خلاف ښکاري دا هم چې ډېره له موټي کمول که له کوم دليل نه ثابته وي نو وضاحت وکړئ ؟ بينوا توجروا

**المستفتي** نائب صو بيدار شير محمد راولپنډی ... يکم اکتوبر ۱۹۷۵ء

**الجواب:** واضحه دې وي چې له کفارو فساقو او ښځو سره تشبيه حرامه ده (يعنې د دوی شعار کې) قال الله تعالى وَلَا تَرْكَنُوٓا۟ إِلَى ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ فَتَمَسَّكُمُ ٱلنَّارُ (١) وقال رسول الله من تشبه بقوم فهو منهم، رواه أحمد وأبو داؤد (مشكوة، كتاب اللباس) (٢) وقال النبي ﷺ: لعن الله المتشبهين من الرجال بالنساء (٣) نو که د دغه سړي وېښتان تر اوږو پورې اوږده وي نو دا خلاف سنت نه دي. ځکه چې ځينې اوقات وخت د نبي ﷺ وېښتان مبارک هم تر اوږو پورې رسېدلي و. كما في رواية مسلم: شعره يضرب منكبيه (٤) ويقال لها الجمّة،

---

(د حاشيې پاتې برخه) ان لم يحمل على النسخ كما هو أصلنا في عمل الراوی على خلاف مرويه مع أنه روى عن غير الراوي وعن النبي ﷺ بحمل الإعفاء على إعفائها من أن يأخذ غالبها أو كلّها كما هو فعل مجوس الأعاجم من حلق لحاهم فيقع بذلك الجمع بين الروايات. (فتح القدير ٢:٢٧٠، كتاب الصوم، باب مايوجب القضاء والكفارة)

١) (سورة هود آيت: ١٣)

٢) (مشكوة المصابيح ٣٧٥، كتاب اللباس)

٣) (صحيح البخاري ٢:٨٧٤ كتاب اللباس، باب المتشبهين بالنساء)

٤) (صحيح المسلم ٢:٢٥٨ كتاب الفضائل، باب صفة شعره ﷺ)

اوکه له دې متجاوز وي نو د ښځو سره د مشابهت له وجې حرام اوناروا دي او زيره له قبضې نه وتلې کمول د بخاري، کتاب اللباس کې له ابن عمر ﷺ نه مروي دي(۱)، او له مسند امام ابي حنيفه ﷺ نه هم مروي دي(۲). فليراجع.

**وهوالموفق**

## د تخرګ وېښتان وېستل سنت دي که خريل يې سنت دي؟

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د تخرګ وېښتان لرې کولو څه حکم دی؟ بينوا توجروا!

**المستفتي:** دين محمد وزيرستاني معلم حقانيه... ۲/شعبان ۱۹۹۷ء

**الجواب:** د تخرګ وېښتان وېستل سنت او عزيمت دي او په مشين چارې باندې خريل روا او رخصت دي (۳) **وهوالموفق**

---

۱) وکان ابن عمر إذا حج أو اعتمر قبض على لحيته فما فضل أخذه.
(صحيح البخاري ۲:۸۷۵ باب تقليم الأظفار، كتاب اللباس)

۲) ابوحنيفة عن الهيثم عن رجل أنّ أبا قحافة أتى النبي ﷺ ولحيته قد انتشرت قال فقال: لو أخذتم وأشار إلى نواحي لحيته.
(مسند الإمام الأعظم ۲۰۵، كتاب اللباس والزينة)

۳) وفي المرقاة: قال في شرح المشارق المفهوم من حديث ابي هريرة أن حلق الإبط ليس بسنة بل السنة نتفه... قال النووي النتف أفضل لمن قوى عليه لما حكى أن الشافعي كان يحلق إبطه فقال علمت أن السنة نتفه لكن لا أقوي على الوجع.
(مرقاة المفاتيح ۸:۲۹۰ باب الترجل)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: ذكر الحلق في الإبطين تبعا للجامع الصغير ايماء إلى جوازه وإن كان النتف هو السنة.
(ردالمحتار ۲:۲۲۲، كتاب الحج، باب الجنايات)

## د اوسني زماني د خضاب (وسمې) حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې موجوده زمانه کې خضاب (وسمه) استعمالول روا دي که نه روا؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** مولوی سيف الرحمن سرائي نورنګ بنو، ۱۹۶۹/۸/۱۸

**الجواب:** د موجوده زمانې خضاب چونکه خالص تور دي. لهذا د جمهورو احنافو علماوو په نزد بې استعمال نه روا دی. مګر د غازيانو لپاره جائز دي.

قال النبي ﷺ في حق أبي قحافه: غيروا هذا بشيء واجتنبوا السواد. (رواه مسلم)(١) وقال عليه الصلوة والسلام: يكون قوم في آخر الزمان يخضبون بهذا السواد كحوا صل الحمام لايجدون رائحة الجنة (رواه النسائي)(٢) وفي الدر المختار: ويكره بالسو اد. وفي ردالمحتار ٣٧٢/٥ قال في الذخيرة اما الخضاب بالسواد للغزو ليكون أهيب في عين العدو فهو محمود بالاتفاق ان ليزين نفسه للنساء فمكروه وعليه عامة المشائخ.(٣) وهو الموفق.

## د خنزير له وېښتانو د جوړ شوي برش استعمال

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې څينې بهرنيانو ډېر بوټ پالش والا برشونه دخنزيرانو له وېښتانو جوړ کړي دي. مهرباني وکړئ. ووايئ چې دبوټ پالش لپاره دا ډول برشونه کارول جائز دي يا نه؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** غلام سرور منسټري آف کامرس اسلام آباد... ۷ مارچ ۱۹۸۴ء

---

١) (صحيح المسلم ١٩٩:٢، كتاب اللباس والزينة، باب استحباب خضاب الشيب الخ)

٢) (سنن النسائي ٢٧٧:٢ كتاب الزينة، النهي عن الخضاب بالسواد)

٣) (ردالمحتار ٢٩٩:٥ كتاب الحظر والإباحة، فروع)

**الجواب:** كه په جزيي توګه دا معلومه شي چې دا برش د خنزير له وېښتانو جوړ شوي. نو دد ې استعمال ناروا دی. ځکه چې خنزير نجس العين دی. وېښتان يې هم نجس العين دي. يې له موزو ګنډلو نوره فايده اخيستل ترې منعه دي (هدايه) (۱) والله اعلم

## د ږيرې لوېولو يا لنډولو حكم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د ږيرې لپاره څه شرعي حد مقرر دی يا په خپله خوښه پرېښودل. د امت له علماوو دا اورېدل کيږي چې د ږيرې يو موټی اندازه سنت ده او له قبضې نه وړول يې ترک سنت ده. مع حاله يعني پرېښودل يې له مستحباتو شمېرل کيږي او په درمختار کې راغلي. لا بأس بأخذ أطراف اللحية، والسنة فيها القبضة وهو أن يقبض الرجل لحيته فما زاد منها على قبضته قطعه. كذا ذكره محمد رحمة الله تعالى في كتاب الآثار عن الامام، قال وبه نأخذ. وقال النبي ﷺأوفروا اللحى و أحفوا الشوارب لأن المشركين يقطعون اللحية ويتركون الشوارب فقال النبي ﷺ: خالفوا المشركين يعنى اقطعوا الشوارب وأوفروا اللحى الخ. فعلم منها أن اللحية بقدر القبضة سنة كما مرّ آنفا. ومن قال بخلافه ان القبضة ليس فيه دليل قولي فهو يقول مخالف الحديث كما قال المودو دی في رسائل ومسائل. او درمختار

---

۱) قال العلامة المرغيناني رحمه الله: ولا يجوز بيع شعر الخنزير لأنّه نجس العين فلا يجوز بيعه إهانة لهٗ ويجوز الانتفاع به للخرز للضرورة فإنّ ذلك العمل لا يتأتّى بدونه.
(هداية ۳:۵۵، كتاب البيوع، باب البيع الفاسد)

وقال العلامة الحصكفي: وشعر الخنزير لتجاسة عينه أى عين الخنزير أى بجميع أجزائه فيبطل بيعه، ابن كمال وإن جاز الانتفاع به لضرورة الخرز.
(الدرالمختار ۴:۱۲۶،۱۲۷، كتاب البيوع، باب البيع الفاسد)

کې حضر و اباحت کې دي عن المجتبى والبزازية (المرأة) اذا قطعت شعر رأسها أثمت ولعنت وان بأذن الزوج لأنه لاطاعة للمخلوق في معصية الخالق، ولذا يحرم قطع اللحية للرجل وهى دون القبضة كما يفعله بعض المغاربة ومخنثة الرجال لم يبحه أحد وأخذ كلها فعل اليهود والهنود، (تنقيح الحامدية: ٢٥١)

او مفسرينو د «فليغيرن خلق الله» لاندې ږيره کلول ممنوع ليکلي. اوس استفسار دادی چې د ږيرې لويولو يا تراشلو حد د شريعت له مخې څنګه دی؟ بينوا توجروا

**المستفتي** محمد مسعود الرحمن صدر جمعية علماء اسلام حلقه دربند

**الجواب:** امام نووي په شرح صحيح مسلم ١٢٩مخ کې ليکلي چې د ږيرې باره کې پنځه لفظونه راغلي: «أعفوا. أوفوا. أرخوا وأرجوا. و وفروا». او ټول په ټوله معنا ترک بلا تعرض دی، (١) لهذا د هغه مرفوع احاديثو پر بناء ضروري ده چې ږيره کې هيڅ تعرض ونشي. خو إمام ترمذي رحمة الله د عمرو بن شعيب عن أبيه عن جده نه مرفوعاً نقل کړي چې پيغمبر عليه الصلوة والسلام له ږيرې نه طولاً او عرضا اخيستې ده «بحواله مشکوٰة شريف ٣٨١»(٢) خو دا حديث د إبهام او إجمال له وجې د عمل قابل نه دی. کله چې ابهام او اجمال لرې نشي. نو دا ضروري ده چې د صحابه کرامو آثارو ته مراجعت وشي او د هغوي په قول او عمل باندې إبهام لرې شي.

---

١) قال العلامة النووي رحمه الله: فحصل خمس روايات أعفوا وأوفوا وأرخوا وأرجوا ووفّروا ومعناها كلّها تركها على حالها.
(حاشية النواوى شرح المسلم ١٢٩:١، باب خصال الفطرة)

٢) عن عمرو بن شعيب عن أبيه عن جدّه أنّ النبي ﷺ كان يأخذ من لحيته من عرضها وطولها، رواه الترمذي. (مشكوة المصابيح ٣٨١، الفصل الثانى، باب الترجل)

له مراجعت وروسته مو ډېر اثار وموندل چې له هغو نه د ابن عمر ﷺ اثر مشهور دی (ذکره البخاري[۱] و رواه محمد[۲]، وأبوحنیفه)[۳]، او مضمون يې دا دی چې ابن عمر ﷺ له قبضې نه بهر وتلي وېښتان اخيستي دي، نو له دې اثر نه د مرفوع حديث ابهام له دوو وجو ختم شو، اول دا چې دغه صحابي رسول الله ﷺ په کولو ليدلی و، دوم دا چې مقاديرو کې رايه او قياس دخل نه لري، لهذادا حديث په ښکاره موقوف او حقيقت کې مرفوع دی او دا ترې ثابتيږي چې دې امر کې توسعه شته. يعني بې تعرضه يې پرېښودل جائز دي او بې تعرضه، له قبضې بهر اخيستل هم روا دي او ممکنه ده چې نسخ مراد شي چې د ځينو محققينو رايه همدا ده. خو له قبضې نه کمول يې نه له مرفوع حديث ثابت دي او نه له آثار صحابه ﷺ نه، بلکې فتح القدير[۴] او تنقيح الفتاوی

---

۱) عن ابن عمر عن النبي ﷺ قال خالفوا المشركين وفّروا اللحى واحفوا الشوارب، وكان ابن عمر إذا حج أو اعتمر قبض على لحيته فما فضل أخذه.
(صحيح البخاري ۲:۸۷۵، باب تقليم الأظفار، كتاب اللباس)

۲) عن ابن عمر رضي الله تعالىٰ عنه أنّه كان يقبض على لحيته ثم يقص ما تحت القبضة، قال محمّد وبه نأخذ وهو قول أبي حنيفة رحمه الله تعالىٰ.
(كتاب الآثار ۱۵۰، باب حف الشعر من الوجه)

۳) أبوحنيفة عن الهيثم عن رجل أنّ أباقحافة أتى النبي ﷺ ولحيته قد انتشرت، قال فقال لو أخذتم وأشار إلىٰ نواحي لحيته.
(مسند الإمام الأعظم ۲۰۵ كتاب اللباس والزينة)

۴) قال العلامة ابن الهمام رحمه الله تعالىٰ: وأمّا الأخذ منها وهى دون ذلک كما يفعله بعض المغاربة ومخنثة الرجال فلم يبحه أحد.
(فتح القدير ۲:۲۷۰، كتاب الصوم، باب مايوجب القضاء والكفارة)

الحامديه [۱] کي ليکلي دي لم يبحه أحد لهذا له دي مخالفت له اجماع نه مخالفت دی او له امام نووي نه ځيني مبهم عبارات نقل شوي دي چي نه يې قايل معلوم دی او نه يې مسلک. لهذا په داسي اقوالو تمسک کول جهالت دی. بس.والسلام

## وسمه نکروزو سره يو ځای کول او د استعمالولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې خضاب (وسمې) سره نکروزې ګډې شي او استعمال شي نو روا دي يا نا روا؟ موطأ امام محمد رحمه الله باب الخضاب کې روا ليکلي. ايا په دې فتوا ده.که د جواز فتوا وي، نو من سوّد شعره سوّد الله وجهه څه مطلب دی ؟بينوا توجروا

**المستفتي:** مولوي سيف الرحمن سرائی نورنګ بنو... ۱۹۶۹ء/۸/۱۸

**الجواب:** د موجوده زماني مائع خضاب.چې له نکريزو سره ګډ شي نو خالص تورو الی نه راځي. لهذا جائز ده او امام محمد رحمه الله چې د کومو خضابو په اړه د جواز حکم ورکړی هغه مائع نه دي بلکي هغه پاڼې او پڼي دي چې رنګ يې شينوالي ته مائل دی او له داسي خضابو سره نکريزې استعمالول ناروا دي. ځکه چې د دواړو په خاص اختلاط خالص تور رنګ جوړيږي

(فليراجع إلى التعليق الممجد ۳۹۰) حيث قال في القاموس والمغرب هو ورق النيل والخضاب به لايكون سواداً خالصاً بل مائلاً إلى الخضرة،نعم! لوخضب الشعر أولاً بالحناء صرفاً ثم بالوسمة عليه يحصل

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى : إنّ الأخذ من اللحية وهي دون القبضة كما يفعله بعض المغاربة ومخنثة الرجال لم يبحه أحد.
(فتاوى تنقيح الحامدية ۱:۳۵۱، كتاب الشهادة)

السواد الخالص فيكون ممنوعاً( ) انتهى باختصار۔ وهو الموفق

## له نامه لاندې د وېښتانو لرې کولو موده

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دي مسئلې باره کښې چې له نامه لاندې وېښتانو ته څه وخت مقرر دی يا نه؟ ما اورېدلي چې څلوېښتو ورځو کښې لرې کول پکار دي ايا دا صحيح دي؟ او تر دې زيات وخت اړولو وروسته ګناه کيږي؟ بينوا توجروا

**المستفتي** نا معلوم... ۱۴۰۱ھ ۱۵

**الجواب:** له نامه لاندې هفته کښې يو وار وېښتان لرې کول غوره دي او له څلوېښتو ورځو اړول يې مکروه دي. لما في شرح التنوير: ويستحب حلق عانته وتنظيف بدنه بالإغتسال في كل أسبوع مرة، والأفضل يوم الجمعة وجاز في كل خمسة عشرة وكره تركه وراء أربعين مجتبى(هامش رد المحتار ۵:۳۵۸)( )، لما روى مسلم عن أنس بن مالك وقّت لنا في قصّ الشارب وتقليم الأظفار ونتف الإبط وحلق العانة أن لا نترك من أربعين

---

۱) (التعليق الممجد ۳۹۲، باب الخضاب)

وقال العلامة أنور شاه الكشميري رحمه الله تعالى: وفي الحديث النهى الشديد عن الخضاب الأسود الذى لا يميز به بين الشيخ والشاب، وأمّا اختلاط الحناء والكتم فجائز وزعم الناس أنّ الكتم الوسمة المتخذة من النيل، والحق أنّ الكتم تجلب من اليمن وتشدد الأحمرية لا السواد، والوسمة إذ لم تكن سود أشد السواد ويتميز بين الشيخ والشاب فجائزة كما في موطاء محمد.

(العرف الشذى على جامع الترمذي ۱:۴۳۸، أبواب اللباس، باب ماجاء في الخضاب)

۲) (الدر المختار ۵:۲۸۸، كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع، فروع)

ليلة.(١) وهوالموفق

## له تورو خضابو پرته نور خضاب لګول

**سوال:** څه وايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د يو سړي ږيره مخکې له وخته سپينه شوې وي نو په دې وسمه لګول وغيره جائز دي که نه؟
بينوا توجروا

المستفتي مولانا عبد الباري ډاکخانه توپي زوړ بازار... ۱۹۸۴ء، ۹/۴

**الجواب:** پرته له سوچه تورو الي نور رنګونه مشروع دي (هنديه)(٢) وهوالموفق

---

١) (صحيح المسلم ١٢٩:١، باب خصال الفطرة)

وفي الهندية: الأفضل أن يقلم أظفاره ويحفي شاربه ويحلق عانته وينظف بدنه بالاغتسال في كل أسبوع مرّة، فإن لم يفعل ففي كل خمسة عشرة يوماً ولا يعذر في تركه وراء الأربعين، فالأسبوع هو الأفضل والخمسة عشر الأوسط والأربعون الأبعد ولا عذر فيما وراء الأربعين ويستحق الوعيد.

(فتاوى هندية ٥:٣٥٧، كتاب الكراهية، الباب التاسع عشر في الختان الخ)

٢) وفي الهندية: اتفق المشائخ رحمهم الله تعالىٰ أنّ الخضاب في حق الرجال بالحمرة سنة وأنه من سيماء المسلمين وعلاماتهم، أمّا الخضاب بالسواد فمن فعل ذلک من الغزاة ليكون أهيب في عين العدو فهو محمود منه اتفق عليه المشائخ رحمهم الله تعالىٰ، ومن فعل ذلک ليزين نفسه للنساء وليحبب نفسه إليهن فذلک مكروه وعليه عامّة المشائخ وبعضهم جوز ذلک من غير كراهة. (فتاوى هندية ٥:٣٥٩، كتاب الكراهية الباب، العشرون في الزينة واتخاذ الخادم للخدمة)

قال العلامة بدر الدين العيني رحمه الله تعالىٰ: واختلف فيه فالجمهور على أنّ الخضاب بالحمرة والصفرة دون السواد لما روي فيه... عن ابن عباس يرفعه يكون في آخر الزمان قوم يخضبون بالسواد لايجدون ريح الجنة.

(عمدة القاري ٢٢:٥١، باب الخضاب)

## ږیره کلونکی لعنتي دی

**سوال:** څه وايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې ږیره کلونکي سړي ته لعنتي ويل شرعي لحاظ سره جائز دي يا نه؟ بينوا توجروا

المستفي محمد شفيع ...... ۱۹۷۲ء۲۶/۶۲/

**الجواب:** جائز دي چې خاص کس په ګوته نه کړي (۱) **وهوالموفق**

## د مزدورۍ لپاره ږیره خریل ناروا دي

**سوال:** څه وايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې يو کس ته د ږيرې په وجه نوکري نه ملاويږي څکه چې بوډا معلوميږي. اوس که دا سړی په دې خيال ږيره کلوي چې کار يا نوکري وغيره ملاو شي او بيا له نوکرۍ وروسته دغه يخه اراده وي چې ږيره به پريږدم، ددې حکم څه دی ؟ بينوا توجروا

المستفتي مولانا فخر الدين. برمنګهم. انګلينډ...... ۱۹۷۲ء۱۵/۸/

**الجواب:** د نوکرۍ او مزدورۍ حاصلولو لپاره ږيره خريل حرام دي، بې فايدې هم دي.. څکه چې انګريزان دومره بېوقوفه نه دي چې دږيرې په وجه دوکه کې

---

۱) قال العلامة الشامي رحمه الله تعالیٰ : حقيقة اللعن المشهورة هي الطرد عن الرحمة وهى لا تكون إلّا الكافر، ولذا لم تجز على معين... بخلاف غير المعين كالظالمين والكاذبين فيجوز أيضا لأنّ المراد جنس الظالمين وفيهم من يموت كافراً فيكون اللعن لبيان أنّ هذا الوصف وصف الكافرين للتنفير عنه والتحذير منه لا لقصد اللعن على كل فرد من هذا الجنس لأنّ لعن الواحد المعين كهذا الظالم لايجوز.

(ردالمحتار ۳:۵۸۷، مطلب في حكم لعن العصاة، باب الرجعة)

راشي-(١) وهوالموفق

## د ږیرې محل او مقدار څومره دی

**سوال:** څه وايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې د ږيرې محل او مقدار څومره دی؟ بينوا توجروا

المستفتي نامعلوم ...١٩٨٧،٩،٩

**الجواب:** اللحية ما نبت على الذقن واللحيين والعذارين والعارضين (٢)، لا ما نبت تحت الشفة السفلى والحلق والخدين (). وهوالموفق

---

١) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: ولذا يحرم للرجل قطع لحيته... قال العلائي في كتاب الصوم قبيل فصل العوارض: أن الأخذ من اللحية وهي دون القبضة كما يفعله بعض المغاربة ومخنثة الرجال لم يبحه أحد وأخذ كلها فعل يهود الهنود ومجوس الأعاجم. (فتاوى تنقيح الحامدية ١:٣٥١ كتاب الشهادة)

وفي شرح المجلة: درء المفاسد أولى من جلب المنافع أى إذا تعارض مفسدة ومصلحة قدم رفع المفسدة لأن اعتناء الشرع بالمنهيات أشدّ من اعتنائه بالمأمورات. (شرح المجلة لسليم رستم باز رحمه الله تعالى ٣٢، المادة: ٣٠)

٢) في مجموعة قواعد الفقه: اللحية شعر اللحيين والذقن واللحى هو العظم الذى عليه الأسنان والذقن هو مجتمع اللحيين.

(مجموعة قواعد الفقه ٤٥٣ بحث اللام)

قال العلامة محمّد طاهر رحمه الله تعالى: اللحية اسم لجمع من الشعر مانبت على الخدّين والذقن.

(مجمع البحار الأنوار ٤٨٨:٤ باب لح)

## «دږیرې لپاره څه شرعي حد نشته» د ویونکي حکم

**سوال:** څه وايي علماء کرام دې مسئلې باره کې. زيد وايي چې د احنافو د مذهب پر بنا ږیره له قبضې کمه پرېښودل نه دي پکار. ځکه چې له رسول الله ﷺ نه پنځه الفاظ منقول دي (أعفوا. أوفوا. أوفروا. أرجوا) د ټولو معنا امام نووي دا کړې ده، «أتركوها على حالها ولا تعرضوا لها» اخر کې بيې داسې ليکلي «والمختار تركها على حالها» هو احنافو بعضې فتاواو کې له موټي زياته کمول جائز ليکلي دي. د نورو د لائلو پر بنا فتاوی رشيديه. بهشتي زيور وغيره هم دا ليکلي دي، چې له قبضې نه کمول او خريل دواړه يو برابر دي. اوعمر وايي چې د ږیرې لپاره کوم شرعي حد نشته. بلکې دومره وېښتان چې مخ پرې پټ وي بس دي. ځکه چې ما له يو لوی مولوي صاحب نه اورېدلي چې د ږیرې لپاره هيڅ حد نشته بلکې دومره وېښتان بس دي چې په مخ باندې ښکاري؟ بينوا توجروا

المستفتي مولوی محمد اسحاق. لوند خوړ ۹ ربيع الثاني ۱۳۹۵هـ ۹۸

---

۱) في الهندية: ولا يحلق شعر حلقه وعن أبي يوسف رحمه الله تعالى لا بأس بذلك، ولا بأس بأخذ الحاجبين وشعر وجهه مالم يتشبه بالمخنث كذا في الينا بيع، ونتف الفنبكين بدعة وهما جانبا الغنفقة وهى شعر الشفة السفلى.

(فتاوی هندية ۵:۳۵۸ کتاب الكراهية، البا ب التاسع عشر في الختان الخ)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: ولا بأس بالأخذ من حاجبه وشعر وجهه ما لم يشبه فعل المخنثين ولا يحلق شعر حلقه وعن أبي يوسف لا بأس به.

(ردالمحتار ۲:۱۲۳، کتاب الصوم، قبيل مطلب في الأخذ من اللحية)

**الجواب:** د عمر قول له حدیثو[۱] او فقه دواړو نه مخالف دی. فتح القدیر[۲] او تنقیح الفتاوی[۳] کې په عدم جواز باندې اجماع نقل شوی. ښائي دا سړی له مودودي صاحب نه متاثره وي. پکار ده چې په سمه لار باندې روان شي او خطرو کې ونه لوېږي. **وهوالموفق**

## ږیره کلونکي سره د ترک موالات حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې ږیره کلونکي سره ترک موالات څنګه دی؟ بینوا توجرو

**المستفتي** عبدالله نوښهره

**الجواب:** ږیره کلول اګر که یو حرام کار دی. **کمافی تنقیح الفتاوی**[۴] **یحرم**

---

۱) عن ابن عمر رضي الله تعالىٰ قال قال رسول الله ﷺ: خالفوا المشركين أوفروا اللحى واحفوا الشوارب وفي رواية انهكوا الشوارب واعفوا اللّحى، متفق عليه.
(مشكوة المصابيح ۳۸۰ باب الترجل)

۲) قال العلامة ابن الهمام رحمه الله تعالىٰ: وأما الأخذ منها وهى دون ذلك كما يفعله بعض المغاربة ومخنثة الرجال فلم يبحه أحد.
(فتح القدير ۲:۲۷۰ كتاب الصوم، باب مايوجب القضاء والكفارة)

۳) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: ولذا يحرم للرجل قطع لحيته... وقال العلائي في كتاب الصوم قبيل فصل العوارض أن الأخذ من اللحية وهى دون القبضة كما يفعله بعض المغاربة ومخنثة الرجال لم يبحه أحد وأخذ كلها فعل يهود الهنود ومجوس الأعاجم.
(فتاوى تنقيح الحامدية ۱:۳۵۱ كتاب الشهادة)

۴) (فتاوى تنقيح الحامدية ۱:۳۵۱ كتاب الشهادة)

للرجل قطع لحية خو کفر او ارتداد نه دی (۱) باقي ترک موالات او بايکاټ هر فاسق سره مشروع دی (۲) وهوالموفق

## د ږيرې ږمنځولو لپاره د وخت ټاکلو مسئله

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د سر او ږيرې ږمنځولو لپاره د وخت ټاکلو په اړه کوم حديث ثابت دی؟ که کوم يو حديث مو له نظره تېر شوی وي نو پوره حواله راکړئ؟ بينوا توجروا

المستفتي نا معلوم ... ۱۴۰۵،۱۹۷۵

**الجواب:** د وخت ټاکلو په اړه کوم حديث نه دی معلوم. وهوالموفق

## ږيره کلوونکي نه د فاسق فاجر ويونکي امام معزولول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د جمعة المبارک په ورځ خطيب د حضور ﷺ سيرت بيانوي وايي چې ږيره پرېښودل ضروري دي. ږيره کلوونکی شاهدي نه شي ادا کولی.

---

۱) في شرح العقائد: والكبيرة لاتخرج العبد المؤمن من الإيمان ... أن مرتكب الكبيرة فاسق. (شرح العقائد ۸۴، ۸۲)

۲) قال الملا علي القاري رحمه الله تعالى: قال الخطابي رخص للمسلم أن يغضب على أخيه ثلاث ليال لقلته ولايجوز فوقها إلاّ إذا كان الهجران في حق من حقوق الله تعالى، فيجوز فوق ذلک ... وأجمع العلماء على أن من خاف من مكالمة أحد وصلته مايفسد عليه دينه أو يدخل مضرّته في دنياه يجوز له مجانبته... فإن هجرة أهل الأهواء والبدع واجبة على مر الأوقات مالم يظهر منه التوبة والرجوع إلى الحق.
(مرقاة المفاتيح ۹:۲۶۲ باب ماينهى عنه من التهاجر والتقاطع)

فاسق او فاجر دی. د حضور ﷺ په وړاندې به د قیامت په ورځ څنګه مخ ښکاره کوو. د حضور ﷺ اتباع عملاً ضروري ده. ایا د داسې الفاظو په ویلو سره د دغه خطیب پسې لمونځ کیږي. که لرې کړل شي؟ یو بل کس مسجد کې وویل چې دغه خطیب پسې لمونځ نه کوم. اوس ځان سره د نورو خلکو د ملاتړ کوشش هم کوي چې دا خطیب له جومات نه وباسي د دغه سړي څه حکم دی؟ بینوا توجروا

**المستفتي** عبدالعزیز کیمل پور... ۱۱ ربیع الثاني ۱۳۹۵ھ

**الجواب:** دا خطیب په حقه دی. لرې کول یې ظلم دی. أن حلق اللحیة مفسق کما فی تنقیح الفتاوی ۱: ۳۵۱ (۱) والعزل بلا وجه شرعی ظلم فلیراجع إلی ردالمحتار ۳: ۵۳۴ (۲) والأشباه ۲۰۲ (۳) وهوالموفق

## د وېښتانو په اړه سنت ثابته

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دي مسئلې باره کې چې د انګریزي وېښتانو

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: أن الأخذ من اللحية وهي دون القبضة كما يفعله بعض المغاربة ومخنثة الرجال لم يبحه أحد وأخذ كلها فعل يهود الهنود ومجوس الأعاجم، فحيث أدمن على فعل هذا المحرم يفسق.
(تنقيح الحامدية ۱: ۳۵۱ كتاب الشهادة)

۲) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: وقدمنا عن البحر حكم عزل القاضي لمدرس ونحوه وهو أنه لايجوز إلّا بجنحة وعدم أهلية.
(ردالمحتار ۳: ۴۵۲ كتاب الوقف، مطلب للواقف عزل الناظر)

۳) قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: ليس للقاضي عزل الناظر بمجرد شكاية المستحقين حتى يثبتوا عليه خيانة. (الأشباه والنظائر ۱۹۵ كتاب الوقف)

باره کې وضاحت وکړئ؟ بینوا توجروا

**المستفتی** عزیزالدین متعلم حقانیه ۹ ربیع الاول ۱۳۹۵ھ

**الجواب:** د وېښتانو متعلق سنت ثابته حلق دی[۱] یا وفروه، لمه، جمه کې چې کوم یو پربږدي، [۲] او انګریزي وېښتان له دې سنت ثابته مخالف دي، دا رنګې له کفارو او فساقو سره مشابهت راځي چې هغه حرام دی[۳]،

قال الله تبارك وتعالىٰ: وَلَا تَرْكَنُوْا الخ([۴]) وقال علیة الصلوة

---

۱) في الهندية: وفي روضة الزندويستي أن السنة في شعر الرأس إما الفرق وإما الحلق وذكر الطحاوي الحلق سنة ونسب ذلك إلى العلماء الثلاثة كذا في التتارخانية.
(فتاوى هندية ۵:۳۵۷ كتاب الكراهية، الباب التاسع عشر في الختان الخ)

۲) عن أنس بن مالك رضي الله تعالىٰ عنه قال كان شعر رسول الله ﷺ إلى نصف أذنيه...وكان له شعر فوق الجمّة ودون الوفرة... وكانت جمّته تضرب شحمة أذنيه... كان يبلغ شعره شحمة أذنيه.
وقال العلامة محمّد زكريا رحمه الله تعالىٰ: الجمّة ما وصل من شعر الرأس إلى المنكبين والوفرة مالم يصل إليهما واللمّة ماجاوز شحمة الأذن سواء وصل إلى المنكبين أولا. (شمائل الترمذي مع حاشيته ۲۶،۲۵ باب ماجاء في شعر رسول الله ﷺ)

۳) قال العلامة محمد طاهر رحمه الله تعالىٰ: من تشبه بقوم فهو منهم أى من تشبه بالكفار في اللباس وغيره أو بالفساق أو بأهل التصوف أو بالصلحاء فهو منهم.
(مجمع بحار الأنوار ۳:۱۷۸ باب الشين مع الباء)

۴) قال الله تبارک وتعالى: وَلَا تَرْكَنُوْٓا إِلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ أَوْلِيَآءَ ثُمَّ لَا تُنْصَرُوْنَ.
(سورة هود آيت:۱۱۳، پاره:۱۲)

والسلام من تشبه بقوم الخ( )وهو الموفق

## گنجي ته د وېښتانو لګولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې زيانره ګنجيان مصنوعي وېښتان لګوي دا نه معلومېږي چې دا وېښتان د حرام څناور دي که د حلال. يا د وربښمو وغيره. که منعه وي نو بيا غاښ لګول څنګه جائز دي؟ بينوا توجروا

**المستفتي** مولانا فخر الدين بر منګهم انګليډ ۱۹۷۲، ۸، ۱۵

**الجواب:** ګنجي ته وېښتان لګول جائز دي لدفع الشين ونظيره اتخاذه الأنف من الذهب والفضه كما ورد في الحديث الصحيح الذي رواه أصحاب السنن الثلثة وأحمد( ) خو د انسان وېښتان لګول مکروه تحريمي دي [۳] او د خنزير وېښتان لګول حرام او مانع عن

---

۱) في المرقاة: قال رسول الله ﷺ من تشبه بقوم فهو منهم، أي من شبه نفسه بالكفار مثلًا في اللباس وغيره أو بالفساق أو بالفجار أو بأهل التصوف والصلحاء الأبرار (فهو منهم) أي في الإثم والخير.

(مرقاة المفاتيح ۸:۲۵۵ كتاب اللباس، مسئلة التشبه)

۲) في الدراية: حديث أن عرفجة بن أسد أصيب أنفه يوم الكلاب فانتن فأمره النبي ﷺ أن يتخذ أنفه من ذهب. أصحاب السنن الثلاثة وأحمد.

(الدراية على هامش الهداية ۴:۴۵۷ كتاب الكراهية، فصل في اللبس)

۳) في الهندية: وصل الشعر بشعر الآدمي حرام سواء كان شعرها أوشعر غيرها كذا في الإختيار شرح المختار.

(فتاوى هندية ۵:۳۵۸ كتاب الكراهية، الباب التاسع عشر في الختان الخ)

صحة الصلوة دي [۱] او کله چې د خنزير وېښتان کېدو کې شک او تردد وي؛ نو د فتوى له حيثيته جائز دي، خو له تقوا مخالفت دی [۲] او تغير لخلق الله منعه دی چې په دېکښې شرعي اجازه نشته. فافهم [۳]. **وهوالموفق**

## ښځو ته د فېشن په توګه د وېښتانو پرې کولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د محمدي د شريعت له مخې مسلمانې ښځې ته دفېشن په توګه وېښتان پرې کول څه حکم لري؟ او په کومه درجه کې ممانعت لري؟ بينوا توجروا

**المستفتي** محمد اسحاق هانګ کانګ ...۱۱/۲/۱۹۷۴ء

---

۱) قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالىٰ: (قوله ينتفع به) أى يجوز الإنتفاع بشعر الخنزير دفعاً لما يتوهم من منع بيعه ولكنه مقيد بالخرز للضرورة... وما ذكر في بعض المواضع من جواز الصلوة الخرازين مع شعر الخنزير وإن كان أكثر من قدر الدرهم فهو مخرج على قول محمّد بطهارته وأما على قول أبي يوسف فلا وهو الوجه.
(البحر الرائق ۶:۸۱ كتاب البيوع، باب البيع الفاسد)

۲) في المرقاة: وفي شرح السنة هذا الحديث أصل في الورع وهو أن ما أشتبه أمره في التحليل والتحريم ولا يعرف له أصل متقدم فالورع أن يتركه ويجتنبه.
(مرقاة المفاتيح ۶:۳۷ باب الكسب وطلب الحلال)

۳) قال العلامة القرطبى رحمه الله تعالىٰ: (فَلَيغيرنّ خَلقَ الله) دين الله وقاله النخعى، واختاره الطبري قال: وإذا كان ذلک معناه دخل فيه فعل كل ما نهى الله عنه من خصاء ووشم وغير ذلک من المعاصي.
(تفسير القرطبي ۵:۳۷۶ سورة النساء آيت: ۱۱۹)

**الجواب:** چونکې په دغه وېښتانو پرې کولو کې له کفارو سره مشابهت موجود دی (۱) او کله له سړيو سره هم مشابهت راځي، لهذا دا فېشن ناروا دی (۲) **وهوالموفق**

## دوايي باندې همېشه لپاره د وېښتانو ختمولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې. داسې دوا ئې سبا جوړه شوې ده چې په وېښتانو ولګېږي د تل لپاره وېښتان نه راځېږي. ايا ددې استعمال روا دی؟ څوک چې يې د سر د وېښتانو ختمولو لپاره استعمالوي. څه حکم لري؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** سيد نصيب علي شاه بنوي متعلم حقانيه... ۱۳/جنوري ۱۹۷۵ء

**الجواب:** شرعاً غير ممنوع ده (۳) او د طب له لحاظه هم ضرري ده. **وهوالموفق**

## له نامه لاندې د وېښتانو حدود او حلقه دُبر او ذکر وېښتانو خرېلو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې له نامه لاندې

---

۱) قال العلامة محمد طاهر رحمه الله تعالى: من تشبه بقوم فهو منهم أى من تشبه بالكفار في اللباس وغيره أو بالفساق أو بأهل التصوف أو بالصلحاء فهو منهم.
(مجمع بحار الأنوار۳:۱۷۸ باب الشين مع الباء)

۲) قال النبي ﷺ: لعن الله المتشبّهين من الرجال بالنساء والمتشبّهات من النساء بالرجال، رواه البخاري. (مشكوة المصابيح ۳۸۰ كتاب اللباس، باب الترّجل)

۳) نظيره مافي الهندية: ولو عالج بالنورة في العانة يجوز كذا في الغرائب.
(فتاوى هندية۵:۳۵۸ كتاب الكراهية، الباب التاسع عشر في الختان الخ)
وفي حاشية الصحيح للإمام البخاري: وذكر الحلق لأنه الأغلب وإلّا فيجوز الإزالة بالنورة والنتف وغيرهما. (صحيح البخاري ۲:۸۷۵ كتاب الأدب، باب تقليم الأظفار)

وېښتانو لرې کولو حدود څومره دي او د حلقه دبر څه حکم دی ؟ بينوا توجروا

**المستفتي** روح الامين پشاور يونيورسټي

**الجواب:** کوم وېښتان چې د نورو وېښتانو غټ او ممتاز دي د هغو لرې کول ضروري دي البته د ذکر او حلقه د بر وېښتان لرې کول هم مباح دي. شامي [۱]، هنديه [۲] **وهوالموفق**

## له نامه لاندې وېښتان د اوږدې مودې لپاره په دوا صفا کول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د اوس زمانې په ايجاداتو کې داسې پوډر يا تېل نما دوايي ايجاد شوې چې د انسان په بدن لګولو سره فوراً وېښتان ختموي او تقريباً پينځه شپږ مياشتو پورې وېښتان نه ښکاري. ايا دا پوډر له نامه لاندې صفايي لپاره استعمالېدی شي که نه ؟ که استعمال ناجائز وي نو شرعي دلايلو سره ثبوت راکړئ. مننه ؟ بينوا توجروا

**المستفتي** عزيز الرحمن بنوي متعلم حقانيه ...۲۳/ جنوري ۱۹۷۵ء

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ : (قوله ويستحب حلق عانته) قال في الهندية : ويبتدئ من تحت السرّة، ولو عالج بالنورة يجوز كذا في الغرائب.
(ردالمحتار ۵:۲۸۸ كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

۲) في الهندية : ويبتدئ في حلق العانة من تحت السرّة، ولو عالج بالنورة يجوز كذا في الغرائب. (فتاوى هندية ۵:۳۵۸ كتاب الكراهية، الباب التاسع عشر في الختان الخ)

وقال العلامة ابن حجر رحمه الله تعالىٰ : قال النووي، المراد بالعانة الشعر الذي فوق ذكر الرجل وحواليه، وكذا الشعر الذي حوالي فرج المرأة، ونقل عن أبي العباس بن سريج أنه الشعر النابت حول حلقة الدبر فتحصل من مجموع هذا استحباب حلق جميع ما على القبل والدبر وحولهما.
(فتح الباري ۱۰:۳۴۳ كتاب اللباس، باب قصّ الشارب)

**الجواب:** ددې دوا استعمال روا دی. په دیکښې ګنا نشته. یدل علیه ما فی ردالمحتار ۲:۳۵۸ ولوعالج بالنورة، یجوزکذافی الغرائب(۱) فافهم وهوالموفق

## بریتونه چاړه باندې صفا کول بدعت نه دی

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کښې چې زمونږه علاقه «زیارت» علماء کرام په دې مسئله کې مختلف دي چې بریتونه بلید یا چړې سره صفا کول جائز دي که نه؟ ځینې علماء دې نه حرام او ځینې جائز وايي. د شرعي حکم لپاره ستاسو حضور ته رجوع کیږي؟ بینوا توجروا

**المستفتی** ادم خان کوئټه شهر ۵مئی ۱۹۸۶ء

**الجواب:** د سلام وروسته دي واضحه وي چې حلق الشارب بدعت نه دی. کما اشار الیه ابن الهمام رحمة الله تعالی فی فتح القدیر(۲) ولوُرود روایة ((احفوا الشارب))، رواه

---

۱) (ردالمحتار ۵:۲۸۸ کتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

وفي الهندية: ولوعالج بالنورة في العانة، يجوز كذا في الغرائب.

(فتاوى هندية ۵:۳۵۸ كتاب الكراهية، الباب التاسع عشر في الختان الخ)

وفي حاشية الصحيح للإمام البخاري: وذكر الحلق لأنه الأغلب وإلّا فيجوز الإزالة بالنورة والنتف وغيرهما.

(صحيح البخاري ۲:۸۷۵ كتاب الأدب، باب تقليم الأظفار)

۲) قال العلامة ابن الهمام رحمه الله تعالى: (قوله ولفظة الأخذ تدل على أنه هو السنة فيه دون الحلق) يشير إلى خلاف ماذكر الطحاوى في شرح الآثار حيث قال: القص حسن ... قال الطحاوي: والحلق أحسن.

(فتح القدير ۲:۴۴۶: كتاب الحج: باب الجنايات)

الطحاوی()()وفی ردالمحتار: مشیٰ علیه فی الملتقیٰ وعبارة المجتبی بعد ما رمز للطحاوی حلقه سنة(۵: ۳۵۸)()وهوالموفق

## د سر او تخرګ ويښتان او نوکانو کابولو موده

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د سر ويښتان څو ورځې وروسته جوړول

---

۱) عن أبي هريرة رضي الله تعالىٰ عنه عن رسول الله ﷺ أنه قال: احفوا الشوارب واعفوا اللحى.

(شرح معاني الآثار: ۲۷۸، كتاب الكراهية، باب حلق الشارب)

۲) (په طحاوي کې ماته د "احلقوا الشارب" حديث نه دی پيدا شوی، البته سنن نسائي کې يوه نسخه شته چې په هغې کې د حلق الشارب لفظ راغلی دی: عن ابي هريرة رضي الله تعالىٰ عنه عن النبي ﷺ قال خمس من الفطرة ...حلق الشارب. (سنن نسائي ۷ کتاب االطهارة، نتف الابط)

۳) (ردالمحتار ۵: ۲۸۸، كتاب الحظر والاباحة، فصل في البيع)

وفي الطحطاوي: قال الطحاوي: يستحب احفاء الشوارب ونراه أفضل من قضاه وفي شرعة الإسلام قال الإمام الإحفاء قريب من الحلق وأما الحلق فلم يرد، بل كرهه بعض العلماء ورآه بدعة وينبغي أن يأخذ من شاربه حتى يوازي الطرف الأعلى من الشفة العليا ويصير مثل الحاجب.

(الطحطاوي على مراقي الفلاح ۵۲۶ قبيل باب أحكام العيدين)

وقال الحافظ ابن حجر رحمه الله تعالىٰ: وذهب بعض العلماء إلى التخير في ذلك (القص والحلق). قلت: هوالطبري ...ثم قال: دلت السنة على الأمرين، ولا تعار ض، فان القص يدل على أخذ البعض والإحفاء يدل على أخذ الكل وكلاهما ثابت فيتخير فيما شاء ...ويرجح قول الطبري ثبوت الأمرين معا في الأحاديث المرفوعة.

(فتح الباري ۱۰: ۳۴۷، كتاب اللباس، باب قص الشارب)

ضروري دي؟ او د نوکانو او تخرگ د وېښتانو څه حکم دی؟ بینوا توجروا

**المستفتي** شهباز خان حقاني بډه بېره پښاور ... ۲۶ جون ۱۹۸۴ء

**الجواب:** نوکان او د تخرگ او له نامه لاندې وېښتان له ۴۰ ورځو اړول د سنتو خلاف دي (۱)، او د سر وېښتانو خرېلو لپاره څه وخت مقرر نه دی. هره هفته کې یو وار سر خرېل مستحب دي. ۳۹۳ ۵ (۲) **وهوالموفق**

## سړي ته د خرېلو په ځای وېښتان پرېښودل غوره دي

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د سړي لپاره د وېښتانو پرېښودل ښه دي که خرېل يې؟ بينوا توجروا

**المستفتي** عبيد الله پښاور ... ۲۳ رمضان

**الجواب:** د حلق په نسبت وېښته پرېښودل مفضول دي (ملا علي قاري) (۳)

**وهوالموفق**

---

۱) في مجمع الأنهر: والسنة تقليم الأظافير ... ونتف الإبط وحلق العانة والشارب وفي القنية ويستحب حلق عانته وتنظيف بدنه بالاغتسال في كل أسبوع مرّة فإن لم يفعل ففي خمسة عشر يوماً مرة ولا عذر في تركه وراء أربعين.
(مجمع الأنهر ۴:۲۲۶ كتاب الكراهية، فصل في المتفرقات)

۲) في الهندية: يستحب حلق الرأس في كل جمعة كذا في الغرائب.
(فتاوى هندية ۵:۳۵۷ كتاب الكراهية، الباب التاسع عشر الخ)

۳) قال الملا علي قاري رحمه الله تعالى: (عن ابن عمر رضي الله تعالى عنهما أن النبي ﷺ رأى صبيا قد حلق بعض رأسه و ترك بعضه فنهاهم عن ذلك و قال: احلقوا كله أو اتركوا كله، فيه إشارة إلى أن الحلق في غير الحج والعمرة جائز وأن الرجل مخير بين الحلق وتركه لكن الأفضل أن لايحلق إلّا في أحد النسكين.
(مرقاة المفاتيح ۸:۲۹۴ باب الترجل)

## خالص تورو خضابو نه علاوه د نور و رنګونو استعمال جائز دی

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې ايا د يو مسلمان لپاره سپينه ږيره يا د سر وېښتانو خضابول يا بل څه ډاډي تورول که ډېر ضرورت وي روا دي که نه؟ بينوا توجروا

**المستفتی** حاجي محمد حيدر راولپنډي ..... ۱۹۶۹،۱۰،۲۰

**الجواب:** سوچه تکروزي لګول ناروا دي[۱]، باقي نور جائز دي[۲]، وهوالموفق

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې نن سبا د وېښتانو تورولو لپاره مختلف ملکي او غير ملکي شيان استعماليږي خصوصاً ځوانه طبقه يې ډېر استعمالوي. لهذا دا ووايئ چې وېښتان تورول روا دي که نه او له دې سره لمونځ کيږي يا نه کيږي؟ بينوا توجروا

**المستفتی** نامعلوم ..... ۱۹۸۸،۱۰،۲۱

---

۱) عن ابن عباس رضي الله تعالیٰ عنه عن النبي ﷺ قال: يكون قوم في آخر الزمان يخضبون بهذا السواد كحواصل الحمام لا يجدون رائحة الجنة، (مشكوة)

وفي المرقاة: قال ميرک ذهب أكثر العلماء إلى كراهة الخضاب بالسواد... أخرج الطبراني وابن أبي عاصم عن أبي الدرداء رفعه من خضب بالسواد سوّد الله وجهه يوم القيمة، وسنده لين.

(مرقاة المفاتيح ۸:۳۰۴ باب الترجّل)

۲) وفي الموطّا: قال محمّد رحمه الله تعالیٰ: لا نرى بالخضاب بالوسمة والحناء والصفرة بأساً وإن تركه أبيض فلا بأس بذلک كل ذلک حسن.

(الموطّا للإمام محمد ۳۹۲ باب الخضاب)

**الجواب:** تور خضاب یا بل څه رنګ باندي ویښتان تورول حرام دي. دي باره کي وعید راغلی. کما روی مسلم عن جابر ﷺ قال: اتی النبی ﷺ بأبی قحافة یوم فتح مکة ورأسه ولحیته کالثغامة بیاضاً فقال النبی ﷺ: غیّروا هذا بشیء واجتنبوا السواد () والامر للوجوب و ترك الواجب یوجب الوعید، وروی ابو داد والنسائی عن ابن عباس قال عن النبی ﷺ قال: یکون قوم فی آخر الزمان یخضبون بهذا السواد کحواصل الحمام لا یجدون رائحة الجنة، کذا فی المشکوة باب الترجل () امداد الفتاوی ۴: ۲۰۸ (). **وهو الموفق**

## د ښځې په خاطر یا غازي ته څېل ویښتان تورول

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام دي مسئلې باره کي چي کوم سړي سر یا ږیرې تورلو کي نکریزي یا کریم استعمالوي. نو هغه پسي لمونځ جائز دی که نه؟ که کوم مفتي لمونځ ورپسي وکړي نو دوباره څېل لمونځ راوګرځوي یا نه په دې اړه شرعي حکم څه دی؟ بینوا توجروا

**المستفتي.** نامعلوم.... ۲۰۰۱ء ۲۰۲

**الجواب:** غازي ته ویښتان تورول اتفاقاً روا دي او ښځې ته د زینت د پاره د

---

۱) (صحیح المسلم ۱۹۹: ۲ کتاب اللباس والزینة، باب استحباب خضاب الشیب الخ)

۲) (مشکوة المصابیح ۳۸۲ باب الترجّل، الفصل الثانی)

۳) قال العلامة أشرف علي التهانوي رحمه الله تعالٰی: سوال: د سرو په سر او ږیره کي تور خضاب لګول د شرع شریف په رو سره جائز دي که مکروه دي یا حرام؟

الجواب: حرام دی، ځکه چي په دې باندې کلیاً او جزیاً وعید راغلی دی.

(امداد الفتاوی ۲۱۸: ۴، بالوں کے حلق وقصر وخضاب وختنه وغیره کے احکام)

امام ابو یوسف رحمه الله په نزد روا دي. كما في ردالمحتار (۱) وبدائع او باقي ناجائز دي. لحديث أبي داؤد: قال رسول الله ﷺ: يكون قوم يخضبون في آخر الزمان السواد كحواصل الحمام لايريحون رائحة الجنة (۲) وما رواه مسلم غيروا هذا بشيئ واجتنبوا السواد (۳) وأما في ابن ماجة (۴) وما في العيني عن عمر بن الخطاب محمول على الغزاو التزين للتزوج (۵) وهوالموفق

## له سنتو كم ږيرور د لمانځه او روژې پابند سړي حكم

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې له سنتو كمه ږيره سړى

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: قوله ويكره بالسواد أى لغير الحرب قال في الذخيرة أما الخضاب بالسواد للغزو ليكون أهيب في عين العدو فهو محمود بالاتفاق وإن ليزين نفسه للنساء فمكروه وعليه عامة المشائخ وبعضهم جوزه بلا كراهة، روى عن أبي يوسف أنه قال: كما يعجبنى أن تتزين لى يعجبها أن أتزين لها.
(ردالمحتار ۵:۲۹۹ كتاب الكراهية، فصل في البيع)

۲) (سنن أبي داؤد ۵۷۸ كتاب الترجّل، باب ماجاء في خضاب السواد)

۳)(صحيح المسلم ۲:۱۹۹ كتاب اللباس والزينة ،باب استحباب خضاب الشيب الخ)

۴) حدثنا أبوهريرة .الصيرفي... قال رسول الله ﷺ: إن أحسن ما اختضبتم به لهذا السواد أرغب لنسائكم فيكم واهيب لكم في صدور عدوكم.
(سنن ابن ماجة ۲۶۷ باب الخضاب بالسواد)

۵) قال العلامة العيني رحمه الله تعالى: وعن عمر بن الخطاب رضي الله تعالى عنه أنه كان يأمر بالخضاب بالسواد ويقول هو تسكين للزوجة وأهيب للعدو.
(عمدة القاري ۲۲:۵۱ كتاب اللباس، باب الخضاب)

چې د لمانځه تهجد او رژوي پابندوي. دي باره کې د شريعت مطهره څه حکم دی؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** رشيد احمد . مردان

**الجواب:** داسې شخص فاسق دی اګرچې د لمونځ او روژې پابندې وي؟ لان الإصرار على ترك السنة مفسق، كما في تنقيح الفتاوى ۱:۳۵۱، **فحيث أدمن على فعل هذا المحرم يفسق ( ) وهوالموفق**

## ږيرې ته سور يا تور خضاب ورکول روا دي که ناروا؟

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دي مسئلې باره کې چې ږيرې ته خضاب ورکول جائز دي که ناجائز؟ يا تورول يا نكريزي لګول؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** سيد ګل خټک، لنډي کوتل ..... ۱۴۰۰ / ۵ / ۱۸

**الجواب:** ږيرې ته سرې نكريزې ورکول بالاتفاق جائز بلکې مستحب دي او تورې نکريزې لګول صرف په جهاد کې د دښمن د هيبت لپاره جائز دي. بې له دې خالص د زينت لپاره يا د منکوحې د رغبت لپاره د علماوو په نزد مکروه دي. لما في فتاوى الهندية ۵:۳۵۹، **اتفق المشائخ على أن الخضاب في حق الرجال بالحمرة سنة، (وفيه) وأما الخضاب بالسواد فمن فعل ذلك من الغزاة ليكون أهيب في عين العدو فهو محمود منه، اتفق عليهم المشائخ رحمة الله عليه، ومن فعل ذلك ليزين نفسه للنساء وليحبب نفسه إليهن فذلك مكروه، وعليه عامة المشائخ ( ). وهوالموفق**

---

۱) فتاوى تقيح الحامدية ۱:۲۵۱، كتاب الشهادة)

۲) فتاوى هندية ۵:۳۵۹، كتاب الكراهية، الباب العشرون في الزينة)

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: يستحب.... (پاتې حاشيه په بل مخ)

## د ږيرې مقدار کې صحيح احاديث

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې: ږيرې باره کې ک
کوم صحيح حديث وې چې څومره غټول پکار دي. تو رانقل يې کړئ ډېره
منته؟ بينوا توجرو

**المستفتي:** محمد سالم. پېښور ـــ ۲۲ جمادی الاول ۱۴۰۵ ھ

**الجواب:** صحابه کرام لکه د ابن عمر ﷺ نه مروي دي. **كمافي رواية البخاري (١) وكتاب الآثار (٢) وغيره (٣)** چې هغه به له قبضې وتلې وېښتان کمول او دا دي

---

(د حاشيې پاتې برخه) للرجل خضاب شعره ولحيته ولوفي غير حرب في الأصح......
ويكره بالسواد (الدالمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى (قوله ويكره بالسواد) أي لغير الحرب، قال في الذخيرة: أماالخضاب بالسواد للغزو ليكون أهيب في عين العدو فهو محمود بالاتفاق، وان ليزين نفسه للنساء فمكروه، وعليه عامة المشائخ.
(ردالمحتار ٥: ٢٩٩، كتاب الحظر والإباحة، فروع فصل في البيع)

١) عن ابن عمر رضي الله تعالى عنهما عن النبي ﷺ قال: خالفوا المشركين وفروا اللحى واحفواالشوارب، وكان ابن عمر إذا حج أو اعتمر قبض على لحيته فمافضل أخذه.
(صحيح البخاري ٢: ٨٧٥، كتاب اللباس، باب تقليم الأظفار.

٢) وعن ابن عمررضي الله تعالى عنهما أنه كان يقبض على لحيته ثم يقص ماتحت القبضة، قال محمد وبه نأخذ وهو قول أبي حنيفة رحمه الله تعالى.
(كتاب الاثار ١٥٠، باب حف الشعر من الوجه)

٣) أبوحنيفة عن الهيثم عن رجل أن أبا قحافة أتى النبي ﷺ ولحيته قد انتشرت، قال فقال: لو أخذتم وأشارإلى نواحي لحيته.
(مسند الإمام اعظم ٢٠٥، كتاب اللباس والزينة)

حدیث چې د صحابه وو فعل یې نقل کړی «یأخذ من طولها وعرضها» (۱) د اجمال بیان دی. والله أعلم

## د حضور ﷺ د ږیرې او سر مبارک د وېښتانو اندازه او د مروّجه وېښتانو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د حضور ﷺ. د ږیرې مبارکې اندازه څومره وه؟ او حضور ﷺ. د سر وېښتان څومره پرېښي و او نن سبا چې کوم وېښتان پرېښودل کیږي مخکې غټ شا او شاته کم وي: نو ددې څه حکم دی؟ بینوا توجرو

**المستفتي:** مولوي یونس حلوائي پنډی... ۲۹ / ذی الحجه ۱۴۰۰ ھ

**الجواب:** د حضور ﷺ ، ږیره مبارکه له یو موټې نه کمه نه وه.(۲) او د سر مبارک وېښتان (أنصاف الأذنين یا شحمتين) له نرمی نه کم نه و.(۳)او مروّج وېښتان دسنتو خلاف

---

۱) عن عمرو بن شعیب عن أبیه عن جده أن النبي ﷺ: کان یأخذ من لحیته من عرضها وطولها،(رواه الترمذي).(مشکوة المصابیح ۳۸۱،الفصل الثانی ،باب الترجل.

۲) قال العلامة ابن الهمام رحمه الله تعالیٰ :القدر المسنون في اللحیة (القبضة) قال في النهایة :وما وراء ذلک یجب قطعه ،هکذا عن رسول الله ﷺ :أنه کان یأخذ من اللحیة من طولها وعرضها.(فتح القدیر ۲ : ۲۷۰،باب مایوجب القضاء والکفارة)

وفي المرقاة :وفي الإحیاء قداختلفوا في ماطال من اللحیة ،فقیل إن قبض الرجل علی لحیته وأخذ ماتحت القبضة فلابأس به ،وقد فعله ابن عمر وجماعة من التابعین واستحسنه الشعبي وابن سیرین رحمهم الله تعالیٰ :(مرقاة المفاتیح ۸:۲۹۸،باب الترجل)

۳) عن أنس ابن مالک رضي الله تعالیٰ عنه قال :کان شعر رسول الله ﷺ إلی نصف أذنیه ...وکان له شعر فوق الجمة ودون الوفرة...وکانت جمته تضرب شحمة أذنیه.... کان یبلغ شعره شحمته أذنیه.

(شمائل ترمذي مع خصائل نبوي ۲۵،۲۶،باب ماجاء في شعر رسول الله ﷺ)

او نا روا دي ()۔ وهوالموفق

## ږیره كمول او د هغې د مستحل حكم

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې ږيره خريل د شريعت له مخې حرام كه مكروه دي؟ د ږيرې كمولو مستحل څه حكم لري؟
بينوا توجروا

**المستفتي:** عبدالحكيم شاه بنوي، متعلم حقانيه ۱۴۰۰ ه/۲۷/۱/

**الجواب:** (۱) ږيره تر يوې قبضې پر پښودل واجب دي (۲) او ږيره خريل حرام دي (۳) كومه ږيره چې د يوې قبضې څخه وړه وي نو د ږيرې خريلو په حكم كې ده. لما في الشامية ۲: ۴۱۸، قال في العلائية: واما الاخذ منها وهي دون ذلك (القبضة) كما يفعله بعض المغاربة ومخنثة الرجال لم يبحه احد، الخ (۴) وفي العالمگيرية ۲: ۲۳۸، والقص

---

۱) وفي المرقاة (قال رسول الله ﷺ من تشبه بقوم) أى من شبه نفسه بالكفار مثلاً في اللباس وغيره أو بالفساق أو بأهل التصوف والصلحاء الأبرار (فهومنهم) أى في الإثم والخير. (مرقاة المفاتيح ۸: ۲۵۵، كتاب اللباس، مسئلة التشبه)

۲) عن ابن عمر رضي الله تعالى عنهما عن النبي ﷺ: أنه أمر باحفاء الشوارب وإعفاء اللحية.... قال رسول الله ﷺ: خالفوا المشركين أحفوا الشوارب وأوفوااللحى.
(صحيح مسلم ۱، ۱۲۹، كتاب الطهارة، باب خصال الفطرة)

۳) قال العلامة عبدالحق الدهلوي رحمه الله تعالى: حلق كردن لحيه حرام است وروش افرنج وهنود است و گذاشتن آن بقدر قبضه واجب است:
أشعة اللمعات ۱: ۲۱۲، باب السواک)

۴) ردالمحتار ۲: ۱۲۳، كتاب الصوم، مطلب في الفرق بين قصد الجمال وقصدالزينة)

سنة فيها وهو أن يقبض الرجل لحيته فإن زاد منها على قبضته قطعه، كذا ذكره محمد رحمة الله عليه الخ(۱)

(۲) د ږيرې خريلو ثبوت نه بعد د ږيرې خريل حلال ګڼل كفر دى. لكه څنګه چې هر حرام حلال ګڼل كفر دى.

ونظيره ما في شرح التنوير: والكفر........وقال قبل هذا: من هزل بلفظ كفر ارتد وان لم يعتقد للاستخفاف الخ(۲) والله أعلم

---

۱) فتاوى هندية ۵: ۳۵۸، كتاب الكراهية، الباب التاسع عشر في الختان والخصاء.

۲) الدرالمختار ۵: ۳۱۰، باب المرتد.

الله الله

بسم الله الرحمن الرحيم

قال رسول الله صلى الله عليه وسلم

تدعون القيٰمة

بأسمائكم وأسماء آبائكم

فأحسنوا اسمائكم.

(رواه أحمد)

# باب الأسماء

## د أنبياء عليهم الصلوة والسلام نومونه ايښودل غوره دي

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې د أنبياء عليهم السلام نومونه خپلو ماشومانو باندې كېښودل جائز دي؟
بينوا توجروا

**المستفتي:** محمد جلال بنو ېي ډبليو ډي

**الجواب:** جائز. بلكې افضل دي (۱) **وهوالموفق**

## «محمد» نوم ايښودل

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې به څا د "محمد" نوم ايښودل څنګه دي؟ او دا خو د نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذاتي نوم دی. بينوا توجروا

**المستفتي:** محمد امين.. ۱۹۸۵ع/۱۰/۲۶

**الجواب:** «محمد» نوم ايښودل روا بلكې افضل دي. كمافي ردالمحتار

---

۱) عن أبي وهب الجُشَمِيّ رضي الله تعالى عنه قال، قال رسول الله ﷺ: تسموا بأسماء الأنبياء. رواه أبوداؤد.
(مشكوة المصابيح ۴۰۹، باب الأسامي)

وقال العلامة العيني رحمه الله تعالى: وقد تقرّر الإجماع على إباحة التسمية بأسماء الأنبياء عليهم الصلوة والسلام وتسمّى جماعة من الصحابة بأسماء الأنبياء.
(عمدة القاري ۱۵: ۳۹، كتاب الجهاد، باب قول الله تعالى: فإن لله خمسه وللرسول الخ)

۵. ۳۶۸(۱).(۲)

چې حضرت علي او صديق اكبر رضي الله عنهما هم په خپلو زامنو د «محمد» نوم ايښي وو.(۳) دا دول اعتراض بې ځايه دی. **وهوالموفق**

## «عبد الجلال» نوم اېښودل

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې زه په خپل زوی عبد الجلال نوم ږدم ايا دا نوم په شرعي او معنوي لحاظ سره صحيح دی؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** ډاكټر حبيب الرحمان مين بازار پېبي ... ۱۷ ستمبر ۱۳۹۹ هـ

---

۱) وعن جابر رضي الله تعالى عنه أن النبي ﷺ قال سمّوا باسمي ولا تكتنوا بكنيتي. (مشكوة المصابيح ۴۰۷، باب الأسامي)

۲) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: قال المناوى وعبدالله أفضل مطلقًا حتّى من عبدالرحمن وأفضلها بعدهما محمّد ثم أحمد ثم إبراهيم ....وورد: من ولدله مولود فسمّاه محمّدا كان هو ومولوده في الجنة رواه ابن عساكر عن أمامة رفعه، قال السيوطي هذا أمثل حديث ورد في هذا الباب وإسناده حسن.

(ردالمحتار ۵:۲۹۶، كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

۳) قال العلامة العيني رحمه الله تعالى: ومحمّد بن الحنفية هو محمّد بن عليّ بن أبي طالب يكنى أبا القاسم وشهرته بنسبة أمّه.

(عمدة القاري، ۱۶:۱۸۷، باب فضل أبي بكر بعد النبي ﷺ)

وقال الحافظ ابن كثير رحمه الله تعالى "محمّد بن أبي بكر الصدّيق ولد في حياة النبي ﷺ في حجة الوداع تحت الشّجرة عند الحرم وأمّه أسماء بنت عميس.

(البداية والنهاية، ۷:۳۱۸، ذكر من توفي سنة ثمان وثلاثين)

**الجواب:** جلال د الله ﷻ وصف دہ نوم نه دی.(۱) لهذا د بعلبک په څیر روا دی، البته حسن او مناسب نه دی (۲)، لعدم کونه اسماء من اسماء الله تعالی وغیر مضاف الی اسم من اسماء الله تعالی (۳). **وهوالموفق**

## روح الله. نوم اینودل

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د مدینې په جامعې کې اوسیږم. زما نوم روح الله دی. زه چې د مدینې منورې کوم دفتر ته ورځم. هماغه کارکونکی زما د نوم په اوریدو، اعتراض کوي. مثلاً اوس چې کور ته د واپسۍ لپاره د پاسپورټ مدیر ته ورغلم نو هغه پوښتنه وکړه ما اسمک؟ ما وویل روح الله. هغه وویل أنت روح الله ما وویل

---

۱) قال العلامة محمّد طاهر رحمه الله تعالیٰ: ذوالجلال أی العظمة أی صفات التنزیه نحو لا جوهر ولاعرض ولا شریک له ولا جهة له والإکرام صفات وجودیة مثل العلم والقدرة.(مجمع بحار الأنوار ۱:۳۷۲، باب الجیم مع اللام)

۲) قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ: التسمیة باسم لم یذکره الله تعالیٰ في عبارة ولاذکره رسوله ﷺ ولا یستعمله المسلمون تکلموا فیه، والأولی أن لا یفعل. (ردالمحتار ۵:۲۹۶، کتاب الحظروالإباحة، فصل في البیع)

۳) وقال العلامة محمد ادریس کاندهلوي رحمه الله تعالیٰ: (وعن ابن عمررضي الله تعالیٰ عنهما قال قال رسول الله ﷺ: إن أحب أسمائکم إلی الله عبد الله وعبدالرحمن) وقال القرطبي: یلتحق بهذین الإسمین ما کان مثلهما کعبدالرحیم وعبدالملک وعبد الصمد. (التعلیق الصبیح علی مشکوة المصابیح ۵:۱۴۶، باب الأسامی)

وفي المرقاة: عن أبي زهیرالثقفي مرفوعاً إذا سمّیتم فعبد وا أی انسبوا عبودیتهم إلی أسماء الله تعالیٰ. (مرقاة المفاتیح ۹:۱۰۶، باب الأسامی)

نعم! یا شیخ. ده وویل : کیف هذا الاسم، هذا لا یجوز. هذا اسم حرام. انت روح الله. بیا یې په غصه کې وویل: لما تروح الی بلدک غیّره، لازم علیک. هذا اسم حرام. دا ډول هر دفتر کار کوونکي ما ته همداسې وایي او د طالبانو په وړاندې مې هم سپکاوی کېږي. کارونو کې هم تاخیر. نوم بدلول څه خاص کار نه دی. خو په بدلېدو کې یې ډېر مشکلات دي، مثلاً شناختي کارډ یا پاسپورټ او نورو کاغذونو وغیره. نور تاسو ښه پوهېږئ، نو څنګه دا نوم کېښودل روا دي؟ جواب رانه ولیکئ د همدې نوم شرعي حیثیت وښیئ نو مشکور به مو یم او دعاوې به درته کوم. جواب که د دارالعلوم خپل پیډ کاغذ باندې عربي ژبه باندې ولیکئ نو ښه به وي. بینوا توجروا

**المستفتي** حافظ روح الله پشاور کېنټ... ۲۴/ رمضان المبارک ۱۳۹۸ هـ

**الجواب:** لاحرج فی تسمیة الولد بروح الله لحدیث أبی داود عن ابی وهب الجشمی رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ: تسمّوا بأسماء الأنبیاء[1] والاسم یعم اسم المحض واللقب والکنیة فکما جازت التسمیة بآدم وصفی الله وبنوح ونجی الله وبأبراهیم وخلیل الله وبموسی وکلیم الله وبمحمد وحبیب الله فکذلک تجوز بعیسی وروح الله لأن کل روح، روح الله أی مخلوقة لله تعالی[2] ولم یرد المنع من هذه التسمیة بخلاف التکنیة بأبی القاسم فی حیاته ﷺ لحدیث : ولا تکتنوا بکنیتی (متفق علیه)[3]. وهوالموفق

---

۱) (سنن أبي داؤد ۲:۶۷۶، باب تغیر الأسماء)

۲) قال العلامة محمّد طاهر رحمه الله تعالیٰ: روح، ورد في معان ... وأطلق علی القرآن والوحي والرحمة وجبرئیل ... ( وروح منه )أی مخلوق منه فإضافتها إلیه للتشریف کناقة الله. (مجمع بحار الأنوار ۲:۳۸۹، باب الراء مع الواو)

۳) (مشکوة المصابیح ۴۰۷، باب الأسامی)

## «سحبان سرحد» نوم کښودل

**سوال:** څه وايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د سحبان سرحد معنا څه ده؟ او دا نوم کښودل څنګه دي؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** احمد الرحمن کوهاټ ۱۹۸۸ ، ۷۰۱۰

**الجواب:** سحبان يو فصيح وبليغ سړي ته ويل کيږي.[۱] والله اعلم بالصواب

## «پرويز» نوم کښودل ممنوع نه دي

**سوال:** څه وايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې يو مسلمان پرويز نوم کښېودلی دی: نو د شريعت له مخې دا نوم څه قباحت لري که نه؟ بينوا توجروا

**المستفتي** خاکسار ارشاد حسين فداوايي شمالي ناظم آباد کراچي ۱۹۹۰ /۵/ ۱۰

**الجواب:** د پرويز نوم کښودل منع نه دي، نه دا نوم کښودل منع دي[۲]، او نه يې معنا غلطه ده، پرويز مظفر، ماهي وغيره ته ويل کيږي.[۳] شمس اللغات خو له دې نوم نه نفرت کول د هغه دوو خبيثانو[۴] نه مذموم نه دي **وهوالموفق**

---

۱) سحبان : د وائل قبيلې يو مشهور فصيح وبليغ شخص و. (القاموس الوحيد ص ۷۴۸، عربی أردو لغت)

۲) وفي البزازية : التسمية باسم لم يذكره الله تعالىٰ ورسوله في عبارة ولا يستعمله المسلمون الأولى أن لايفعل. (البزازية على هامش الهندية، ۶:۳۷۰، کتاب الكراهية، الفصل التاسع في المتفرقات)

۳) پرويز کا معنى فاتح، خوش نصيب، خوش، قيمتى، نهايت اعلى، مهذب، سخاوت، شان وشوکت، خسروثانى، شاه ايران کا لقب جو ملکه شرين کا شوهر تها. (فيروز اللغات ۲۹۳)

۴) يو خبيث کسرى د ايران بادشاه پرويز بن هرمز بن نوشيروان دی...
(باتم، حاشيه په بل مخ)

## په دوکان یا کور باندې د «یثرب» نوم کېښودل

**سوال:** څه وايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې زما خپلوانو يو جنرل سټور جوړ کړی چې په هغه بې د يثرب جنرل سټور نوم ايښی دی خېنې خلک دا ښه نه ګڼي، ځکه چې نبي ﷺ دا نوم له هجرت نه وړاندې بدل کړی و چې دا د جاهليت د وخت نوم دی او مدينه منوره بې يرې کېښود. مهرباني وکړئ له حقيقت نه مو خبر کړئ چې دا نوم څنګه دی؟ بينوا توجروا

**المستفتي** اسماعيل چارسده روډ مردان... ۱۴۰۱هـ ۱۹.۵

جواب مدينې منورې ته يثرب ويل جائز دي، قران مجيد کې (يا أهل يثرب) راغلي.(۱) البته حديثو کې له دې نه منع راغلې. محدثينو هم ويلي چې دا نهي تنزيهي ده. تحريمي نه ده.(۲) په هر حال د بل کوم ځای يا دوکان نوم يثرب کېښودل نه مطلوب دي اونه ممنوع. **وهوالموفق**

## نبوي، رسولي، محمدي، رباني، او د شرعي القابو ليکلو حکم

سوال: څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې کوم القاب لاندې ذکر دي بې له دې چې نسبت بې پلار يا نيکه ته وشي جائز دي يا نه؟ مثلاً نبوي، رسولي، محمدي، رباني، شرعي لقبونه. بينوا توجروا

**المستفتي** نامعلوم... ۱۹۸۶ع ۱۱.۹

---

(د حاشيې پاتې برخه) چې د رسول الله ﷺ خط مبارک بې شلولی و اور دويم خبيث غلام احمد پرويز (متوفي /۱۹۸۵ء) چې په هندوستان کې د ګورداسپور اوسيدونکی وو، ابتداءً غير مقلد وو، بيا منکر حديث شو.

۱) (سورة الاحزاب :ايت : ۱۳)

۲) قال العلّامة محمّد طاهر رحمه الله تعالى :يثرب :اسم المدينة المشرفة قديمة فغيرها وسمّاها طيبة وطابة ... يثرب اسمها الجاهلي فسماه الله المدينة والنبي ﷺ طيبة ونهي عنه ... فلعل هذا الحديث قبل النهي أو لبيان أن النهي للتنزيه.

(مجمع بحار الأنوار ۵:۲۰۷ باب يث)

**الجواب:** د دغو القابو اطلاق د شریعت سره څه ټکر نه لري. لکه علوي. صدیقي. فاروقي. حنفي وغیره.(۱) **وهوالموفق**

**د قریشي شخص له خپل نوم نه مخکې «شاه» لیکل**

**سوال:** څه وایي علماء کرام په دې مسئله کې چې نن سبا فاطمي سادات له خپل نوم نه مخکې د «شاه» لفظ لیکي او قریشي حضرات یعنی اصلي قریشي له خپل نوم نه وړاندې د «شاه» لفظ لیکي مثلاً شاه فرید الحق شاه. احمد نوراني او شاه معین الدین او نور نور. زه قریشي د صدیقي کورنۍ یو تن یم تر اول خلیفه ابوبکر صدیق ﷺ پورې د نسب شجره محفوظه ده. ایا زه له خپل نوم نه وړاندې لفظ د «شاه» لیکلی شم؟ څنګه په دې کې څه شرعي یا اخلاقي اعتراض شته؟ بینوا توجروا

**المستفتي** ریاض احمد قریشي سیالکوټ. ۱۲ شوال ۱۳۹۵ھ

**الجواب:** واضحه دې وي چې حرام او منکر نسب بدل شي. کما یدل علیه حدیث مسلم :(**من ادعى إلى غير أبيه وهو يعلم انه غير أبيه فالجنة عليه حرام**)(۲) له نوم سره سید یا پادشاه لیکل. نو که اول یا اخر کې د «شاه» په لیکلو تفرقه اوس هم معروفه وي: نو تاسي د خپل نوم په اول کې «شاه» لیکلی شي او که دا لفظ صرف سادات پورې مخصوص وي: نو اخر کې صدیقي هم و لیکئ تر څو د حرمت منشاء ختمه شي. وهوالموفق

---

۱) قال العلامة ظفر أحمد عثماني رحمه الله تعالى: وقلّ من المشاهير في الجاهلية والإسلام من ليس له لقب، ولم تزل هذه الألقاب الحسنة في الأمم كلها من العرب والعجم، فمستحب الألقاب ومستحسنها لايكره.(أحكام القران للتهانوى ۴:۲۸۱، من السنة التلقيب بالألقاب الحسنة)

۲) (صحيح المسلم، ۱:۵۷، باب بيان حال من رغب عن أبيه وهو يعلم)

وفي المرقاة: في النهاية: الدعوة بالكسر في النسب...(باقي حاشيه په بل مخ)

## د غیر عالم له خپل نوم سره قاضي یا خطیب لیکل

**سوال:** څه وايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د يو کلي د مسجد امام محمد دين نوميږي او نه له کومې مدرسې نه فارغ دی. نه په قرآن او حديث پوهيږي صرف امامتي کوي دا امام تکبراً له خپل نوم سره قاضي يا خطيب ليکي چې کورنۍ کې يې هم څوک عالم او فاضل نه دی تېر شوی. د داسې سړي باره کې څه حکم دی؟ بينوا توجروا

**المستفتي** قاضي محمد عشق بن قاضي نور محمد فاضل ديوبند اټک شهر... ۱۹۸۹ ۱۳،۸

**الجواب:** خان، قاضي، خطيب کلي مشکک دي. دا د مختلفو خلکو با معنا بې معنا، جعلي، تحقيقي، تلبيسي، نو دا يو غريب او نا اشنا اقدام نه ده والله اعلم بالصواب

## «مقام ابراهيم »نوم کېښودل

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د سيد محمد ابراهيم مرحوم لمسي خپل کور باندې «مقام ابراهيم» نوم کېښودل غواړي، ددې مشکک نوم کېښودو باره کې ستاسو محترمو څه رايه ده؟ بينوا توجروا

**المستفتي** سيد وارث حسين نشتر روډ کراچي نمر ۳... ۱۹۸۸ء ۱۸/۹/

**الجواب:** واضحه دې وي چې له دې نوم منعه نه ده راغلې او نه څه توهم شته، لهذا دې نوم کېښودو کې څه حرج نشته.(۱) **وهوالموفق**

---

(د حاشيې پاتې برخه) وهو أن ينتسب الإنسان إلى غير أبيه وعشيرته وكانوا يفعلونه فنهوا عنه والادعاء إلى غير الأب مع العلم به حرام. (مرقاة المفاتيح ۶: ۳۲۰، باب اللعان)

۱) وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: التسمية باسم لم يذكره الله تعالى في عبارة ولا ذكره رسوله ﷺ ولا يستعمله المسلمون تكلموا فيه، والأولى أن لا يفعل. (رد المحتار ۵: ۲۹۶، كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

## عائفه نوم کېښودل

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې ما خپله لور باندې عائفه نوم ايښی. دا له اسلامي نظره ښکله نوم دی؟ که مناسب نوم نه وي. نو مناسب نوم هم راته وښايه: بينوا توجروا

**المستفتي:** فضل الهی مردان ... ۲۹/صفر ۱۴۰۴ هـ

**الجواب:** په ځای ددې د بلې کومې نيکې مسلمانې ښځې نوم کېږده. ان شاء الله مستقبل کې به د خير وبرکت ذريعه جوړه شي. (۱) د حضورﷺ دلورگانو يا د صحابياتو نوم کېږدئ نو ښه به وي. (۲) **وهوالموفق**

## د بطخ شکل باندې امضاء کول

**سوال:** څه فرمايي دې مسئلې باره کې چې زه سرکاري ملازم يم. زه خپله امضاء د بطخې په شکل جوړوم. نو ايا دا زنده سر گنل کېږي؟ دا دستخط ماته جائز دی يا نه؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** زين گل مکان نمبر b-۱۱-c.۸ کراچي نمبر ۷... ۱۹۸۵ء/۴/۶

---

۱) د عائفه معنی ده: العائف، شگون اخيستونکی (بد فالې نيوونکی). (مصباح اللغات ص ۵۸۸، عيل)

عافَ الطير عِيافَةً : نيک يا بد فال اخستلو لپاره مارغه ته آواز ورکولو سره الوځول ... العائف : نه خوښول. (القاموس الوحيد ص ۱۱۴۷، عبل)

۲) عن أبي الدرداء رضي الله تعالىٰ عنه قال، قال رسول الله ﷺ: تدعون يوم القيمة بأسمائكم وأسماء آبائكم فأحسنوا أسمائكم، رواه أحمد وأبوداؤد.
(مشكوة المصابيح ص ۴۰۸، باب الأسامى)

وقال العلامة خليل أحمد السهارنفورى رحمه الله تعالىٰ: وكان ﷺ يحب الفال الحسن والاسم الحسن. (بذل المجهود، ۵:۲۶۷، كتاب الأدب، باب في تغيير الأسماء)

**الجواب:** ښکاره خو جائز ده. دا په لیدو د بطې په خیر معلومیږي حقیقت کې له هغې نه بدل ده او دا شکل د ژوند قابل هم نه ده [۱] **وهوالموفق**

## اسماعیل عزرائیل، اسرافیل او جبرئیل نوم کېښودل

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د الله ﷻ فضل وکرم باندې زما ښځه بچي دي ما په هغوی د پرښتو نمونه ایښي دي، ددې لپاره چې نیکان شي. هغه دا نومونه دي. محمد اسماعیل، عزرائیل، اسرافیل، جبرائیل د یوې ماشومې نوم مې دار الهدی ایښی دی. نو پوررتنې د پرښتو نومونه صحیح دي یا نه؟ بینوا توجروا

**المستفتي** محمد ابراهیم لوند خوړ مردان... ۲۴ صفر ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** چونکې ددغو نومونو معنا بې له شکه صحیح ده[۲]، لهذا تفاؤلاً دا نومونه کېښودل مشروع دي. [۳]

---

۱) وفي مجموعة قواعد الفقه: الصورة الشّكل وكل مايصور مشبها بخلق الله من ذوات الأرواح وغيرها وفي حديث أبي هريرة رضي الله تعالى عنه عند الطحاوى: الصورة الرأس فكل شيئ ليس له رأس فليس بصورة.
(مجموعة قواعد الفقه ۳۵۵، التعريفات الفقهية)

۲) فى تفسير القرطبى: وذكر ابن عباس أن جبر وميكا واسراف هى كلها بالأعجمية بمعنى عبد ومملوك، إيل، اسم الله تعالى... قال الماوردى: إن جبريل وميكائيل اسمان أحدهما عبد الله والآخر عبيد الله لأن ايل هو الله تعالى وجبر هو عبد، وميكا هو عبيد فكأن جبريل عبد الله وميكائيل عبيد الله ... وزاد بعض المفسرين، وإسرافيل عبد الرحمن. (الجامع لأحكام القرآن للقرطبى ۲:۳۹ سورة البقرة آيت: ۹۸)

۳) عن ابن عباس رضي الله تعالى عنه قال كان رسول الله ﷺ يتفاول ولا يتطير وكان يحب الإسم الحسن، رواه في شرح السنة. (مشكوة المصابيح ۳۹۲ باب الفال والطيرة)

ولم اجد التصريح فى كتب الفقه (۱) لكن القياس على أسماء الأنبياء عليهم السلام(۲) وورود البعض فى أسماء الرواة يدل على الجواز فقط. وهو الموفق

## آصف نوم كېښودل

سوال څه فرمايي علماء كرام دي مسئلې باره كې چې آصف علي شاه نوم كېښودل څنګه دي؟ بينوا توجروا.

**المستفتي**: ميا اكبر خان .... ۱۲/اكتوبر ۱۹۷۵ء

**الجواب**: آصف نوم غلط نه دی داد حضرت سليمان عليه السلام دخاص وزير نوم وو.(۳) **وهو الموفق**

---

۱) علامه نووي رحمه الله تعالى په صحيح مسلم ۲:۲۰۷، كتاب الاداب كې په حاشيه باندې او ملا علي قاري رحمه الله تعالى په مرقاة كې د امام مالک رحمه الله تعالى په حواله د ملايكو نوم ايښودلو ته مكروه ويلي، ددې تائيد يې هم ذكر كړى دى، په مرقاة كې دي : وكره مالک التسمّي بأسماء الملائكة كجبريل، قلت: ويؤيده مارواه البخاري في تاريخه عن عبد الله بن جرار: سمّوا بأسماء الأنبياء ولاتسمّوا بأسماء الملائكة. (مرقاة المفاتيح ۹:۱۰۶ باب الأسامى)

خو په الموسوعة الفقهيه كې دېته جائز ويلي : "التسمية باسماء الملائكة ذهب أكثر العلماء إلى أنّ التسمية بأسماء الملائكة كجبريل وميكائيل لاتكره، وذهب مالک إلى كراهة التسمية بذلک. (الموسوعة الفقهية ۱۱:۳۳۵)

۲) عن أبي وهب الجشمي رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ تسمّوا بأسماء الأنبياء. (سنن أبي داؤد ۲:۶۷۶ كتاب الأدب، باب تغيير الأسماء)

۳) قال المولوي فيروز الدين رحمه الله تعالى : آصف ...(پاتې حاشيه په بل مخ)

## مهدي محمد نوم کې محمد سره (ﷺ) لیکل

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې يو تعليم يافته فهم وذکي شخص خپل نوم سره مهدي محمد ﷺ ليکلي. ايا د شريعت په رڼا کې داسې نوم ليکل جائز دي؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** عبدالسلام ۱۹۷۷ء/۱۰/۲۰

**الجواب:** محترم المقام دامت برکاتکم د سلام وروسته دي واضحه وي. چې اګر که ددې شخص مراد صرف جزء ثاني سره صلوة وسلام ليکل دي. خو د موهوم کېدو له وجې داسې ليکل نه دي پکار[۱] (لأنه لا يطلق عليه عرفاً ذکر اسم النبي ﷺ، فافهم. وهوالموفق

---

(د حاشيې پاتې برخه)...(۱) د سليمان عليه السلام د وزير نوم (۲)مجازاً هر لائق وزير ته ويل کيږي، (۳) جمع کول، ضبطول. (فيروز اللغات ۲۳ آ، ص)

وفي تفسير القرطبي: (قَالَ الَّذِي عِندَهُ عِلْمٌ مِّنَ الْكِتَابِ أَنَا آتِيكَ بِهِ...(الآية) أكثر المفسرين على أن الذى عنده علم من الكتاب آصف بن برخيا.
(تفسير القرطبي ۱۸۴:۱۳ سورة النمل آيت: ۴۰)

۱) قال المفتي محمود حسن الکنکوهي: دچا نوم چې محمد وي يا ئې نوم سره محمد وي نه په دې باندې درود شريف وئيلې کيږي اونه ورسره ليکلې کيږي، نه ددې حکم دې، بلکه درود شريفد نبی کريم ﷺ دپاره دې، خو که چه په داسې ځائ کې لفظ "محمد" باندې "ص" جوړوي، چې دا دحضور ﷺ نه دې، دهغوی مقصد په خپل نوم باندې درود لوستل نه وي بلکه د لفظ "محمد" نه ذهن منتقل کيږي د رسول اکرم ﷺ نوم مبارک طرف ته، ددې انتقال ذهني په وجه سره "ص" جوړوي خودا څه شرعي حکم نه دې بلکه که ددې نه دا شبهه وي چه په غيرنبي باندې درود لوستلې کيږي نو ددې نه ځان ساتل پکار دي. (فتاوی محموديه، ۱۹/ ۳۸۰، باب الأسماء)

## انسان باندې د (رازق) اطلاق کول ممنوع نه دي

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې مخلوق باندې د رازق يا رزاق اطلاق کيږي که نه کيږي، او په چا باندې يې اطلاق کولو کې ايمان يا نکاح باندې اثر غور څيږي که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي جناب عبد الله ۱۹۷۷ء ۱۰. ۲۰

**الجواب:** انسان ته رازق ويل کله چې مجازي رازق مراد وي، ممنوع نه دي. غير الله باندې يې په اطلاق کولو ايمان يا نکاح ته نقصان نه رسيږي[۱] **وهوالموفق**

## حضرت الله نوم اېښودل

**سوال:** څه وايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې زما نوم حضرت الله دی زمونږ وطن کې چې څوک څنګه نوم غواړي رده يې زما په نوم لا تر او سه چا اعتراض نه دی کړی. چې معنی يې غلطه ده: خو چې له عربو سره مخ شم. د نوم پوښتنه وکړي. نو وايي چې خپل نوم دې بدل کړه. نو ايا خپل نوم بدل کړم که نه؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** حضرت الله، السعوديه العربيه... ۱۹ /رمضان ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** الحضرة هي الحضور والشهود ضد الغيبوبة في الاصل، ثم تطلق على محل الحضور (دربار) وعلى الذات[۲] فالغلط هو الثالث دون الثاني كما في

---

۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وجاز التسمية بعليّ ورشيد من الأسماء المشتركة، ويراد في حقنا غير ما يراد في حق الله تعالى. (الدر المختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله جاز التسمية بعليّ الخ) الذى في التاتارخانية عن السراجية التسمية باسم يوجد في كتاب الله تعالى كالعلي والكبير والرشيد والبديع جائزة. (ردالمحتار ۵:۲۹۶ كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

۲) في القاموس: حضرة السيده: معزز خاتون، حضور وحضرة: موجود گی،...

(پاتې حاشيه په بل مخ)

بیت الله وهوالموفق

## دوکان باندې رحمان اینږ سنز بوږ لګول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې ذهن کې مې دا خبره اورې راوړې چې زما نوم فضل الرحمن او د رختونو کار کوم؛ نو ایا رحمان اینډ سنز بوډ لګولی شم؟ بینوا توجروا

**المستفتي** مولانا فضل الرحمن بریکوټ سوات. ۲۵ ربیع الثاني ۱۴۰۲ هـ

**الجواب:** رحمان (۱) د الله په شان غیر الله باندې اطلاق کول ناروا دي، (۲) نو څنګه چې الله اینډ سنز یوه منکره جمله ده؛ نو دا ډول د رحمن اینډ سنز هم منکر دی، نو که دا سړی د خپل پوره نوم ترویج وکړي نو صدقه جاریه به شي

---

(د حاشیې پاتې برخه)..... وجود،حاضري،حضرتکم :(تعظيمي لقب) آپ جناب. (قاموس الجدید ص ۱۸۴)

وفي مصباح اللغات :الحَضَر والحَضرة :موجودګی، اړخ،نزدې، د کور مخې ته صحن، دحضرت اطلاق په هر هغه لوئي سړی باندې کیږی چې هغه ته خلق حاضریږی لکه الحضرة العالية تأمربكذا، جناب عالی ! د فلانی کار حکم راکړئ، او وئیلې شی چې: كلّمته بحضرة فلان، ما د فلانی په موجودګئ کې هغه سره خبرې اوکړې. مصباح اللغات ص ۱۶۰)

۱) يعنى الرحمن کا.(سيف الله حقانی)

۲) في شرح الفقه الأكبر : ومن قال لمخلوق :يا قدّوس أو القيوم أو الرحمن،أوقال اسمًا من أسماء الخالق كفر، انتهى،وهو يفيد أنه من قال لمخلوق يا عزيز ونحوه يكفر أيضا إلّا أن أراد بهما المعنى اللغوى لا الخصوص الإسميوالأحوط أن يقول يا عبد العزيز ويا عبد الرحمن.

(شرح الفقه الأكبر ۱۹۳ :قبيل فصل في المرض والموت والقيامة)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى :والرحمن...(پاتې حاشيه په بل مخ)

لحديث من سن سنة حسنة... الحديث (۱) والله اعلم

## محمد اکبر نوم کېښودل

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې زما نوم محمد اکبر دی، د ځينو خلکو په ذهن کې دا نوم غلط دی حال دا چې زما والد عالم دی ددې څه حکم دی؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** محمد اکبر، ريکارډ کيپر، ډپټي کمشنر، مردان...
۸/ ربيع الثاني ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** ستا نوم صحيح دی، (۲) البته دواړه نومونه له تصغير نه ساتل ضروري دي، لکه چې «محمدی» «اکبری» وغيره.(۳)، والله اعلم

## حضرت عثمان نوم کېښودل روا دی

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې زمانوم حضرت عثمان دی.

---

(د حاشيې پاتې برخه) لفظ عربی...وذهب الأعلم إلى أنه علم كالجلالة لاختصاصه به تعالى وعدم إطلاقه على غيره تعالى معرفًاومنكراً...قال السبكي :والحق أن المنع شرعي لا لغوي وأن المخصوص به تعالى المعرف.
(ردالمحتار ۵: ۱ قوله، بسم الله الرحمن الرحيم)

۱) (مشكوة المصابيح : ۳۳، ۴كتاب العلم)

۲) عن جابر رضي الله تعالى عنه أن النبي ﷺ قال :سموا ولاتكتنوا بكنيتي.متفق عليه.... عن أبي وهب الجشمي رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ :تسموا بأسماء الأنبياء. (مشكوة المصابيح ۴۰۷، كتاب الآداب ،باب الأسماء)

۳) وفي السراجية :أحب الأسماء إلى الله تعالى عبدالله وعبدالرحمن ،لكن التسمية بغير هذه الأسماء في هذا الزمان أولى ،لأن العوام يصغرون هذه الأسماء عندالنداء.
(فتاوى سراجية ۳۱۹، كتاب الكراهة والاستحسان ،باب التسمية)

زیا تره دفیکتریو کار کنان زما په دې نوم اعتراض کوي چې دا د دریم خلیفه نوم دی نو دا نوم سم دی که نه؟ بینوا توجروا

**المستفتی** حضرت عثمان. اوایف گرول... ۱۴۰۰ هـ/۳/۱۷

**الجواب:** عثمان (۱) نوم په طریقه اولی جائز دی لکه د محمد ابراهیم وغیره نوم کېښودل چې جائز دي (۲) وهو الموفق

---

۱) عثمان: محنتی، یجتهد في الأمر ویعمل نفسه فیه.
لسان اللسان ۲: ۱۳۷)

وفي لسان العرب: فلان یعثم ویعثن أی یجتهد في الأمر.
(لسان العرب: ۹: ۴۹)

۲) عن أبي وهب الجشمي رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: تسموا بأسماء الأنبیاء، رواه أبوداؤد.
(مشکوة المصابیح: ۴۰۹، باب الأسامی)

وقال العلامة العیني رحمه الله تعالى: وقد تقرر الإجماع على إباحة التسمیة بأسماء الأنبیاء علیهم الصلوة والسلام وتسمی جماعة الصحابة بأسماء الأنبیاء.
(عمدة القاري ۱۵: ۳۹، کتاب الجهاد، باب قول الله تعالى: فان لله خمسه وللرسول الخ)

الله الله

بسم الله الرحمن الرحيم

قال رسول الله صلى الله عليه وسلم

الفطرة خمس الختان والاستحداد
وقصّ الشارب وتقليم الاظفار
ونتف الإبط

(رواه النسائي)

# باب الختان

## ختنه له ټولو وړاندې چا کړې ده

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې تر ټولو وړاندې د چا سنتې شوې ده؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** روح الامين، پشاور يونيورسټي.... ۳۰/ذي الحجة ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** ابراهيم عليه السلام کړې ده (بخاري شريف)[1] وهو الموفق

## د پيدايښې سنت شوي ماشوم دويم ځلي سنتولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې الله ﷻ خپل عاجز بنده ته ماشوم ورکړی او د پنجشنبې او جمعې په منځنۍ شپه کې پيدا شوی. قدرتي يې سنتې شوې ايا دا سنتې بس ده که بيا يې سنتې وکړو؟ **بينواتوجروا**

**المستفتي:** ميان اکبر خان.... ۳۰/ محرم ۱۳۹۵ھ

**الجواب:** که د ماشومانو حشفه (د سامان سر) ښکاري چې ليدو کې مختون معلوميږي نو

---

۱) عن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه أن رسول الله ﷺ قال اختتن ابراهيم بعد ثمانين سنة واختتن بالقدوم مخففة.

وفي حاشية الصحيح للإمام البخاري: (قوله بعد ثمانين سنة وقع في الموطأ عن أبي هريرة أن إبراهيم أول من اختتن.

(صحيح البخاري ۲:۹۳۱ كتاب الإستيذان، باب الختان بعد ماكبر)

دومره بس ده كما في الدرمختار قبيل الفرائض او امام سيوطي رحمه الله ليكلي دي چې اوولس انبياء عليهم السلام مختون پيدا شوي دي (۱) وهوالموفق

## د رواج له وجې سنتې نه کول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې زمونږ علاقه کې دا رواج دی چې خلک د ماشومانو سنتي نه کوي او وايي چې لاندينی څرمن چې کله پورته شي نو سنتولو ته ضرورت نشته. اوس شرعي حکم څه دی؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** صوفي اسماعيل وزيرستاني متعلم حقانيه ... ۱۴۰۱/۶/۲۰ء

**الجواب:** ختنه سنت مؤكده او د اسلام له شعائرو څخه ده. بې عذره پرېښودونکی يې مردود الشهادة او مباح المحاربه دی. يعني كله چې د اهل بصيرت په نزد ختنه ممكنه وي «يدل عليه مافي شرح التنوير على هامش رد المحتار ۵: ۴۵۶ والاصل ان الختان

---

۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: صبي حشفتهٔ ظاهرة بحيث لورآه إنسان ظنه مختوناً ولا تقطع جلدة ذكره إلاّ بتشديد آلمة ترک على حاله... وقد جمع السيوطي من ولد مختوناً من الأنبياء عليهم الصلوة والسلام فقال: وفي الرسل مختون لعمرک خلقة، ثمان وتسع طيبون أكارم، وهم زكريا شيث إدريس يوسف، وحنظلة عيسى وموسى وآدم، ونوح شعيب سام لوط وصالح، سليمان يحيى هود، يٰس خاتم. (الدر المختار ۵: ۵۲۹، ۵۳۰ قبيل كتاب الفرائض)

في خلاصة الفتاوى: الصبى إذا كانت حشفته ظاهرة ولايمكن أن يمدّ جلدة ذكره إلاّ بتشديد وظهور حشفة بحالة لو راها إنسان يريها كأنه اختتن لايشدد عليه ويترک. (خلاصة الفتاوى ۴: ۳۴۰ كتاب الكراهية، جنس آخر)

سنة كما جاء في الخبر وهو من شعائر الإسلام وخصائصه فلو اجتمع اهل بلدة على تركه حاربهم الإمام، فلايترك الالعذر»( ) وفيه أيضاً «أو من أقلف لو لعذر وإلا لا» به نأخذ، هامش ردالمحتار ۴: ۳۷۷( ) وفيه أيضاً: صبي حشفته ظاهرة بحيث لوراه إنسان ظنه مختوناً ولا تقطع جلدة ذكره إلا بتشديد آلمه ترك على حاله، هامش ردالمحتار ۵: ۴۵۶( ) وهوالموفق

## د غټانو سنتول

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره کې چې يو غټ سړی سنتي نه وي کړې: نو د غټانو سنتول پکار دي يا نه؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** حبيب الرحمن کوهاټی ... ۱۴۰۱ هـ ۲۲/۴

**الجواب:** د غټانو سنتول مسنون[4]، او ابراهيمي سنت دي[5]، البته په خپل لاس يا خپلې ښځې يا وينځې په لاس سنتول پکار دي لما في الهنديه ۵: ۳۹۳: وذكر الكرخي في الجامع

---

۱) (رد المحتار ۵:۵۳۰، مسائل شتى بعد كتاب الخنثى)

۲) (الدر المختار ۴:۴۱۹ كتاب الشهادات، باب القبول وعدمه)

۳) (الدر المختار ۵:۵۳۰، مسائل شتى بعد كتاب الخنثى)

۴) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: والأصل أن الختان سنة كما جاء في الخبر وهو من شعائر الإسلام وخصائصه.
(الدر المختار ۵:۵۳۰، مسائل شتى بعد كتاب الخنثى)

۵) قال العلامة ابن حجر عسقلاني رحمه الله تعالى: وقد ثبت لإبراهيم عليه السّلام أوّليات أخرى كثيرة منها، أول من ضاف الضيف وقصّ الشارب واختتن ورأى الشيب وغير ذلك.
(فتح الباري ۶:۳۹۰، باب قول الله تعالى: وَاتَّخَذَ اللهُ إبراهيم خَلِيلا)

الصغير ويختنه الحمامي كذا في الفتاوى العتابيه() فافهم. وهوالموفق

## اله تناسل نه ښكارېد په صورت كې دوباره سنتول

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دي مسئلې باره كې چې كله د ذكر سر ښكاره وي او يو وار سنت شوى وي، نو ايا سنت ادا كيږي كه نه؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** حبيب الدين كوهاټي متعلم حقانيه.... ۱۴۰۱ھ/۲/۲۲

**الجواب:** كه د ذكر سر نه ښكاري او دوباره سنتې مسكنه وي: نو دوباره يكار ده. لما في شرح التنوير على هامش ردالمحتار ۵: ۶۵۶: ولو ختن تقطع الجلدة كلها ينظر فان قطع اكثر من النصف كان ختاناً،وان قطع النصف فما دونه لا(). وهوالموفق

## اله تناسل باندې دوباره پرده راتلو صورت كې سنتول

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دي مسئلې باره كې چې يو ماشوم ديارلس كلن دى له دې مخكې دوه ځله سنت شوى. اوس بيا پرې پرده راغلې ده. د شريعت له مخې به دوباره سنت كيږي يا نه؟ بينوا توجروا

**المستفتي** مولوى علي حيدر، حيدري دواخانه گجر گړهی مردان.... ۱۹۰۷ء/۴/۵

---

۱) وفي الهندية : في ختان الكبير إذا أمكن أن يختن نفسه فعل وإلّا لم يفعل إلّا أن يمكنه أن يتزوّج أو يشترى ختانة فتختنه، وذكر الكرخى في الجامع الصغير ويختنه الحمامي.

(فتاوى هندية ۵:۳۵۷، كتاب الكراهية، الباب التاسع عشر في الختان)

۲) (الدر المختار ۵:۵۳۰، مسائل شتّى بعد كتاب الخنثى)

وفي الهندية : غلام ختن فلم تقطع الجلدة كلّها فإن قطع أكثر من النصف يكون ختانًا وإن كان نصفًا أو دونه فلا، كذا في خزانة المفتين.

(فتاوى هندية ۵:۳۵۷، الباب التاسع عشر في الختان والخصاء)

**الجواب:** که د ذکر سر په پرده کې پټ وي؛ نو دوباره سنتول پکار دي. کنه نو بیا یې څه ضرورت نشته.

قال في الهندیه ۵: ۳۹۳: اختتن الصبي ثم طالت جلدته ان صار بحال تستر حشفته یقطع والا فلا کذا في المحیط (۱). انتهی وهو الموفق.

## په ذکر باندې د پردې راتلو لامله غسل کې د اوبو ننویستلو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د سنت شوي انسان خاص اندام باندې پرده راشي؛ نو دې پردې ته د اوبو ننوتو او غسل وغیره څه حکم دی؟ بینوا توجروا

**المستفتي** محمد محسن عباسي ... ۱۳۹۴هـ/۱/۲۸

**الجواب:** د غه قلفه (پردې) ته اوبه ورننوتل مندوب دي نه مفروض.

کما في شرح التنویر: و داخل قلفه بل یندب وهو الأصح قال الکمال وعلله بالحرج. (هامش ردالمحتار ۲: ۹۲) (۲). **وهوالموفق**

## د سنتې په وخت دعوت او د خلکو راغونډل

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د سنتې په وخت ډوډۍ ورکول

---

۱) (فتاوی هندیة ۵:۳۵۷، الباب التاسع عشر في الختان والخصاء الخ)

۲) (الدرالمختار ۱:۱۱۳، کتاب الطهارة، مطلب في أبحاث الغسل)

وفي الهندیة: الأقلف إذا اغتسل من الجنابة ولم یدخل الماء داخل الجلدة جاز کذا في المحیط، وفي واقعات الناطقي وهو المختار کذا في التتارخانیة، ویدخل الماء القلفة استحباباً کذا في فتح القدیر.

(فتاوی هندیة ۱:۱۴، الباب الثاني في الغسل، الفصل الأول في فرائضه)

او خلک راغوبنتل صحيح دي که نه؟ بينوا توجروا.

**المستفتي**: ظهور دير ... ۲۷ رمضان المبارک ۱۴۰۵ھ

**الجواب**: الأدب المفرد ، مولفه امام البخاري رَحِمَهُ اللهُ له يو حديث نه دعوت جواز او نه منکربدل ثابت دي،(۱) او د ابوداود طيالسي له حديث نه ختنه کې د دعوت نه ورکولو معمول ثابت دی.(۲) خو د دعوت ورکولو اهتمام چې کوم رواج دی خلاف سنت دی. (۳) **وهوالموفق**

## د پيدايشي مختون ماشوم دوباره سنتولو حکم

**سوال**: څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې يو ماشوم پيدايشي مختون وي نو بيا يې سنتول څنګه دي؟ بينوا توجروا

**المستفتي**: جمعه. ترياب هنګو ... ۵، جمادي الاول ۱۴۰۵ھ

---

۱) قال الإمام البخاري رحمه الله تعالى :عن عمر بن حمزة قال أخبرني سالم قال :ختنني ابن عمر أنا و نعيما،فذبح علينا كبشاً فلقد رأيتنا و إنا لنجذل به على الصبيان أن ذبح عنا كبشاً.

(أدب المفرد ۲۶۴باب الدعوة في الختان ،حديث ۱۲۴۶)

عن نافع قال : كان ابن عمر يطعم على ختان الصبيان .

(مصنف ابن أبي شيبة ۵۶۱: ۳رقم حديث ۱۷۱۶۶)

۲) عن الحسن قال :دُعي عثمان بن أبي العاص إلى ختان فأبي أن يجيب فقيل له فقال :إنّا كنّا لا نأتي الختان على عهد رسول الله ﷺ ولانُدعى له.

(مسند أحمد ۲۱۷: ۴حديث عثمان بن أبي العاص رضي الله تعالى عنه)

۳) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى :كل مباح يؤدي إلى زعم الجهال سنية أمر أو وجوبه فهو مكروه.

(فتاوى تنقيح الحامدية ۳۶۷: ۲مسائل و فوائد شتّى من الحظر والإباحة)

**الجواب:** نه به سنت کيږي، صبي حشفته ظاهرة بحيث لو رآه انسان ظنه مختوناً الخ ترک على حاله. هو، که له سنتي وروسته څه برخه يعني نيم يا له نيمايي کم ښکاري؛ تو د مختون په حکم کې به نه وي. درمختار ۶۵۶، ۵ (۱)

**وهوالموفق**

---

(۱) الدرالمختار ۵: ۵۲۹ مسائل شتّى ،قبيل كتاب الفرائض)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ :(قوله ويكفي قطع الأكثر) قال في التاتر خانية :غلام ختن فلم تقطع الجلدة كلها فإن قطع اكثر من النصف يكون ختانا وإلا فلا.

(ردالمحتار ۵: ۲۷۱ ،كتاب الحظر والإجابة ،قبيل فصل في البيع)

وفي الهندية :غلام ختن فلم تقطع الجلدة كلها فإن قطع اكثر من النصف يكون ختاناً وإن كان نصفاً أو دونه فلا، كذا في خزانة المفتيين.

(فتاوى هندية ۵: ۳۵۷ كتاب الكراهية ،الباب التاسع عشر في الختان)

الله الله

# فتاوی فریدیه

## نهم جلد

## باب الضيافة والدعوة

# باب الضيافة وإجابة الدعوة

## مېلمستيا کې د مسلمان او کافر تر منځ څه فرق نشته

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې حضورﷺ فرمايلي چې د مېلمه عزت کوئ، په دې کې د مسلمان يا کافر فرق شته که نه؟ بينوا توجروا

**المستفتي** نامعلوم

**الجواب:** هيڅ فرق نشته (١) **وهوالموفق**

## طفيلي او نابللي کس ته بې بلنې خوراک حرام دی

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې يو څوک چا ته بلنه ورکړي، هغه خپل ځان سره بل نابللی کس بوځي،

---

١) عن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه أن رسول الله ﷺ ضافه ضيف كافر فأمرله رسول الله ﷺ بشاة فحلبت فشرب... الحديث.

(جامع الترمذي ٤: ٢، ابواب الأطعمة، باب ماجاء أن المؤمن يأكل في معى واحد)

وعن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: من كان يؤمن بالله واليوم الآخر فليكرم ضيفه.

(مشكوة المصابيح ٣٦٨، باب الضيافة)

وفي الهندية: وفي التفاريق لا بأس بأن يضيف كافراً القرابة أو لحاجة، كذا في التمرتاشي.

(فتاوى هندية ٥: ٣٤٧، كتاب الكراهية، الباب الرابع عشر في أهل الذمة)

دغه نابللي ته خوراک حرام دی که مکروه او که جائز ؟ بینوا توجروا

**المستفتي** الف ګل مردان ...... ۱۴ رمضان

**الجواب:** طفیلي اونابللي لپاره دا خوراک حرام دی. (ابو داود طیالسي [۱]) یعني کله چې صریحاً یا عرفاً مأذون نه وي. ([۲]) **وهوالموفق**

## د منکرانو په وخت د دعوت منلو حکم

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې کور کې د واده په وخت ډول غږیږي، مولوي صاحب او نورو څو اسلام خوښو کسانو ګډون نامناسبه وګڼلو. اوس د ښادی وروسته مولوي صاحب او نور معززین چې مخکې ښادي کې د ډنګ ډونګ له وجې نه نه ورتلل. اوس یې بلنه ومنل. ځیني خلک اعتراض کوي چې له توبې وروسته هم هغه کور ته چې ډول او باجې غږېدلې وې بیا هم ورتلل نا جائز ګڼي. ایا معترض په حقه دی که مولوي صاحب او نور ملګري یې بینوا توجروا

**المستفتي** راجه محمد بشیر. فلور ملز ببول براسته ګوجر خان راولپنډی ... ۲۵/۸/۱۹۶۵ء

**الجواب:** که په دعوت کې د ګډون په وخت منکرات نه وي نومولوي صاحب په حقه دی او که نه معترض په حقه دی. في الدرالمختار: وان علم أولا باللعب لا يحضر أصلاً سواء كان ممن يقتدى به أولا ([۳]) **وهوالموفق**

---

۱) عن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه من دخل على طعام ولم يدع له دخل فاسقاً وأكل حراماً. (أبوداؤد طيالسى ۴:۹۴،ومارو ى سعيد بن أبي سعيد عن أبي هريرة)

۲) وقال العلامة المرغيناني رحمه الله تعالى: ثم الإذن كما يثبت بالصريح يثبت بالدلالة. (الهداية ۳:۳۶۲، كتاب المأذون)

۳) (الدر المختار ۵:۲۴۵، كتاب الحظر والإباحة)...(پاتي حاشيه په بل مخ)

## مسجد ته نژدې د سندرو او باجو والا ښادۍ د دعوت حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې يوه علاقه کې د ښادۍ په وخت موسيقي او ډمې وغيره راولي په لارو کې ډول او باجې غږوي، د شپې ورسره وي، نوڅنګه جائز دي چې د جومات مخې ته هم موسيقي. ډول او سورنا وهي ددې حکم راوليږئ. ډيره مننه؟ بينوا توجروا

**المستفتي** مولوی عمر خطاب. اوګی مانسهره.... ۶/ذي قعده ۱۴۰۲ھ

جواب: په کوم واده کې چې سرود. باجې وغيره وي نو د داسې واده بلنه منل ناروا ده

لحديث عمر بن حصين نهى رسول الله ﷺ عن اجابة طعام الفاسقين، رواه البيهقى فى شعب الايمان. (مشكوة المصابيح ۲: ۲۷۹(۱) محشى مولانا نصير الدين الغورغشتوى رحمه الله تعالى)

دا ځکه په دې کېږي چې د فساقو او فجارو خلکو مدارات او حوصله افزائي کيږي او کله چې په مسجد کې

---

(د حاشيې پاتې برخه) وفي الخلاصة: رجل دعى إلى وليمة أوطعام فوجد ثمه لعباً أو غناءً لا بأس بأن يقعد ويأكل وهذا إذا لم يكن ذلک على المائدة بل في المنزل فإن كان ذلک على المائدة أو يشربون الخمر على المائدة لا يقعد.

(خلاصة الفتاوى ۴:۳۵۷، كتاب الكراهية، الفصل الخامس في الأكل)

۱) (مشكوة المصابيح ۲۷۹، كتاب النكاح، باب الوليمة)

وفي الهندية: لا يجيب دعوة الفاسق المعلن ليعلم أنه غير راض بفسقه.

(فتاوى هندية ۵:۳۴۳، كتاب الكراهية، الباب الثانى عشر في الهدايا الخ)

په لوړ غږ سره ذکر ناروا دی تر څو لمونځ کونکي ته تکليف ونه رسيږي.(۱) او جومات ته نژدې سندرې او سازونه په څنګه ممنوع نه وي؟ حال دا چې ديکښې خو هر ډول ضرر رسول موجود وي. دا د موجوده زمانې پښتون قوم د سابقه زمانې له موسيقى نه خراب دی. څکه چې هغوی ته پکار وو چې مخکې بې بايد د مسجد احترام ساتلی وی او ډول وغيره يې بند کړي وای والله اعلم

## د سرود په مجلس کې کډون او د بلنې منلو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د يو کلي دوه ملايان دي، يو باعمله دی او بل سم عالم هم نه دی او بې عمله هم دی. په کوم ځای کې چې واده وي، هلته ډولونه. سازونه وغيره وي. نو هغه ضرور پکې ګډون کوي او وايي چې ډول نه بندوم. دا بل مولوي صاحب هغه منع کوي، مخالفت يې کوي او دا بې عمله مولوي مسجد کې راکښنوي منعه کوي يې او وعده ترې اخلي خو بيا هم وعده خلافي او منافقت کوي، بې له دې د جنازې په لمونځ او د نکاح په مسئلو هم سم نه پوهيږي. نکاح هم غلطه وايي. د داسې کس شريعت کې څه مقام دی؟ کوم خلک چې له جومات سره ډول او باجې د ضد له وجې غږوي د هغوی څه حکم دی؟ کوم واده کې چې ډول وهل کيږي هلته خوراک کول پکار دي يا نه او څومره ګناه لري؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد سعيد هزاروي، راولپنډي

**الجواب:** کوم مجلس کې چې سرود وغيره غږيږي نو په هغه کې ګډون حرام دی.(۲) قرآن مجيد

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: أجمع العلماء سلفًا وخلفًا على استحباب ذكر الجماعة في المساجد وغيرها إلاأن يشوّش جهرهم على نائم أومصل أو قارئ.
(ردالمحتار ۱:۴۸۸،باب مايفسد الصلوة ومايكره فيها،مطلب في رفع الصوت بالذكر)

۲) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: استماع ...(پاتې حاشيه په بل مخ)

کې په اعرض عنهم باندې امر راغلی(۱) وکره الألوسی عن البعض بالشمول لجمیع مجالس السوء(۲) دا دول دعوتونه منل هم حرام دي لحدیث البیهقی نهیٰ رسول الله ﷺ عن اجابة طعام الفاسقین، مشکوة ۲۷۹ (۳).وهوالموفق.

## د ډمانو په واده کې د دعوت حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام ددې مسئلې په باره کښې چې د واده هغه دعوت چې په هغې کښې ډمان وغيره وي څنګه دی؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** عبدالله

**الجواب:** د داسې دعوت قبلول منع دي كما فی حديث عمران بن أنس رضی الله تعالی عنه قال: نهیٰ رسول الله ﷺ عن إجابة طعام الفاسقين......

---

(د حاشيې پاتې برخه) الملاهی معصية والجلوس عليها فسق.
(الدرالمختار ۵:۲۴۶، كتاب الحظر والإباحة)

۱) قال الله تبارک وتعالی: ﴿وَإِذَا رَأَيْتَ الَّذِينَ يَخُوضُونَ فِيٓ آيَاتِنَا فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ حَتَّىٰ يَخُوضُوا فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِ﴾... الآية. (سورة الانعام آيت: ۶۸)

۲) قال العلامة آلوسي رحمه الله تعالى: واستدل بعضهم بالآية على تحريم مجالسة الفساق والمبتدعين من أى جنس كانوا.
(روح المعاني ۴:۲۵۵، سورة النساء آيت: ۱۴۰)

۳) (مشكوة المصابيح ۲۷۹، كتاب النكاح، باب الوليمة)

وفي الهندية: ولايجيب دعوة الفاسق المعلن ليعلم أنه غير راض بفسقه.
(فتاوى هندية ۵:۳۴۳، كتاب الكراهية، الباب الثانى عشر في الهدايا)

مشكوة ۲۷۹ (¹) وفى رد المحتار ۵: ۳۰۴ وفى البناية اجابة الدعوة سنة وليمة أوغيرها أما دعوة يقصد بها التطاول أو إنشاء الحمد وما اشبهه فلا ينبغى إجابتها لاسيما اهل العلم (²) انتهى قلت: دعوة أهل زماننا لايخلو عن الفخر والرياء فافهم. وهوالموفق

## د واده نه مخکښې د دعوت خوراک حرام نه دی

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام ددې مسئلې په باره کښې چې د واده نه مخکښې خپلوانو ته د وليمې دعوت ورکولی شي آيا دا به د وليمې په دعوت کښې شمارل کيږي؟ او ددې خوراک حلال دی يا حرام؟ بينواتوجروا

**المستفتي** عبد الحکيم ، مردان ....... ۶ ذي الحجه ۱۴۰۲هـ

**الجواب:** واضحه دې وي چې کوم خوراک د ښځې (ناوې) کور ته د راوستلو نه مخکښې، خپلوانو وغيره باندې خوړل کيږي دا وليمه نه ده. رسول الله صلى الله عليه وسلم به د واده نه پس په خلکو خوراک کولو، (³) خو ددې دا مطلب نه دی چې د واده نه مخکښې دا ناجائز او د کفر کار دی. ځکه چې نه په قرآن او حديث کې ددې نه منع راغلې ده. نه په آثارو او فقه کې په دې باندې انکار شوی دی. بلکې د احاديثو په نورو روايانو کې دعوت قبلول، که د وليمې وي او که بغير د وليمې وي دا جائز بلکې ضروري ګرځول شوی دی.

کما فى حديث متفق عليه: حق المسلم على المسلم

---

۱) (مشكوة المصابيح ۲۷۹، كتاب النكاح، باب الوليمة)

وفي خلاصة الفتاوى: يجوز للرجل أن يجيب دعوة الفاسق والأورع أن لايجيب. (خلاصة الفتاوى ۴: ۳۵۸، كتاب الكراهية، الفصل الخامس في الأكل)

۲) (ردالمحتار ۵: ۲۴۵، كتاب الحظر والإباحة)

۳) قال العلا علي قاري رحمه الله تعالى: قيل أنها تكون بعد الدخول وقيل عند العقد وقيل عندهما. (مرقاة المفاتيح ۶: ۳۶۶، باب الوليمة، الفصل الأول)

خمس رد السلام......واجابة الدعوة()

دغسې قرباني چې د وليمې پشان عبادت موقته دی. کله چې د خپل وخت (لمونځ) نه مخکې وشي؛ نو د عبادت معنی په دې کې ختمه شي دا نه چې د دې خوراک ناجائز کيږي. كما في حديث متفق عليه، ومن ذبح قبل أن نصلي فإنما شاة لحم عجله لأهله ليس من النسكة في شيء() دغسې کله چې څوک سنت د سبا راختلو نه مخکې ذبح وکړي: نو دده څخه سنيت فوت کيږي دا نه چې لمونځ نفل نه شو ()وهوالموفق

## د سندرو باجو او اتڼ کونکو د بلنې حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې کوم واده پروګرام کې واده والا ګانې باجې يا اتڼ او ګډېدل وکړي نو د هغه کور د وليمې خوړل څه حکم لري؟ آيا ددې خوړل صحيح دي؟ بينوا توجروا

**المستفتي** ملک شير زمين . دير...... ۲۱/ شعبان ۱۴۰۳ هـ

---

۱) (مشكوة المصابيح ۱۳۳، كتاب الجنائز، باب عيادة المريض وثواب المرض)

۲) (مشكوة المصابيح ۱۲۶، باب صلاة العيدين)

۳) وفي المنهاج: والوليمة قيل تكون بعد البناء وقيل تكون عند العقد كما في المرقاة وغيره فما يطعم قبل العقد أوالبناء لا تكون وليمة وسنة وعبادة بل يكون طعاماً محضاً، ونظيره ما رواه البخاري أن النبي ﷺ جعل ذبيحة من ضحّى قبل الصلوة لحماً لابدعة وحراماً، وبالجملة أن بفوات الوقت في العبادات المؤقتة يفوت معنى العبادة دون الحل، كيف وقال رسول الله ﷺ إذا دعا أحدكم أخاه فليجبه عرساً كان أو غير عرس رواه أبوداؤد.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ۴:۲۵۰، باب ماجاء في الوليمة)

**الجواب:** که د هغو بلونکو له خوا د تکلیف رسولو خطره نه وي یا له هغو نه د دین قبلولو د دعوت حیله نه وي نو اجابت مه کوئ،

لما رواه البیهقی عن عمران بن حصین قال نهی رسول الله ﷺ عن إجابة طعام الفاسقین (۱) ولما رواه عن جابر قال قال رسول الله ﷺ: اوحی الله عز وجل الی جبریل علیه السلام ان اقلب مدینة کذا وکذا بأهلها فقال: یارب ان فیهم عبدك فلان لم یعصك طرفة عین، قال فقال اقلبها علیه علیهم فان وجهه لم یتمعّر فی ساعة قط (۲) وهو الموفق

## واده کې د سندرو باجو او د غیر شرعي رسوماتو په ارتکاب په ښځه د طلاق شرط لګولو باوجود خوره کې د ګډون مسئله

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې زموږ د کورونو مشرانو په دې خبرو تړون کړی چې اینده به کورونو کې په واده یا تقریب کې ښځې نه په ښکاره او نه په پټه سندرې او نور غیر شرعي رواجونه کوي. که چا پکې ګډون وکړ یا خپله ددې کار مرتکب شو په هغه به ښځه طلاقه وي، څه موده به پرې عمل کېدلو، تېر کال ښځو په پټه سندرې او نور غیر شرعي رسمونه کړي و. بیا بل واده کې ټولو په ښکاره دا نخرې وکړې، د پورتني عهد او تړون د زمانې خلک ټول مړه دي د هغوی اولادونه او خپلوان د هغو رسوماتو مرتکب شول نو دا اوسني خلک د تعزیر قابل دي که نه دي؟ د هغوی د مشرانو د عهد او تړون په سبب شرعاً په هغوی

---

۱) (مشکوة المصابیح ۲۷۹، کتاب النکاح، باب الولیمة)

وفي الهندیة: ولا یجیب دعوة الفاسق المعلن لیعلم أنه غیر راض بفسقه.

(فتاوی الهندیة: ۳۴۳ کتاب الکراهیة، الباب الثاني عشر في الهدایا)

۲) مشکوة المصابیح ۴۳۸، باب الأمر بالمعروف)

ځيلي ښځې طلاقيږي که نه؟ ځينې غير مرتكبينو د رسمياتو د مرتكبينو خلكو په كورونو كې ډوډۍ هم خوړلې ده د هغوى څه حكم دى؟ بينوا توجروا

**المستفتي** عبدالله، پشاور

**الجواب:** (۱) په داسې ودونو كې ګډون حرام دى (۱)

(۲) او ګډون كونكو باندې ښځې نه طلاقيږي ځكه چې ترون كونكي ختم شوي دي

(۳) او د دغه واده خوراك نه و يكار (۲) **وهو الموفق**

---

۱) قال الله تبارک وتعالى: **وَإِذَا رَأَيْتَ الَّذِينَ يَخُوضُونَ فِي آيَاتِنَا فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ حَتَّى يَخُوضُوا فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِ.**
(سورة الأنعام آيت: ۶۸)

وقال العلامة القرطبي رحمه الله تعالى: فكل من جلس في مجلس معصية ولم ينكر عليهم يكون معهم في الوزر سواء، وينبغي أن ينكر عليهم إذا تكلموا بالمعصية وعملوا بها فإن لم يقدر على النكير عليهم فينبغي أن يقوم عنهم حتى لا يكون من أهل هذه الآية.
(تفسير القرطبي ۵:۳۹۷ آيت: ۱۴۰)

۲) عن عمران بن حصين رضي الله تعالى عنه قال: نهى رسول الله ﷺ عن إجابة طعام الفاسقين. (مشكوة المصابيح ۲۷۹، كتاب النكاح، باب الوليمة)

وفي البزازية: وفي الروضة يجيب دعوة الفاسق والورع أن لا يجيبه.
(فتاوى بزازية على هامش الهندية ۶:۳۶۴، كتاب الكراهية، الفصل الخامس في الأكل)

وفي خلاصة الفتاوى: يجوز للرجل أن يجيب دعوة الفاسق والأورع أن لايجيب. (خلاصة الفتاوى ۴:۳۵۸، كتاب الكراهية، الفصل الخامس في الأكل)

## د واده کولو نیټه ټاکل خپلوان او کلیوال راغونډول

## او ناوې ډولۍ کې د کښنولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د واده کولو نیټه ټاکل، او خپلوان راغونډول او کلیوالو ته بلنه ورکول روا ده که ناروا؟ **بینوا توجروا**

**المستفتي:** اهلیان مصري بانډه... ۷۶، ۳، ۲۱

**الجواب:** دا کارونه په رواج کې داخل دي، شرعي بدعات نه دي، ځکه چې دا خلک دا کار په دیني عقیده نه کوي[۱] فافهم **وهوالموفق**

## غیر مقتدیٰ ته د مصلحت پر بنا یا بې خبرۍ کې ګډېدل

## او د سندرو والا واده کې ګډون کول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې کوم واده کې ګډېدل

---

۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: بدعة وهي اعتقاد خلاف المعروف عن الرسول ﷺ لا بمعاندة بل بنوع شبهة. (الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: تعريف الشمنى لها بأنها ما أحدث على خلاف الحق الملتقى عن رسول الله ﷺ من علم أو عمل أو حال بنوع شبهة واستحسان، وجعل دينا قويما وصراطًا مستقيما.

(ردالمحتار ۱:۴۱۴، باب الإمامة، مطلب البدعة خمسة أقسام)

وغيره وي نو ايا د هغه طعام (وليمه) خوړل جائز دي؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** جناب مقدر شاه، مصري بانډه..... ۱۹۷۶/۱/۱۱ء

**الجواب:** دداسي دعوت منل ممنوع دي. لحديث البيهقي نهى رسول الله ﷺ عن إجابة طعام الفاسقين،(١) او كه د څه مصلحت له وجې ومنل شي يا نا خبرې كې ورشي؛ نو خوراک جائز دی، په دي شرط چي دا مدعو مقتدی نه وي او په دي خوړو كي سرود وغيره نه وي. لما في الدر المختار دعي الى وليمة وثمة لعب او غناء قعد واكل، لو المنكر في المنزل فلو على المائدة لا ينبغي أن يقعد بل يخرج معرضاً لقوله تعالى: فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرٰى مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ. فان قدر على المنع فعل والا يقدر صبر ان لم يكن ممن يقتدى به فان كان مقتدى ولم يقدر على المنع خرج ولم يقعد لأن فيه شين الدين وان علم أولاً باللعب لا يحضر اصلاً سواء كان ممن يقتدى به اولا (٢). وهو الموفق.

---

١) (مشكوة المصابيح ٢٧٩، كتاب النكاح، باب الوليمه)

وفي الهندية: لا يجيب دعوة الفاسق المعلن ليعلم أنه غير راض بفسقه.

(فتاوى هندية ٥:٣٤٣، كتاب الكراهية، الباب الثاني عشر في الهدايا الخ)

٢) (الدرالمختار ٥:٢٤٥، كتاب الحظر والإباحة)

وفي الخلاصة: رجل دعى إلى وليمة أوطعام فوجد ثمه لعباً أو غناءً لابأس بأن يقعد و يأكل، وهذا إذا لم يكن ذلك على المائدة بل في المنزل، فإن كان ذلك على المائدة أو يشربون الخمر على المائدة لا يقعد وهذا إذا كان الرجل خامل الذكر فإن كان ممن يقتدى به لا يقعد ان لم يقدر على النهى في الوجهين... وهذا إذالم يعلم بذلك قبل الدخول في البيت.

(خلاصة الفتاوى ٤:٣٥٧، كتاب الكراهية، الفصل الخامس في الأكل)

## له مشترکه ترکې نه د مثر وړور تصدق، ضيافت او دعوت کول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې زيد وفات شو. څه ماشومان يې غټ او څه واړه دي، مخکې له شريک مال نه صدقه او ختم دا غټ وړور کولای شي که نه؟

(۲) د کفن پيسې فوراً ورکول جائز دي يا ناجائز؟ بينوا توجروا

**المستفتي** حنيف صاحب.... ۱۴۰۰ هـ ۲۵/۷

**الجواب:** (۱) که دې مړي وصيت نه وي کړی نو دا لوی وړور مشترکه مال نه خيرات نشي کولای (۱) مسکينانو ته طعام ورکول جائز دي او د رسم و رواج، ضيافت او دعوت پابندي نا روا ده. د شامي څخه اخيستل شوی ۱/۸۴۲ (۲).

**وهوالموفق**

---

۱) وفي شرح المجلة: كلٌّ من الشركاء في شركة الملك أجنبى في حصة سائرهم فليس أحدهم وكيلاً عن الأخر ولايجوز له أن يتصرف في حصة شريكه بدون إذنه.
(شرح المجلة لسليم رستم باز رحمه الله تعالى ۱/۶۰۱،المادة:۱۰۷۵)

۲) وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى :ويكره إتخاذ الضيافة من الطعام من أهل الميت...وهى بدعة مستقبحة..... عن جرير بن عبد الله قال: كنّا نعد الاجتماع إلى أهل الميت وصنعهم الطعام من النياحة، وفي البزازية: ويكره إتخاذ الطعام في اليوم الأول والثالث وبعد الأسبوع .... وفيها من كتاب الإستحسان: وإن اتخذ طعاماً للفقراء كان حسناً.
(ردالمحتار ۲:۶۶۴،كتاب الجنائز، مطلب في كراهة الضيافة من أهل الميت)

الله الله

بسم الله الرحمن الرحيم

قال رسول الله صلى الله عليه وسلم

البادئ بالسلام بريءٌ من الكبر.

(رواه البيهقي)

# باب السّلام

## د سلام، جواب او د پرېښودونکي حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې کې چې سلام اچول مؤکد سنت دي يا واجب؟ دا هم ووايئ چې د سلام تارک به ملامتيږي که نه؟ د مسئلې حقيقت روښانه کړئ مننه؟ بينوا توجروا

**المستفتي** متعلم محمد سليم دار العلوم حقانيه اکوړه خټک

۴/ذی القعده ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** غير مستثنى صورتونو کې سلام اچول مسنون دي او جواب ورکول يې واجب دي[1] او تارک سنت مؤکده د عتاب ور جوړيږي[2]، البته ددې معرفت د عوام کالأنعام کارونه دي. **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة ابن عابدين: قال في شرح السنّة: واعلم أنهم قالوا إن السّلام سنّة واستماعه مستحب وجوابه أی ردّه فرض کفاية.
(ردالمحتار ۵:۲۹۳، کتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

وفي الإختيار: والتسليم سنة ورده فريضة.
(الاختيار لتعليل المختار ۴:۲۰۴، کتاب الکراهية، فصل في الاحتکار)

۲) قال العلامة الحصکفي: وحکمها ما يؤجر على فعله ويلام على ترکه. (درمختار)

وقال العلامة ابن عابدين: (قوله ويلام) أی يعاتب بالتاء لا يعاقب کما أفاده في البحر والنهر، لکن في التلويح ترک السنّة المؤکّدة قريبة من الحرام يستحق حرمان الشفاعة لقوله عليه الصلوة والسّلام: من ترک سنتي لم ينل شفاعتي.
(ردالمحتار ۱:۷۷، مطلب في السنة وتعريفها، کتاب الطهارة)

## فاسق باندې سلام اچول او د هغه د سلام ځواب ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې ځوک چې بنکاره فاسق وي. په هغه سلام د اچولو څه حكم دی؟ بينوا توجروا

**المستفتي** عبد الرحيم... ۷۹/۱۰/۲۵

**الجواب:** فساقو باندې ابتداء سلام بې له څه مصلحته مكروه دى. (۱) خو د هغوی د سلام ځواب وركول ضروري دى (۲) **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة ابن عابدين: يكره السّلام على الفاسق لو معلنًا وإلّا لا. (رد المحتار ۱: ۴۵۶؛ مطلب المواضع التي يكره فيها السّلام)

وفي الهندية: واختلف في السّلام على الفساق، في الأصحّ أنّه لا يبدأ بالسّلام كذا في التمرتاشي. (فتاوى هندية ۵: ۳۲۶، كتاب الكراهية، الباب السابع في السّلام)

۲) عن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ حق المسلم على المسلم خمس: ردّ السّلام وعيادة المريض الخ... وعن البراء ابن عازب رضي الله تعالى عنه قال أمرنا النبي ﷺ بسبع ونهانا عن سبع، أمرنا بعيادة المريض واتباع الجنائز وتشميت العاطس وردّ السّلام الخ، متفق عليه.
(مشكوة المصابيح ۱۳۳، باب عيادت المريض)

وقال المفتي كفايت الله رحمه الله: *سوال:* د فاسق د سلام ځواب وركول څه حكم لري؟ په شامي ۵۷۸ كې چې كوم بيت علامه جلال الدين سيوطي نقل كړى دى ، ددې څخه معلوميږي چې ځواب ويل واجب نه دى، سوال دا دى چې واجب نه وي نو اولى دى او كه غير اولى؟ كه مكروه وي نو مكروه تحريمي دى كه مكروه تنزيهي؟

جواب: د فاسق د سلام ځواب وركول واجب نه دى، خو ځواب وركول جائز دى، مكروه نه دى.
(كفايت المفتي ۹: ۱۰۶، كتاب الحظر والاباحة)
(دفاسق دسلام ځواب دضروري كېدو صريح حواله ماته د تتبع باوجود ملاو نه شوه.)

**له فتنې په امن کېدو صورت کې پردی ښځه باندې د سلام اچولو حکم**

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې پردی ښځه باندې سلام اچول. چې کله د فتنې او فساد له احتمال نه خالي وي. روا دی که ناروا؟ ددې وضاحت وکړئ؟ بينوا تو جروا

**المستفتي** اسماعيل وزيرستاني متعلم حقانيه... ۲۷ / ربيع الاول ۱۴۰۱ ھ

**الجواب:** د فتنې څخه د امن په وخت ممنوع نه بلکې جائز دی. يدل عليه ما فی الهنديه ۵: ۳۶۱: اذا سلّمت المرأة الأجنبية على رجل، ان كانت عجوزا ردالرجل عليها السلام بلسانه بصوت تسمع، وان كانت شابة ردّ عليها في نفسه، والرجل إذا سلم على إمرأة أجنبية فالجواب فيه على العكس (۱) وهوالموفق.

**بيرغ ته د سلام کولو حکم**

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې زموږ وطن کې سهار وختي د مکتبونو د شروع کېدو په وخت چې کله بيرغ پورته کيږي: نو د مکتب هلکان دغه بيرغ ته سلام کوي او ترانې ختمېدو پورې څو هلکان سلامي ولاړ وي. مطلب دا چې د مسلمانانو ماشومان پاکستاني بيرغ طرف ته سلامي دړول جائز دي يا نه؟بينوا تو جروا

**المستفتي** محمود شاه امام مسجد کوهاټ روډ بنو.. ۷۶ / ۱ / ۲۷

---

۱) (فتاوى هندية ۵:۳۲۶، كتاب الكراهية، الباب السابع في السّلام)

وفي الاختيار: ويجب على المرأة ردّ سلام الرجل، ولا ترفع صوتها لأنه عورة، وإن سلّمت عليه، فإن كانت عجوزاً ردّ عليها وإن كانت شابة ردّ في نفسه.

(الاختيار لتعليل المختار ۴:۲۰۵، كتاب الكراهية، فصل في الاحتكار)

**الجواب:** بيرغ نه سلام كول د كفارو شعار دى. خير القرون كې مجاهدينو بيرغ درولى: خو هيڅا ورته سلام نه دى كړى د كوم باچا مجسمې يا بت او بيرغ نه سلام كول غير اسلامي كارونه دي (۱) والله أعلم بالصواب

## «السلام عليكم» ويلو باندې څومره ثواب ملاويږي؟

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې د السلام عليكم ويونكې ته او جوابونكې ته څومره ثواب ملاويږي؟ بينوا توجروا

**المستفتي** حاجي قطب الدين منډى بهاوالدين ګجرات ۷ جولائي ۱۹۸۱ء

**الجواب:** لږ تر لږه د لسو نېكيو ثواب وركول كيږي (قرآن) (۲) **وهوالموفق**

## زيد د غائب كس لپاره د عالم لاس ښكلوي او سلام وايي

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې زيد ديو مولانا صاحب ملاقات اراده كړې وه. نو عمر ورته وويل چې زما سلام ورې وايه او زما لپاره يې لاسونه هم ښكل كړه اوس زيد باندې دا دواړه خبرې لازمي دي يا صرف سلام رسول لازم دي. او په دغه لاس

---

۱) وعن عمروبن شعيب عن أبيه عن جده أن رسول الله ﷺ قال ليس منا أى من أهل طريقتنا ومراعي متابعتنا (من تشبه بغيرنا) أى من غير أهل ملتنا (لاتشبهوا باليهود ولا بالنصارى فإن تسليم اليهود الإشارة بالأصابع وتسليم النصارى الإشارة بالأكف)، والمعنى لا تشبهوا بهم جميعا في جميع أفعالهم خصوصاً في هاتين الخصلتين لعلهم كانوا يكتفون في السلام ورده أو فيهما بالإشارة من غير نطق بلفظ السلام الذي هو سنة آدم وذريته من الأنبياء والأولياء. (مرقاة المفاتيح ۹:۵۷، باب السلام)

۲) قال الله تبارك وتعالى: مَن جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا. (سورة الأنعام آيت: ۱۶۰)

ښکلولو کې څه اجر شته که نه؟ بینوا توجروا

**المستفتي** نامعلوم ۲۹ ۱۳۹۳هـ

**الجواب:** ښکلول څه ضروري کار نه دی[۱] او نه وکالت ثابتیږي. **وهوالموفق**

## دښمن سره سلام کلام نه کول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې زموږ کورنو کې د دوه ډلو د دښمني تقريباً پنځه نیم کاله کیږي. کله په یو بل فیرونه کوي او کله خیلو کې د روغې جوړې معاهدې هم کوي. د معاهدې په دوران کې یو بل سره ملاقاتونه کوي، خبرې اترې کوي سلام او کلام کوي. ځینې خلک وايي چې طرفین دې په یو بل سلام نه کوي او یو بل سره دې نه کېنيني. دا ډول سلام کلام نه کول څه حکم لري؟ بینوا توجروا

**المستفتي** کریم شاه حسن خیل پښاور

---

۱) في المرقاة: لا يكره التقبيل لزهد وعلم وكبر سن، قال النووي: تقبيل يد الغير إن كان لعلمه وصيانته وزهده وديانته ونحو ذلك من الأمور الدينية لم يكره بل يستحب، وإن كان لغناه أو جاهه في دنياه كره وقيل حرام... وأما المأذون فيه فعند التوديع والقدوم من السفر وطول العهد بالصاحب وشدة الحب في الله مع أمن النفس.

(مرقاة المفاتيح ۹:۷۶ كتاب الآداب، باب المصافحة والمعانقة)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالیٰ: (وأما على وجه البرّ فجائز عند الكل) قال الإمام العيني بعد كلام فعلم إباحة تقبيل اليد والرجل والرأس والكشح كما علم من الأحاديث المتقدمة إباحتها على الجبهة.

(ردالمحتار ۵:۲۶۹ كتاب الحظر والإباحة، باب الاستبراء)

**الجواب:** د عوامو دښمني دنيوي كارونو باندې وي چې له درې ورځو زيانه اوږدول د حديث له مخې حرام كار دى. (۱) لهذا سلام كلام كول د ثواب كار دى، له دې سره دښمني كمېږي (۲) په دې شرط چې مخالف قوم يې بده نه ګڼي. كه بده يې ګڼي نو د فتنې د شر زياتېدو له وېرې سلام وكلام نه دى كول پكار (۳) **وهوالموفق**

---

۱) عن أبي يوسف الأنصاري رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: لا يحل للرجل أن يهجر أخاه فوق ثلاث ليال، يلتقيان فيعرض هذا، ويعرض هذا وخيرهما الذي يبدأ بالسلام. متفق عليه. (مشكوة المصابيح)

وفي المرقاة: قال أكمل الدين من أئمّتنا: في الحديث دلالة على حرمة هجران الأخ المسلم فوق ثلاثة أيام.

(مرقاة المفاتيح ۹:۲۶۲ باب ماينهى عنه من التهاجر والتقاطع الخ)

۲) قال العلامة شاه ولي الله رحمه الله تعالى: قال رسول الله ﷺ: لا تدخلون الجنة حتى تؤمنوا ولا تؤمنوا حتى تحابّوا، أولا أدلكم على شيئ إذا فعلتموه تحاببتم أفشوا السلام بينكم.

أقول: بين النبي ﷺ فائدة السلام وسبب مشروعيته فانّ التحابب في الناس خصلة يرضاها الله تعالى وإفشاء السلام آلة صالحة لإنشاء المحبة.

(حجة الله البالغة ۳۴۷، آداب الصحبة)

۳) في درر الحكام: درء المفاسد أولى من جلب المنافع أى إذا تعارضت مفسدة ومصلحة يقدم دفع المفسدة على جلب المصلحة، فإذا أراد شخص مباشرة عمل ينتج منفعة له ولكنه من الجهة الأخرى يستلزم ضرراً مساويا لتلك المنفعة أو أكبر منها يلحق بالآخرين فيجب أن يقلع عن إجراء ذلك العمل درءاً للمفسدة المقدم دفعها على جلب المنفعة، لأن الشرع اعتنى بالمنهيات أكثر من اعتنائه بالمأمور بها.

(درر الحكام ۱:۲۷، المادة: ۳۰)

## په يهودو او عيسايانو باندې سلام اچول او د هغوى د سلام ځواب

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې په يهودو او عيسايانو باندې سلام اچول يا ځواب وركول څه حكم لري؟ بينوا توجروا

**المستفتي** محمد رفيق عفي عنه... ۲۵/ رجب المرجب ۱۳۸۵ هـ

**الجواب:** د شرعي اړتيا پرته په هغوى د سلام پيلول منعه دي او د هغوى سلام جواب ته وعليكم ويل مسنون دي (۱) **وهوالموفق**

## پردى ښځې ته د سلام اچولو حكم

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې ايا پردى ښځې ته سلام اچول جائز دي كه نا جائز؟ بينوا توجروا

**المستفتي** صوفي محمد اسماعيل وزيرستان.

متعلم ومؤذن ثاني حقانيه... محرم ۱۴۰۱ هـ

**الجواب:** اوسني دور كې به په پردى ښځه باندې سلام نه اچول كيږي.

سدأ لباب الفتنة (۲) والا

---

۱) قال العلامة الحصكفي رحمة الله تعالىٰ: ويسلم المسلم على أهل الذمة لوله حاجة إليه والإ كره، هوالصحيح.....وفي بعض نسخ المتن ولايسلم وهوالأحسن ولوسلم يهودي أو نصراني أومجوسي على مسلم فلابأس بالرد ولكن لايزيد على قوله وعليك، كمافي الخانية. (الدر المختار ۵: ۲۹۲كتاب الكراهية،فصل في البيع)

۲) قال الدكتور وهبة الزحيلي رحمه الله تعالىٰ: سدالذرائع أصول الشريعة الإسلامية،.... سدّ الذرائع لايقتصر على مواضع الإشتباه والإحتياط،وإنما يشمل كل ما من شأنه التوصل به إلى الحرام.....وضابط منع الذريعة: أن تكون من شأنها الإفضاء إلى المفسدة لامحالة (قطعاً) أو كثيرا،وأن تكون....(پاتې حاشيه په بل مخ)

فلاحرج فی نفسه کما صرح بالجواز فی ردالمحتار ۵:۳۲۴.(۱)وهوالموفق

---

(د حاشيې پاتې برخه) مفسدة الفعل أرجح مماقد يترتب على الوسيلة من المصلحة.
(الفقه الإسلامي وأدلته ٥٢٥٨:٥، بشأن سدّ الذرائع)

١) وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: وإذا سلّمت المرأة الأجنبية على الرجل إن كانت عجوزاً ردالرجل عليها السلام بلسانه بصوت تسمع، وإن كانت شابة رد عليها في نفسه، وكذا الرجل إذا سلّم على امرأة اجنبية فالجواب فيه على العكس.
(ردالمحتار ٥: ٢٦١، كتاب الحظر والإباحة، فصل في النظر والمس)
(ومثله في الفتاوى الهندية ٥: ٣٢٦، كتاب السلام، الباب السابع في السلام)

الله الله

بسم الله الرحمن الرحيم

قال رسول الله صلى الله عليه وسلم

لم ينزل الله داءً إلا وأنزل معه الدواء

إلا الهرم فعليكم بألبان البقر

فإنها ترمّ من الشجر.

(مسند الإمام الأعظم)

# باب التداوی والمعالجة

## د کافر ډاکټر نه علاج کول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې عمليات کول غواړم. کوم هسپتال کې چې د اپريشن اراده لرم هغه پندې، کې دې او عيسايان ورځي. ماته هغه هسپتال کې اپريشن او علاج کول صحيح دي که نه؟ بينوا توجروا!

**المستفتي** عابد، ميډيکل سټور ۱۰ مين مارکيټ مردان ۱۹۸۶ء ،۷، ۲۳

**الجواب:** کافر ډاکټر نه علاج کول او د هغه له علاج لاندې پاتې کېدل شرعي ممنوعيت نه لري. (۱) البته حرامه دوايي استعمالول بې ضرورته ممنوع شرعي دي (۲) **وهوالموفق**

## کمزوري ډاکټر نه د علاج او معالجې حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې زه يو تکړه کمپوډر يم. په ۱۹۷۰ء کې ما د ميډيکل فيکلټي لاهور امتحان په کاميابی سره ورکړی دی چې هغوی راته سند راکړی دی. له دې

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله وأفاده في النهر) ... وفيه إشارة إلى أن المريض يجوز له أن يستطب بالكافر فيما عدا إبطال العبادة.
(رد المحتار ۲:۱۲۷ كتاب الصوم، فصل في العوارض المبيحة لعدم الصوم)

۲) وفي المحيط البرهاني: الاستشفاء بالمحرم إنّما لا يجوز إذا لم يعلم أنّ فيه شفاء، أمّا إذا علم أنّ فيه شفاء وليس له دواء آخر غيره فيجوز الإستشفاء به.
(المحيط البرهاني ۶:۱۱۶ كتاب الاستحسان، الفصل التاسع عشر في التداوي والمعالجات)

نه بعد ما دوه درې کاله ډاکټرانو سره تجربې هم کړې. اوس خپل کلي سرای نورنګ کې ما خپل میډیکل سټور خلاص کړی دی. تقریباً لس کاله کیږي مریضان ګورم ډیر مریضان هم راځي د هر مریض د صحت خاص خیال کوم او د کومو مرضونو تشخیص چې نشم کولای لکه د زړه مریضي. د تبې مریضي، فشار او شوګر مریضي نو داسې مریضان ایم بي بي ایس ډاکټرانو یا میډیکل سپیشلسټ ته لیږم. تبلیغي جماعت سره هم کله نا کله ځم. په دې سوچ کې یم چې هسې نه چې دنیوي ګټه وکړم او اخرت تباه کړم. لهذا داسې صاحبان جواب راکړئ چې ما ته شرعي لحاظ باندې د معاینه کېدو اجازه شته که نه؟ بینوا توجروا

**المستفتي** هارون میډیکل هال سرای نورنګ بنو ....... ۲ جما دی الاول ۱۴۰۴ھ

**الجواب:** چونکه ستاسې معاینې په دیانتداری باندې مبني دي. ان شاء الله ستاسو مؤاخذه به نه کیږي (۱) والله اعلم

## طبیب ته کله تجربه کار ویل کیږي؟

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې طبیب ته د طبابت لپاره شریعت کې د طب له پوهنتون یا د کوم حاذق حکیم نه تجربه حاصلولو لپاره له کتابو تجربه کول تر کوم حده پورې صحیح وي. دا تجربه یې صحیح ده که نه؟ بینوا توجروا

**المستفتي** طاهر میډیکوز سر ډهیری چارسده ...۲۹ شعبان ۱۴۰۲ھ

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: سئل في رجل به داء في ظهره اتفق مع طبيب على مداوته وجعل له أجرة ولم يضرب له مدة وداواه ويريد الطبيب أجرة مثله وما أنفقه في ثمن الأدوية فهل له ذلک؟ (الجواب) نعم! والمسئلة في الخيرية من الإجارة. (تنقيح الحامدية ۲:۱۵۱، كتاب الإجارة)

(ومثله في الخيرية على هامش تنقيح الحامدية ۲:۱۸۲ كتاب الإجارة)

**الجواب:** د دغو ټولو ذرائعو استعمالولو وروسته تجربه کار لقب ورکول درست او ښه دي وهوالموفق

## د علاج په توګه د افینو استعمال

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د علاج په توګه د افينو استعمال جائز دی که ناجائز؟ بينوا توجروا

**المستفتي** معين الدين قصور ...... ۱۹۷۰ هـ ۴ ۲۶

**الجواب:** کله چې د سکر نشې اله مقدار نه کم وي نو علاجاً استعمال يې روا دی او د سکر په اندازه يې استعمالول بې شرعي ضرورته ناروا دی شامي (١)

**وهوالموفق**

## د رضاعت په موده کې د حمل ختمولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د زيد د بچي عمر څلور مياشتې او ښځه يې دوباره د دوه مياشتو اميد واره ده. اوس زيد پريشانه دی چې که په دغه عمر کې ماشوم باندې شيدې بندې شي نو ډېر به وخوريږي. ايا د مذکوره مجبورۍ په صورت کې زيد اسقاط حمل کولای شي که نه؟ او دا

(١) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله وقال محمّد الخ) أقول الظاهر أن هذا خاص بالأشربة المائعة دون الجامد كالبنج والأفيون فلا يحرم قليلها بل كثيرها المسكر وبه صرح ابن حجر في التحفة وغيره، وهو مفهوم من كلام أئمّتنا لأنّهم عدّوها من الأدوية المباحة وإن حرّم السكر منها بالاتفاق ... ومن غاب عقله بالبنج والأفيون يقع طلاقه إذا استعمله للهو وادخال الآفات قصداً لكونه معصية وإن كان للتداوي فلا لعدمها كذا في فتح القدير وهو صريح في حرمة البنج والأفيون لا للدواء وفي البزازية: والتعليل ينادي بحرمته لا للدواء. (رد المحتار ٥:٣٢٤،٣٢٥، كتاب الأشربة)

کار حرام دی یا مکروه؟ بینوا توجروا

**المستفتي**: مولوي محمد دين موضع خاص تحصيل خوشاب ضلع سرگودها...... ۱۹۶۹ء/۱/۲۷

**الجواب**: كه يقين يا ظن غالب موجود وي مثلاً د حاملې شيدې ماشوم خرابوې او مرضعي وغيره انتظام نشي كيداى د نيستى له وجې نو اسقاط حمل جائز دى او كه دا ويره وه چې د دومره ماشومانو ضرورتونه به څوك پوره كوي؟ نو په دې ويره بې اسقاط حمل كول ناروا دى وفي ردالمحتار ۲: ۵۲۲: قال في النهر بقي هل يباح الاسقاط بعد الحمل؟ نعم! يباح مالم يتخلق منه شيء ولن يكون ذلك الا بعد مائة وعشرين يوماً، وهذا يقتضي أنهم أرادوا بالتخليق نفخ الروح، وفي كراهة الخانية، ولا أقول بالحل إذا المحرم لوكسر بيض الصيد ضمنه لأنه اصل الصيد، فلما كان يؤاخذ بالجزاء فلا اقل من أن يلحقها إثم هنا اذا أسقطت بغير عذر إنتهى. وقال ابن وهبان: ومن الإعذار ان ينقطع لبنها بعد ظهور الحمل، وليس لأبي الصبي ما يستأجر به الظئر الخ(). وهوالموفق

## د ژوندي يا مړه انسان د اندامونو پیوند کاري

**سوال**: څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې د چاسترګه ضائع شي او ډاكټر په دغه ځاى د بل چاسترګه يا د كوم ژوندي انسان اندام بل انسان ته ياد كوم ځناور

---

۱) (ردالمحتار ۲: ۴۱۲، كتاب النكاح، مطلب في حكم إسقاط الحمل)
وفي الهندية: امرأة مرضعة ظهربها حبل وانقطع لبنها وتخاف على ولدها الهلاك وليس لأبي هذاالولد سعة حتى يستأجر الظئر يباح لها أن تعالج في استنزال الدم مادام نطفة أو مضغة أو علقة لم يخلق له عضو وخلقه لا يستبين إلّا بعد مائة وعشرين يوماً. (فتاوى هندية ۵: ۳۵۶، كتاب الكراهية، الباب الثامن عشر في التداوي الخ)

اندام انسان ته ولګوي یا د کوم انسان وینه د ستنې په ذریعه بل ته ورکول شي. ایا دا جائز دي؟ بینوا توجروا

**المستفتي:** مولوي ګل شیر جمرود خیبر ایجنسي..... ۱۶۱۰/۱۹۷۵

**الجواب:** د بل ژوندي یا مړه انسان اندامونه پیوند کول ناروا دي. فقهاء کرامو دا ابتذال ممنوع ګرځولی،(۱) په دې به د مسکینانو او غریبانو د اندامونو خرڅولو بازار ګرم شي البته وینه عضو نه ده د ضرورت په وخت کې مبتذل کېدای شي (۲) وهو الموفق

## بل انسان ته انسان د (سترګې کسې) لګولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې زموږ ملګری چې حافظ او قاري دی. ډېر کم نظره دی. تکړه ډاکټر مشوره ورکړې چې ستا علاج کېدای شي هغه داسې چې د سترګې کسی (أنسان العين) بدل شي. اوس پوښتنه دا ده چې څنګه د انسان له جزء نه فایده اخیستل روا دي که نه؟ او د ښځې د وینې څه حکم دي. په نکاح باندې خو به اثر نه لوېږي؟ بینوا توجروا

**المستفتي** طور آیاز مانسهره..... ۲۶/ جمادي الثاني ۱۴۰۳هـ

---

۱) قال العلامة محمّد بن أحمد السرخسي رحمه الله تعالیٰ: والآدمي محترم بعد موته على ما كان عليه في حياته فكذا يحرم التداوي بشيء من الآدمي الحيّ إكرامًا له فكذلك لا يجوز التداوي بعظم الميت، قال ﷺ: كسر عظم الميت ككسر عظم الحيّ. (شرح كتاب السير الكبير ۲: ۱۲۸، باب دواء الجراحة)

۲) وفي شرح المجلة: الضرورات تبيح المحظورات ... يعني أن الممنوع شرعًا يباح عند الضرورة ... كأكل الميتة والدم ولحم الخنزير وشرب الخمر عند المجاعة أو الغصة أو العطش أو عند الإكراه التّام بقتل أو قطع عضو فهذه الأشياء تباح عند الاضطرار لقوله تعالیٰ (إِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ إِلَيْهِ). (شرح المجلة ۵۵:۱، المادة: ۲۱)

**الجواب:** ښځې ته د خاوند وينه ورکول يا بالعکس موجب حرمت نه دي خصوصاً چې کله هغه موده کې ورکړل شي چې شيدې هم موجب حرمت نه وي.(۱) او دا انسان د سرې عضوه ده لهذا بل انسان ته يې لګول به ناجائز وي، په دې کې د انسان توهين دی(۲)، مناسب دی چې د څناور انسان، اندام، ولګول شي. والله أعلم

## د ټسټ ټيوب بې بي (مصنوعي ماشوم) شرعي حيثيت

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې اوس څو ملکونو کې ټيسټ ټيوب بې بي پيدا شوی. دا پيدايش د مردانه سپرم (sperm) مصنوعي طريقې سره رحم ته داخلوي چې په نتيجه کې يې ماشوم پيدا کيږي. ددې څه حکم دی؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** وکيل احمد راجپوت چيئر مين ټاون کميټي ټنډوعيدن نواب شاه.... ۱۰/شعبان ۱۴۰۲ ھ

---

۱) قال العلّامة المفتي محمّد شفيع رحمه الله تعالى: د خاوند وينه د ښځې په بدن کې يا د ښځې وينه د خاوند په بدن کې داخلولو سره په نکاح باندې هيڅ اثر نه غورځوي، نکاح به خپل حال باقي وي، ځکه چې شريعت محرميت د نسب، مصاهرت، رضاعت سره مخصوص کړی دی، ددې نه تجاوز کول صحيح نه دی او رضاعت سره د محرميت ثبوت هم د رضاعت مودې سره خاص دی، د رضاعت موده يعنی يو نيم کال عمر نه پس پيو څکلو سره هم د رضاعت حرمت نه ثابتيږي.
کما هو مصرّح ومفصل في عامّة کتب الفقه. والله سبحانه وتعالى أعلم.
(انسانی اعضاء کی پيوند کاری ص ۲۸، شوهر، بيوی کے خون کا باهم تبادله)
۲) قال العلّامة محمّد بن أحمد السرخسي رحمه الله تعالى: والآدمي محترم بعد موته على ما کان عليه في حياته فکذا يحرم التداوي بشيء من الآدمي الحيّ إکراماً له.
(شرح کتاب السير الکبير ۱: ۱۲۸، باب دواء الجراحة)

**الجواب:** په دې مصنوعي طريقه کار باندې د انسان توالد او تناسل حرام دی.[۱] **إلا اذا كان المعالج زوجًا وكان المنى منيه**، ځکه چې دې معالجه کې له بې پردګۍ پرته د زنا دروازه هم خلاصيږي. ښځې په بد اخلاقۍ کې مبتلا کيږي او دا معالجه به سبب جوړه وي.[۲] **وهوالموفق**

## داولاد پيداکېدو کې سياسرو ته ستن لګول د اعتراض وړ دي

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې، نن سبا ښځو ته ستن لګول کيږي چې په ذريعه يې ماشوم پيدا کيږي. ددې څه حکم دی؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** وزير احمد وزيرستاني ۱۹۸۶ء ۷ ۱۷

**الجواب:** که په دې ستن کې څه مفسده هم نه وي نو زنا ته د لار جوړېدو له

---

۱) قال المفتي نظام الدين الأعظمي رحمه الله تعالى: *سوال:* "ټسټ ټيوب بې بي" صورت يې دا دی: د کومو ښځو ماشومان چې نه پيدا کيږي ښځينه ډاکټران يې د خاوند مني د پېچکاري په ذريعه د ښځې رحم ته داخلوي، بيا د همدې وجې ښځه حامله شي، ايا په دې طريقه ټيسټ ټيوب بې بي روا دی؟

*الجواب:* دا طريقه د طبيعت سليمه سره په ټکر کې ده، د شريعت او شارع عليه السلام د مزاج سره هم خلاف ده، د الحياء شعبة من الإيمان هم خلاف ده، ددې وجې دا طريقه خپلول بې همتي، د شرعي حدودو څخه تجاوز او بې شرمي ده، دبته په شريعت کې اضطرار نه ويل کيږي، ددې وجې شريعت ددې اجازه نه ور کوي.

(نظام الفتاوی ۳۳۷:۱ کتاب الحظر والاباحة، مرد کا مادہ منویہ لے کر بیوی کے رحم میں بذریعہ انجکشن پہنچانا)

۲) قال العلامة الدكتور وهبة الزحيلي: سدّ الذرائع أصل من أصول الشريعة الإسلامية... سدّ الذرائع لا يقتصر على مواضع الإشتباه والإحتيا ط وإنما يشمل كل مامن شأنه التوصل به إلى الحرام ... وضابط منع الذريعة أن تكون من شأنها الإفضاء إلى المفسدة لا محالة (قطعًا) أو كثيرا أو أن تكون مفسدة الفعل أرجح مماقد يترتب على الوسيلة من المصلحة. (الفقه الإسلامي وأدلّته ۷:۵۲۵۸، بشان سدّ الذرائع)

وجې د اعتراض وړ ده ښځه زنا کوي او ډاکټر ته فیس ورکوي بهانه جوړوي (۱) والله اعلم بالصواب

## له سټني د پیدا شوي ماشوم د ثبوت نسب مسئله

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې ځيني خلک اولاد پيدا کېدو لپاره خپلو مېرمنو ته انجکشن (پېچکاري) لګوي. ايا داسې کول روا دي؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** مولانا عبدالهادي کندف ضلع صوابي ...۱۹۸۸ ۱ ۱۹

**الجواب:** دا معالجه تفصيل غواړي. البته حمل د فراش والا ته ثابت النسب ګرځي (۲) **وهوالموفق**

## د بچي لپاره ځاروي ته ستن لګول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې نن سبا غواګانو ته ستن لګول کيږي

---

۱) قال الدكتور وهبة الزحيلي رحمه الله تعالى: سدّ الذرائع أصل من أصول الشريعة الإسلامية وحقيقته منع المباحات التى يتوصل بها إلى مفاسد أو محظورات (۲) سدّ الذرائع لا يقتصر على مواضع الاشتباه والاحتياط وإنما يشمل كل مامن شأنه التوصل به إلى الحرام ... وضابط منع الذريعة أن تكون من شأنها الإفضاء إلى المفسدة لا محالة قطعاً أو كثيرا أو أن تكون مفسدة الفعل أرجح مما قد يترتب على الوسيلة من المصلحة. (الفقه الإسلامى وأدلته ۷: ۵۲۵۸، قرار رقم ۹۵: ۹: ۹۶ بشأن "سدّ الذرائع")

۲) وقال العلامة الكاسانى رحمه الله تعالى: لكون الدخول أمراً باطناً فيقام النكاح مقامه في إثبات النسب ولهذا قال النبي ﷺ: الولد للفراش وللعاهر الحجر، وكذا لو تزوّج المشرقى بمغربية فجاء ت بولد يثبت النسب وإن لم يوجد الدخول حقيقة لوجود سببه وهو النكاح. (بدائع الصنائع ۲: ۶۴۶، كتاب النكاح، بيان حكم النكاح)

حمل ځای نیسي ایا دا سنتن خرڅول. لګول او د څاروي شیدې حلالي دي؟ بینوا توجروا

**المستفتي**: وزیر احمد وزیرستاني ...... ۱۹۸۶، ۷، ۱۷

**الجواب**: دا سنتن یوه معالجه ده او د نصوصو سره ټکر نه لري. (۱) لهذا په دې طریقه د تر لاسه شوي بچي حلت کې څه شبه نشته (۲) او نه شیدې وغیره کې څه شبه شته. (۳) او ددې سنتې خرڅول او اخیستل جائز دي لأن المنی انقلب ذاته الی الدواء المخصوصة، ولأ نه لا عورة للحیوان، لأنّ الولد یتبع الأم، فافهم. **وهو الموفق**

## د خانداني منصوبه بندی له ملازمت نه خوړلو او ښلو حکم

**سوال**: څه فرمایي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې دخانداني منصوبه بندی افسران چې کومه تنخوا اخلي حرامه ده یا مکروه ده او که حلاله؟ دا هم چې طالبانو مسکینانو ته د هغو خلکو چاې وغیره خوړل څنګه دي دا ډول د بینک د ملازمانو چاې وغیره طعام خوړل مسکینانو ته څه حکم لري؟ **بینوا توجروا**

المستفتي: بهادر زمان مدرسه معهد القرآن مانسهره ...... ۱۴۰۱ هـ / ۵ / ۲۴

**الجواب**: په دغه موده کې چې کوم ملازمان د شرع خلاف اقداماتو نه مامون

---

۱) وفي مجمع الأنهر: واعلم أنّ الأصل في الأشياء كلّها سوى الفروج الإباحة ...إنّما تثبت الحرمة بعارض نص مطلق أو خبر مروی، فما لم یوجد شيء من الدلائل المحرمة فهي على الإباحة. (مجمع الأنهر ۲: ۵۶۸، کتاب الأشربة)

۲) قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: الاعتبار للأم في الأضحیة والحل ...والحاصل أن المفهوم مما مرّ أن الولد تبع لأمه مطلقًا.
(رد المحتار ۳: ۱۳، کتاب العتق، قبیل مطلب أهل الحرب کلّهم أرقاء)

۳) وقال العلّامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: وفي الخانیة وغیرها، لبن المأکول حلال.
(رد المحتار ۵: ۳۲۴، کتاب الأشربة)

وي يا مامون کېدل غواړي د هغوی تنخوا حرامه نه ده، (۱) واضحه دې وي چې د مسکینانو طالبانو لپاره د ملازمانو یا د بېنک له ملازمانو تر لاسه شوي خوراک او څښاک روا ده. (۲) وهو الموفق

## بېر بهوټي او تېل ساهنه استعمال او د خرڅولو او اخيستلو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې بهر بهوټي (د سور رنګ چينجي د پښه کال موسم کې له ځمکې راوځي د هغه تېل اکثر دواګانو کې استعماليږي، وژل او استعمالول يې روا دي که ناروا؟

(۲) ايا د ساهنه تېل (د مرګ غوندې لږ غټ ځناور ده. له وازدو څخه يې تېل جوړيږي، استعمال يې روا دی؟ دا هم چې د دغو شيانو خرڅول او اخيستل څه حکم لري؟ بينوا اتو جروا

المستفتي معين الدين قصور ... ۱۹۷۰،۴،۲۶

**الجواب:** د دغو خوړل حرام دي خو په زخم يې استعمالول روا دي. ځکه چې فقهاء کرامو

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: كل أنواع الكسب في الإباحة سواء أنها بعد إن لم تكن بطريق محظور لا يذم بعضها وإن كان بعضها أفضل من بعض.
(ردالمحتار ۵:۳۲۸، كتاب الصيد)

۲) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (ويردونها على أربابها إن عرفوهم، وإلّا تصدّقوا بها، لأنّ سبيل الكسب الخبيث التصدّق إذا تعذر الردّ على صاحبه ...سئل أبوجعفر عمن اكتسب ماله من أمر السلطان والغرامات المحرمة، وغير ذلک هل يحل لمن عرف ذلک أن يأكل من طعامه؟ قال: أحبّ إليّ في دينه أن لا يأكل ويسعه حكمًا إن لم يكن غصبًا أو رشوة.
(رد المحتار ۵: ۲۷۳ كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

د حشرات الأرض صرف خوړل ممنوع کړي (هندية ۵: ۳۲۱)[۱] او له تحقيق سره سم د داسې دوايي بيعه جائز ده. يدلّ عليه ما في الهندية (۵: ۲۹۱)[۲] ځکه چې په دې کې نفع موجود ده، ويدلّ عليه ما في شروح الهداية ايضاً في باب مايكره من البيوع (۳)، وما في الشامي (۴: ۲۱۵)[۴]، **وهوالموفق.**

## د ښځې په زخم باندې د خاوند غوښه لګول يا وينه ورکول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې شرع متين دې باره کې چې (۱)، د يوسړي ښځه مريضه وه، د ډاکټر په مشوره يې ښځې ته د وه بوتله وينه ورکړه آيا دا کار حرام دی که نه؟

---

۱) وفي الهندية: وكذلک ماليس له دم سائل مثل الحية والوزغ ...وجميع حشرات الأرض ... ولا خلاف في حرمة هذه الأشياء.

(فتاوى هندية ۵:۲۸۹، كتاب الذبائح، الباب الثاني في بيان ما يؤكل من الحيوان)

۲) وفي الهندية :(أكل الترياق يكره إذا كان فيه شيء من الحيات وإن باع ذلک جاز. (فتاوى هندية ۵:۲۵۵ كتاب الكراهية، الباب الثامن عشر في التداوي والمعالجات)

۳) قال العلامة ابن الهمام رحمه الله تعالى :( قوله ولا بيع جلود الميتة قبل أن تدبغ لأنه غير منتفع بها) ... بخلاف الثوب النجس والدهن النجس فإن النّجاسة فيه عارضة فلا يتغير به حكم الثوب بما فيه ... فانّ بطلان البيع دائر مع حرمة الانتفاع وهي عدم المالية.

(فتح القدير ۶۲-۶۳:۶، باب البيع الفاسد)

۴) وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ويجوز بيع دهن نجس أى متنجس وينتفع به للاستصباح في غير مسجد. (در مختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى :(قوله وينتفع به للاستصباح) لأنّ الانتفاع به علّة جواز البيع. (شامي ۴:۲۳۹، مطلب في التداوي بالمحرّم)

خلک د حرامو نعرې وهي

(۲)، د يوې ښځې بدن باندې دبر زخم وې. نو مېره يې د ېښې د خپل ورانه غوښه برې کړې. په زخم يې ورته لګولې. هغه زخم روغ جوړ شوی: نو ددې څه حکم دی؟ بينوا توجروا

المستفتي مولانا اشراف الدين ... ۱۹۷۹ء ۶، ۴

**الجواب:** د انسان له بر خو څخه اخيستل اګر که بې ضرورته حرام دي، (۱) خو د نکاح حرمت صرف د ښځې په شيدو سره راځي چې شيدې ځښونکی له دوه نيمو کالو نه نه وي اوښتی، (۲) نو دې دوارو صورتونو کې حرامبدل منقول دي. لعدم التغذي او نه معقول دي. بلکې په دې اصل ايات (وَأُحِلَّ لَكُمْ مَا وَرَاءَ ذَٰلِكُمْ) په بنا باندې مردود دی. وصرح بعدم الحرمة. مولانا مفتي محمد شفيع رحمه الله (۳)، وهو الموفق

---

۱) وفي المحيط البرهاني: الاستشفاء بالمحرّم إنّما لا يجوز إذالم يعلم أنّ فيه شفاء، أمّا إذا علم أنّ فيه شفاء وليس له دواء اخر غيره فيجوز الاستشفاء به. (المحيط البرهاني ۶:۱۱۶ كتاب الاستحسان، الفصل التاسع عشر في التداوي والمعالجات)

۲) وفي الهندية: قليل الرضاع وكثيره إذا حصل في مدة الرضاع تعلق به التحريم ... وإذامضت مدة الرضاع لم يتعلق بالرضاع تحريم. (فتاوى هندية ۱:۳۴۲ كتاب الرضاع)

۳) قال العلامة مفتي محمّد شفيع رحمه الله تعالى: د خاوند وينه د ښځې په بدن کې يا د ښځې وينه د خاوند په بدن کې داخلولو سره په نکاح باندې هيڅ اثر نه غورځوي، نکاح په خپل حال باقي وي، ځکه چې اسلامي شريعت محرميت د نسب، مصاهرت، رضاعت سره مخصوص کړی دی، ددې نه تجاوز کول صحيح نه دی او رضاعت سره د محرميت ثبوت هم د رضاعت مودې سره خاص دی، د رضاعت موده يعني دوه نيم کال عمر نه پس شيدو ځښلو سره هم د رضاعت حرمت نه ثابتيږي، كما هو مصرح ومفصل في عامّة كتب الفقه. والله سبحانه وتعالى أعلم. (انسانی اعضاء کی پیوند کاری ص ۲۸ شوهر، بیوی کے خون کا باهم تبادله)

## د خـــري د شيدو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې ماشومانو ته د يو خاص مرض دعلاج لپاره د خرې پې ورکول کيږي. ايا دا روادي؟ بينوا توجروا

المستفي مولانا عبد الهادي مقام کندف صوابی ... ۱۹۸۸ ۱،۱۹

**الجواب:** که له تجربې نه د شيدو تاثير ثابت وي، نو د اعتراض قابل نه دي او که نه نو مکروه دي (۱) **وهوالموفق**

## د پوسټ مارټم (مرګ نه پس معاينې) شرعي حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د مقتول پوسټ مارټم شرعاً څه حکم لري؟ بينوا اتوجروا

المستفي مولوي اسرائيل تاروجبه نوشهره ... ۲۳ شعبان ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** پوسټ مارټم حرام دی. د انګريزانو سنت سيئه دی. په دې کې مړي ته بې پردګي او له ايذاء، نه بل هيڅ مصلحت نشته. صرف د توهم له وجې نه دا اقدام ناروا اقدام دی. (۲) **وهوالموفق**

---

۱) وفي الهندية :وتكره ألبان الأتان للمريض وغيره وكذلك لحومها وكذلك التداوي بكل حرام ... يجوز للعليل شرب الدم والبول وأكل الميتة للتداوي إذا أخبره طبيب مسلم أنّ شفاءه فيه ولم يجد من المباح ما يقوم مقامه وإن قال الطبيب يتعجل شفائك فيه وجهان. (فتاوى هند ية ۵:۳۵۵،كتاب الكراهية، الباب الثامن عشر في التداوي والمعالجات) (ومثله في الدر المختار ۵ : ۲۳۹،كتاب الحظر والإباحة)

۲) قال العلامة محمّد بن أحمد السرخسي رحمه الله تعالیٰ : والآدمي محترم بعد موته على ما كان عليه في حياته ... قال النبي ﷺ كسر عظم الميت ككسر عظم الحي. (شرح السير الكبير ۱ : ۱۲۸، باب دواء الجراهة)...(پاتې حاشيه په بل مخ)

## پوست مارتم باندې پابندي حکومتي ذمه واري ده

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د صوبائي اسمبلي حکومت په زورغوښتنه کوي چې پوسټ مارټم کې انساني سپکاوی کيږي او شرعاً دا نا روا هم ده. لهذا په دې پابندي لګول پکاري دي. د قانون د ضرورتونو پوره کولو لپاره دې د قانون ماهران متبادل لاره پيدا کړي. ددې قرارداد څه حکم دی؟ بينوا توجروا

المستفي: سيد سردار عالم باچا صاحب ممبر صوبائي اسمبلي

صوبه سرحد ...... ۱۹۸۵ء/۱۱/۱۸

**الجواب:** دا قرارداد واجب العمل دی، هره اسمبلۍ باندې ضروري ده چې دا منظور کړي او د مغربيت دغه لعنت ختم کړي (۱) **وهوالموفق**

## د پرائيوټ کمپاونډري حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې نن سبا د پرائيويټ

(د حاشيې باتې برخه) وفي المرقاة، (عن عائشة رضي الله تعالى عنها أن رسول الله ﷺ قال: كسر عظم الميت ككسره حيا)، يعنى في الإثم كما في رواية، قال الطيبي إشارة إلى أنه لايهان ميتا كما لايهان حيا، قال ابن الملك وإلى أن الميت يتألم ... وقد أخرج ابن أبي شيبة عن ابن مسعود رضي الله تعالى عنه قال: أذى المؤمن في موته كأذاه في حياته.

(مرقاة المفاتيح ۴:۷۹، كتاب الجنائز، باب دفن الميت)

(۱) قال الدكتور وهبة الزحيلي رحمه الله تعالى: حدد الفقهاء واجبات الإمام أو وظائفه بعشرة أمور أساسية ...أولا: حفظ الدين أى المحافظة على أحكامه وحماية حدوده وعقاب مخالفيه، قال الماوردي حفظ الدين على أصوله المستقرة وما أجمع عليه سلف الأمة. (الفقه الإسلامي وأدلته ۸: ۶۱۸۵، المبحث الخامس، وظائف الإمام)

کمپاونډري څه حکم دی؟ بينوا اتوجروا

المستفتي طاهر میډیکوز سره ډهیری چارسده ...... ۲۹/ شعبان ۱۴۰۲ ھ

**الجواب:** اهل فن چې دا کومه درجه کې شمېري نو هغه شرعاً منظوره ده (۱).

**وهوالموفق**

## مسلمان ته د کافر د زړه حصه لګول او جنت ته د تللو مسئله

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې که د يو مسلمان زړه خراب شي او بيا اپريشن وکړي او د هغه مسلمان زړه کې د کافر د زړه يوه ټوټه ولګول شي او د ژوندون هيله هم پيدا شي د قيامت په ورځ به جنت ته ځي که نه؟ حال دا چې هغه کافر د کفر په حالت کې مردار شوی؟ بينوا توجروا

المستفتي مولانا عطاء الله واحدي افغاني شريک دوره حديث

۲۱ شعبان ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** دغه پيوندکارۍ کې د جواز اوعدم جواز قطع نظر د قواعدو له مخې د پوښتل شوي مسئلې حکم دا دی چې مسلمان ته به هلته د زړه بله برخه ورکول کيږي. لکه څنګه چې نورو ناقص الأبدان مسلمانانو ته به پوره بدن ورکول کيږي (۲) **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالیٰ: سئل في رجل به داء في ظهره اتفق مع طبيب على مداواته وجعل له أجرة ولم يضرب له مدة وداواه ويريد الطبيب أجرة مثله وما أنفقه في ثمن الأدوية فهل له ذلک؟

(الجواب) نعم! والمسئلة في الخيرية من الإجارة.

(تنقيح الحامدية ۲: ۱۵۱، كتاب الإجارة)

(ومثله في الخيرية على هامش تنقيح الحامدية ۲: ۱۸۲، كتاب الإجارة)

۲) وفي المرقاة: لاخلاف أن أهل الجنة كلّهم كاملون في الخلق والخلق جميعا ... أن رسول الله ﷺ قال: ينادى مناد أى في الجنة أن لكم أن تصحوا أى تكونوا صحيحى البدن دائمًا فلا تسقموا أى فلاتمرضوا. (مرقاة المفاتيح ۱۰: ۳۲۴، باب صفة الجنّة وأهلها)

## په شرابو علاج کول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې بنده له پنځلس کالو راهيسې ناروغ دی اوس مې دوه ويشت کاله عمر دی. ډاکټر علاج بالمحرم يعنې د شرابو استعمالولو وايي. ايا زما لپاره دا روا دي؟ **بينواتوجروا**

**المستفتی** عماد الدين کټی خېل .... ۲۴ / ذی الحجه ۱۹۷۴ء

**الجواب:** که تجربه کار مسلمان ډاکټر رايه ورکړه چې دا مريض بې له حرامې دوايي نه په بله طريقه نه جوړيږي. يا دغه مريض نوره دوايي هم لري. خو هغه د پروخت نيسي نو دې صورت کې علاج بالمحرم کې مواخذه نشته.[۱] **وهوالموفق**

## چا ته د سترګې وصيت کول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې يو سړی د مرينې په وخت کې دا وصيت وکړي چې زما ساه ووځي نو سترګه مې وباسئ بل محتاج ته يې ولګوئ ترڅو چا ته فايده ورسيږي. ايا دا روا ده که ناروا؟ **بينوا توجروا**

**المستفتی**: مسيح الله .... مئ ۱۹۸۳ء

**الجواب**: داسې وصيت کول او دا پوره کول حرام او ناروا دي. يدلّ عليه ما

---

۱) وفي الهندية: يجوز للعليل شرب الدم والبول وأكل الميتة للتداوي إذا أخبره طبيب مسلم أن شفاءه فيه ولم يجد من المباح ما يقوم مقامه، وإن قال الطبيب يتعجل شفاءک فيه وجهان، هل يجوز شرب القليل من الخمر للتداوي إذا لم يجد شيئا يقوم مقامه فيه وجهان.

(فتاوی هندية ۵:۲۵۵، كتاب الكراهية، الباب الثامن عشر في التداوي الخ)

فی فتاوی قاضی خان: مضطر لم یجد میتة وخاف الهلاك فقال له رجل اقطع یدی وکلها لایسعه ان یفعل ذلك ولا یصح امره به کما لا یسع للمضطر ان یقطع قطعة من لحم نفسه فیأکل (١) انتهی، وجه الدلالة انه لما لم یجز الأکل والحال ان دفع الجوع به متیقن لکان التداوی به أولیٰ بعدم الجواز لکون الشفاء به مظنوناً. **وهوالموفق**

## د ضرورت په وخت د څلورو میاشتو مخکې اسقاط حمل روا دی

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې ايا اسقاط حمل حرام دی يا په کوم وخت کله روا دی؟ بينوا توجروا

**المستفتی:** جلال الدین غازی ضلع ایبټ آباد...... ١٩ جولائی ١٩٧٩ء

**الجواب:** څلور مياشتې پوره کېدو نه مخکې اسقاط حمل عند العذر روا دی. کمافي رد المحتار ۶/ ۴۲۹ قبيل کتاب إحياء الموات (٢). **وهوالموفق**

---

١) (فتاوی خانية على هامش الهندية ۴۰۴:٣ كتاب الحظر والإباحة)

وفي الهندية: الانتفاع بأجزاء الآدمي لم يجز قيل للنجاسة وقيل للكرامة وهو الصحيح كذا في جواهر الأخلاطي.

(فتاوى هندية ٥:٣٥۴، كتاب الكراهية، الباب الثامن عشر في التداوي الخ)

٢) وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: قالوا يباح لها أن تعالج في استنزال الدم ما دام الحمل مضغة أو علقة ولم يخلق له عضو وقدروا تلك المدة بمائة وعشرين يوماً وجاز لأنه ليس بآدمي وفيه صيانة الآدمي (خانية).

(رد المحتار ٥: ٣٠٥، كتاب الحظر والإباحة، قبيل كتاب إحياء الموات)

وفي البحر: امرأة عالجت في إسقاط ولدها لا تأثم مالم يستبن شيء من خلقه.

(البحر الرائق ٨:٢٠٥، كتاب الكراهية، فصل في البيع وخصي البهائم)

## له زنا څخه د حاملې ښځې حمل غورځول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې يوه ښځه له زنا څخه حامله شي ډاکټر ته دوايي ليپاره لاړه شي ترڅو اسقاط حمل وکړي دا جائز دی که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي حافظ عبد الوارث دی آئی خان ۱۴۰۱ھ ۵/ ۱۷

**الجواب:** له څلورو مياشتو د کم حمل اسقاط جائز دی. خصوصاً کله چې د فتنې خطره وي.

کما فی ردالمحتار۵: ۳۷۹ قالوا يباح لها ان تعالج فی استنزال الدم مادام الحمل مضغة او علقة ولم يخلق له عضو وقدروا تلك المدة بمائة وعشرين يوما وجاز لأنه ليس بآدمي وفيه صيانة الآدمي. (خانية)( ) وهوالموفق.

## د دوباره حمل مضر کېدو په صورت کې د اسقاط حمل حکم

**سوال:** څه وايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د اپريشن په ذريعه د يوې ښځې له خېټې ماشوم وباسي ډاکټران هم ورته ووايي چې که دوباره حمل وشو د مرينې لامل به جوړيږي. په دې صورت کې که خاوند د دوايانو په ذريعه اسقاط حمل وکړي نو شريعت کې يې حکم څه دی؟ بينوا توجروا

**المستفتي** مولوي رسول سيد مدرس أتمانزي چارسده. ۶/ شعبان ۱۳۹۵ھ

---

۱) (رد المحتار ۵:۳۰۵ کتاب الحظر والإباحة، قبيل کتاب إحياء الموات)

وفي الهندية: يباح لها أن تعالج في استنزال الدم ما دام نطفة أومضغة أوعلقة لم يخلق له عضو وخلقه لا يستبين إلّا بعد مائة وعشرين يومًا أربعون نطفة وأربعون علقة وأربعون مضغة كذا في خزانة المفتين. (فتاوى هندية ۵:۳۵۶، کتاب الکراهية، الباب الثامن عشر في التداوي والمعالجات وفيه العزل وإسقاط الولد)

**الجواب:** په داسې جزئي مقاماتو کې څه تدبير کول چې حمل پاتې نه شي روا دی. لأنه کالعزل في الامتناع عن الحمل () ولأنه لما جاز الإسقاط عند الضرورة () فالامتناع يكون أولى بالجواز. وهوالموفق (۲)

**دانساني اندامونو پيوند کاري اوپکې دتجربې کولو اړوند بېلا بېلې پوښتنې**

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې مکتبونو کې انساني ډانچې د هائجين فريالوجي مضمون کې دي. له ياد شوي مضمون څخه طلبه د طبي کارونو لپاره استفاده کوي. له دې پرته خيبر ميډيکل کالج. پښاور يونيورستي کې تازه انساني مړي د طبي څېړنې لپاره يو خاص تالاب کې هر وخت پراته وي. لهذا له تاسو نه مؤدبانه غوښتنه ده. چې دې مسئلې باره کې د اسلام چې يو لوی مذهب دی څه حکم ورکوي؟ (۱) ايا دا د انساني مړي بې حرمتي نه ده؟

(۲) ايا دا انسان (مړی) په خپله په دې ګناه (په دې شرط چې ګناه وي) مرتکب کيږي. موجوده خلک

---

۱) قال العلامة ظفر أحمد العثماني رحمه الله تعالىٰ: عن جابر رضي الله تعالىٰ عنه قال كنا نعزل على عهد رسول الله ﷺ والقرآن ينزل. متفق عليه.

أقول: دلت الأحاديث على أن العزل جائز ... أخذ في النهر من هذا ومما قدمه الشارح عن الخانية والكمال أنه يجوز للمرأة سدّ فم رحمها كما تفعله النساء ... نعم! النظر إلىٰ فساد الزمان يفيد الجواز من الجانبين. (إعلاء السنن ۱۷:۳۹۸-۴۰۹، كتاب الحظر والإباحة، باب جواز العزل، حكم احتيال المرأة لقطع الحمل)

۲) وفي الهندية: العلاج لإسقاط الولد إذا استبان خلقه كالشعر والظفر ونحوهما لا يجوز وإن كان غير مستبين الخلق يجوز.

(فتاوى هندية ۵:۳۵۶، كتاب الكراهية، الباب الثامن عشر في التداوي والمعالجات)

دا په استعمال کې راوړې شي؟

(۳) ایا د اسلام له نظره دا روا دي؟

(۴) که دا نیک کار وي چې د بنیادمو په مفاد کې راشي نو جزاء به د چا په حق کې وي؟

(۵) ایا کوم انسان له مړ کیدو مخکې خپلې سترګې یا د بدن کوم اندام وروسته له وفاته چا ته ورکولی شي؟ بینوا توجروا

**المستفتي** بختیار ګل ملنګ بکر مردان ... ۱۹۶۹ء/۱۰/۹

**الجواب:** (۱) «څه چې ځانته نه خوښوې. بل ته یې هم مه خوښه» دا خپله ګرځلاره ګرځول د مسلم شان دی او دا رویه په حدیثونو کې هم تائید شوی. قال رسول الله ﷺ کل المسلم علی المسلم حرام دمه وماله وعرضه (رواه مسلم)(۱) وقال علیه الصلوة والسلام وأن تحب للناس ما تحب لنفسك (رواه أحمد)(۲) وقال رسول الله ﷺ کسر عظم المیت ککسره حیاً (رواه مالك)(۳) وقال الطیبی اشارة إلی انه لا یهان المیت، وقال عبدالله بن مسعود رضي الله عنه أذی المؤمن فی موته کأذاه فی حیاته (رواه ابن أبي شیبه)(۴) دا رنګه خلفاً او سلفاً اسلام کې دا معمول راروان دی. چې مړي دي له غسل نه بعد کفن و دفن کړل شي لهذا تالاب کې یې ساتل خلاف تعامل او خلاف اجماع ده (۵)

---

۱) (صحیح المسلم ۲:۳۱۷ باب تحریم ظلم المسلم وخذله وإحتقاره ودمه وعرضه)

۲) (مشکوة المصابیح ۴۴۰ کتاب الرقاق)

۳) (موطا الإمام مالک ۲۲۰ کتاب الجنائز، باب ما جاء في الإختفاء وهو النبش)

۴) (مرقاة المفاتیح ۴:۷۹ باب دفن المیت)

۵) قال العلامة وهبة الزحیلي رحمه الله تعالی: تکفین المیت فرض کفایة....

(د حاشیې پاتې برخه په بل مخ....

(۲) که په ژوندیني دغه سړي خپل ځان بې عوضه یا په عوض دې محکمې ته حواله کړی وي او اجازه یې ورکړې وي؛ نو دواړه مجرمان دي که نه استعمالونکی یې مجرم دی. لأن البیع والهبة یجریان في المال والحر والمیتة لیستا بمالین. (۱)

(۳) دا کار هیڅکله نیکي نشي جوړېدای (لما مرّ) دایې ضرورت نه هم دی. ځکه چې له ربړ او پلاستیک وغیره نه مصنوعي اندامونه مقصود کېدای شي چې بېل بېل اندامونه وسائل شي. دانسان له شکل نه ځان ساتل پکار دي. په دې کې غریبو انسانانو ته لویې خطرې دي.

(۴) د بنیادمو د سیکاوی په صورت کې دا مفاد له اسلام نه معتدبه نه دی او په معالجوي مهارتونو کې یې له دې نه هم متحقق دي او مرګ نه خلاصېدل او خلاصول د اجازت په صورت کې هم غیرمتحقق دی. (۲)

(۵) دا په امانت کې خیانت دی ځکه چې انسان ددې د خرڅولو او هبه کولو مجاز نه دی. (۳) وهو الموفق

(دتېرمخ پاتې حاشیه) علی جماعة المسلمین ...أجمع الفقهاء علی أن دفن المیت فرض علی الکفایة لأنّ في ترکه علی وجه الأرض هتكًا لحرمته ویتأذّی النّاس من رائحته. (الفقه الإسلامي وأدلته ۲: ۱۴۹۸، ۱۵۴۷، تکفین المیت، دفن المیت)

۱) قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ: وشرط المعقود علیه ستة کونه موجوداً مالًا متقوماً ... فلم ینعقد بیع المعدوم ... ولا بیع الحر ... والمیتة. (رد المحتار ۴: ۶، کتاب البیوع، مطلب شرائط البیع)

۲) وفي الخانیة: قاضی خان: مضطر لم یجد میتة وخاف الهلاک فقال له رجل اقطع یدی وکلها لا یسعه أن یفعل ذلک ولا یصح أمره به کما لایسع للمضطر أن یقطع قطعة من لحم نفسه فیأکل (فتاوی خانیة علی هامش الهندیة ۴۰۴:۲ کتاب الحظر والإباحة)

۳) قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ: والآدمي مکرم شرعًا وإن کان کافرًا فإیراد العقد علیه وابتذاله به وإلحاقه بالجمادات إذلال له، اه أی وهو غیر جائز، وبعضه في حکمه، وصرح في فتح القدیر ببطلانه. (رد المحتار ۴: ۱۱۷، کتاب البیوع، باب البیع الفاسد، مطلب الآدمي مکرم شرعًا ولو کافرًا)

## د ضرورت وخت کې په حرام شي باندې علاج

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې په حرام شي شراب و غيره سره د مريض علاج کول ناروا دي که نه؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** مولوي فخرالدين غورغوشتوي

**الجواب:** علاج بالمحرم عند الضرورة روا دی. بې ضرورته روا نه دی (۱) **وهوالموفق**

## په جند بيد ستر باندې د علاج کولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې جند بيد ستر (لدهر کې خصيې) چې بوه دوايي ده. د علاج په توګه استعمالول څنګه دي بينوا توجروا

**المستفتي:** معين الدين قصور... ۱۹۷۰،۴،۲۶

**الجواب:** چونکې دا نجس او مکروه دي. لهذا بې شرعي ضرورته ددې له استعمال نه اجتناب پکار دی (۲) **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى :( قوله وجوزه في النهاية) ونصه في التهذيب يجوز للعليل شرب البول والدم والميتة للتداوي إذا أخبره طبيب مسلم أن شفاءه فيه ولم يجد من المباح ما يقوم مقامه، وإن قال الطبيب يتعجل شفائک به، فيه وجهان.

(رد المحتار ۵:۲۷۵ كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

۲) وفي المحيط البرهاني : الإستشفاء بالمحرم إنّما لايجوز إذالم يعلم أنّ فيه شفاء، أما إذا علم أنّ فيه شفاء وليس له دواء اخر غيره فيجوز الإستشفاء به.( المحيط البرهاني ۶:۱۱۶، كتاب الاستحسان، الفصل التاسع عشر في التداوي والمعالجات)

## پردی ښځې ته د ويني ورکولو وروسته د نکاح حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د سړي او ښځې نکاح نه وي شوې. که دوی خپلو کې يو بل ته د ضرورت په اندازه وينه ورکړي نو د دواړه نکاح خپلو کې کيږي که نه؟

(۲) يو ازاد سړي له چا واده شوې ښځې ته وينه ورکول څنګه دي؟ او اوس د واده شوې حصه کې د هغه څه حصه کيږي يا نه؟ بينوا توجروا

**المستفتي** قاضي عبداللطيف سوات ۱۹۸۶ء ۲۲۶

**الجواب:** کوم مريض ته وينه ورکول علاج بالمحرم ده کوم چې د ضرورت په وخت روا ده. (۱) له ضرورت نه مراد دا ده چې بې له وينې ورکولو کې د زندګی اميد نه و او يا د مرض اوږديدو غالب ګمان وي او په وينه حرمت راتلل د هيڅ مذهب هم نه دی دا حرمت صرف د شيدو پيدا کيږي. چې د څښونکي عمر له دوه نيم کالو نه وي. (۲) شيدې ورکول او وينه ورکولو کې د غذائيت ښکاره فرق دی (۳) **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: (قوله وجوّزه في النهاية بمحرم) ونصه في التهذيب، يجوز للعليل شرب البول والدم والميتة للتداوي اذا أخبره طبيب مسلم أنّ شفاء ه فيه ولم يجد من المباح ما يقوم مقامه. (ردالمحتار ۵: ۲۷۵ كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

۲) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالىٰ : ويثبت التحريم في المدة فقط ولو بعد الفطام. (الدر المختار ۲:۳۸۲، باب الرضاع)

۳) عن عائشة رضي الله تعالىٰ عنها أن النبي ﷺ دخل عليها وعندها رجل فكأنّه تغير وجهه كانه كره ذلک، فقالت إنّه أخي فقال انظرن من إخوانكنّ فإنّما الرضاعة من المجاعة. (صحيح البخاري ۲:۸۶۴، باب من قال لارضاع بعد حولين)

## ښځې ته وينه ورکولو باندې رضاعت نه ثابتيږي

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې ښځه بيمار خاوند ته وينه ورکولای شي که نه؟ بينوا توجروا

**المستفتي** مولوي حکيم عبدالقيوم پښاور.... ۱۲/ذي الحجه ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** د ضرورت وخت کې په وينه علاج کول روا دي،[۱] او ښځه خاوند ته وينه ورکولای شي، رضاعت تر خاص وخت پورې محدود دی.[۲] **وهوالموفق**

## د ضرورت وخت کې وينه ورکول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې له يو انسان نه بل زخمي ته وينه ويستل او ورکول شرعاً روا که نا روا دي؟ بينوا توجروا

**المستفتي** مسيح الله.... ۱۸/مې ۱۹۸۳ء

---

۱) وفي الهندية: يجوز للعليل شرب الدم والبول وأكل الميتة للتداوي إذا أخبره طبيب مسلم أن شفاء ه فيه ولم يجد من المباح ما يقوم مقامه.
(فتاوى هندية ٥:٢٥٥، كتاب الكراهية، الباب الثامن عشر في التداوي الخ)

۲) قال العلامة المرغيناني رحمه الله تعالى: قليل الرضاع وكثيره سواء إذا حصل في مدة الرضاع يتعلق به التحريم ... ثم مدة الرضاع ثلثون شهراً عند أبي حنيفة رحمه الله تعالى، وقالا سنتان ... وإذا مضت مدة الرضاع لم يتعلق بالرضاع تحريم، لقوله عليه الصلوة والسّلام: "لارضاع بعد الفصال".
(الهداية ٢: ٣٥٠، كتاب الرضاع)

**الجواب:** د ضرورت په وخت وینه ورکول جائز دي. (۱) لانه لايقال له العضو والجزء عرفاً فيكون كاللبن والمنى وللعاب ونظيره جواز كتابة القران بالدم عند الضرورة كما في الحاوى القدسى. (۲) وهوالموفق

## د خنزير له وازدې جوړ شوي كېپسول

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې كيپسولو كې يو شى «جلاتين» (۳) وي چې د خنزير وازده پكې ګډه وي. ايا دا د كيپسولو په شكل كې روا كيږي؟ بينوا توجروا

**المستفتي** نظام الدين متعلم حقانيه... ۱۹۸۶ء/۲/۱۰

**الجواب:** كه د كوم بيمار علاج بې له دې كېپسولو نه كېداى نشو يا بطبي

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: يجوز للعليل شرب البول والدم والميتة للتداوي إذا أخبره طبيب مسلم أنّ شفاءه فيه ولم يجد من المباح ما يقوم مقامه.

(ردالمحتار ۵: ۲۷۵، كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

۲) في الحاوي القدسي: وان سال الدم من أنف انسان، ولم ينقطع حتى خشي على موته، وقد علم بالتجربة أنه لو كتب فاتحة الكتاب والاخلاص بذلک الدم على جبهته، نقطع، لا يرخص له. وقيل يرخص كما رخص في شرب الخمر للعطشان، أكل الميتة في المخمصة، وهو الفتوى.

(الحاوى القدسى ۳۲۰، كتب الاستحسان في الحظر والاباحة، باب في أنواع متفرقة)

(ومثله في الفتاوى الهندية ۵:۳۵۶، كتاب الكراهية، الباب الثامن عشر في التداوي الخ)

۳) جِلاټين يوه داسې غوړه ماده ده چې د حيواناتو د هډوكو او وازدو څخه ويستل كيږي. (فيروز اللغات ص ۴۶۷)

الناثير وي. نو د دغه كيپسول استعمال جائز ده که نه؟ (و أصله العلاج بالمحرم)[۱] وهوالموفق

## دم مسفوح باندې علاج كول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د خرګوش، سوی وينه چې د حلالې وخت کې وبهيږي، دم مسفوح، رانجو کې ګډول سترګو کې لګول جائز دي که نا جائز؟ د بهېدلې وينې استعمال کوم حال کې روا دی؟ مثلاً کوم ډاکټر يو مريض ته وايي چې فلانی دم مسفوح کې دوا ګډوي او د صحت هيله کېدای شي او که نه لا علاجه دی؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** اعجاز علی جامعة رشيديه ميانولی........ ۱۹۷۶ء.۹/۹

**الجواب:** دا صورت د علاج بالمحرم ده په دې کې د علاج بالمحرم شرائطو کې رعايت ضروري ده. چې کله له دې محرم نه علاوه نوره دوايي نه پيدا کيږي خو زر اثر نه کوي. فليرجع الى ردالمحتار.[۲] وهوالموفق.

---

۱) قال العلامة ابن عابدين: (قوله وجوزه في النهاية) ونصه في التهذيب: يجوز للعليل شرب البول والدم والميتة للتداوي إذا أخبره طبيب مسلم أن شفاء ه فيه ولم يجد من المباح ما يقوم مقامه وإن قال الطبيب يتعجل شفاء ک به، فيه وجهان. (رد المحتار ۵:۲۷۵، كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

۲) وفي شرح المجلة: الضرورات تبيح المحظورات يعنى أن الممنوع شرعاً يباح عند الضرورة ... كأكل الميتة والدم ... فهذه الأشياء تباح عند الاضطرار لقوله تعالى: إلّا مااضطررتم إليه. (شرح المجلة ۱:۵۵، المادة: ۲۱)

وفي الهندية: يجوز للعليل شرب الدم والبول وأكل الميتة للتداوي إذا أخبره طبيب مسلم أنّ شفاء ه فيه ولم يجد من المباح ما يقوم مقامه وإن قال الطبيب يتعجل شفائک فيه وجهان. (فتاوى هندية ۵:۳۵۵، كتاب الكراهية، الباب الثامن عشر في التداوي الخ)

## غاښ ډکول

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دي مسئلې باره کې چې غاښ ډکول روا که ناروا دي؟ بينوا توجروا

**المستفتی:** ذوالفقار علی صوابی... ۱۹۸۹،۹،۱۹

**الجواب:** غاښ ډکول غير ممنوع علاج ده (۱) او دا د جنابت غسل لپاره ضرر نه رسوي (۲) **وهوالموفق**

## غاښ ډکول د جنابت غسل لپاره ممنوع نه دي

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام د ي مسئلې باره کې چې غاښ په مساله ډکول روا دي که نا روا؟ او دا د جنابت غسل لپاره ممنوع دي بينوا توجروا

**المستفتی:** ساقي محمد كامل پور نوشهره... ۲۴ ذي القعده ۱۹۸۴،

---

۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ولا يشدّ سنه المتحرک بذهب بل بفضة وجوزهما محمّد رحمه الله". (در مختار).

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله وجوّزهما محمّد) أى جوز الذهب والفضة: أى جوز الشد بهما وأما أبو يوسف رحمه الله، فقيل معه وقيل مع الإمام ... وعلى هذا الاختلاف إذا جدع أنفه أو أذنه أو سقط سنه، فأراد أن يتخذ سنًا آخر، فعند الإمام يتخذ ذلک من الفضة فقط وعند محمّد من الذهب أيضا.

(ردالمحتار ۵:۲۵۵، كتاب الحظر والإباحة، فصل في اللبس)

۲) قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: ولو كان سنه ... (پاتې حاشيه په بل مخ)

**الجواب:** له سوري غاښ نه مساله لرې کولو کې حرج ده نو اوبه رسول ورته ضروري نه دي، غسل يې کيږي (۱) **وهوالموفق**

## ړانده ته سترګه بنل نا روا دي

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې له مرګ وروسته كه زه خپلې سترګې يو ړانده ته وبښم ايا دا روا دي؟ كه روا وي نو ثواب پكښې شته او كه نه؟ بينوا توجروا

**المستفتي** توكل خان پلازه چنار...... ۱۴۰۱هـ ۶ / ۳۰

**الجواب:** د انساني اندامونو پيوند كول د ضرورت په وجه هم روا نه دي. ځكه چې په دې كې د انسان هغه عزت نه پاتې كيږي. چې الله تعالى وركړى دى. لهذا سترګې هم په دې حكم كې شاملې دي (۲) **وهوالموفق**

---

(د حاشيې پاتې برخه) مجوفًا أو بين اسنانه طعام أو درن رطب يجزيه ...... وما على ظفر الصباغ يمنع، وقيل لا يمنع للضرورة، قال في المضمرات، وعليه الفتوى. (البحر الرائق، ۱: ۴۷، كتاب الطهارة)

وفي الهندية: والطين في الظفر لا يمنع والصرام والصباغ ما في ظفرهما يمنع تمام الاغتسال وقيل كل ذلك يجزيهم للحرج والضرورة ومواضع الضرورة مستثناة عن قواعد الشرع.

(فتاوى هندية ۱۳:۱ الباب الثاني في الغسل)

۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: لا يمنع ما على ظفر صباغ ولا طعام بين أسنانه أو في سنه المجوف به يفتى، وقيل إن صلبا منع، وهو الأصح.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (وهو الأصح) صرح به في شرح المنية، وقال لامتناع نفوذ الماء مع عدم الضرورة والحرج. (الدرالمختار ۱۱۴:۱، أبحاث الغسل)

۲) وفي الهندية: الانتفاع بأجزاء الآدمي لم يجز قيل ...(پاتې حاشيه په بل مخ)

## حمل نه پاتې کېدو لپاره رحم لرې کول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د کومو ښځو اپرېشن باندې اولاد کيږي، يعنې حمل يې بې عملياته نشي کيداى. د هغې له دريم کمکي نه وروسته د رحم لرې کول روا دي که نا روا؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** محمد مختيار خان ټيکسلا.... ۴۹/جمادی الاول ۱۴۰۳ هـ

**الجواب:** کله چې د هلاکت خطره نه وي نو اپرېشن ممنوع ده.(۱) **وهوالموفق**

---

(د حاشيې پاتې برخه) للنجاسة وقيل للكرامة وهو الصحيح كذا في جواهر الأخلاطي. (فتاوى هندية ۵:۳۵۴ كتاب الكراهية، الباب الثامن عشر في التداوي الخ)

ويدل عليه ما في فتاوى قاضي خان: مضطر لم يجد ميتة وخاف الهلاک فقال له رجل اقطع يدي وكلها لا يسعه أن يفعل ذلک ولا يصح أمره به كما لا يسع للمضطر أن يقطع قطعة من لحم نفسه فيأكل. (فتاوى خانية على هامش الهندية ۳:۴۰۴، كتاب الحظر والإباحة)

۱) قال عبد الله رضي الله تعالى كنا نغزوا مع رسول الله ﷺ وليس لنا شيئ فقلنا: ألا نستخصي؟ فنهانا عن ذلک الخ.
(صحيح البخاري ۲:۷۵۹ باب مايكره من التتبل والخصاء)

وقال الحافظ العسقلاني رحمه الله تعالى: والحجة فيه أنهم اتفقوا على منع الجب والخصاء، فيلحق بذلک مافي معناه من التداوي بالقطع أصلا.
(فتح الباري ۹:۱۱۱، كتاب النكاح، باب قول النبي ﷺ من استطاع الباءة فليتزوج)

وفي الأشباه والنظائر: الضرورات تبيح المحظورات.
(الأشباه والنظائر ص ۸۵، الضرر يزال)

وفي الهندية: لابأس بقطع العضو إن وقعت فيه الأكلة، لئلا تسرى.
(فتاوى هندية ۵:۳۶۰، كتاب الكراهية، الباب الحادي والعشرون فيما يسع من جراحات بني آدم)

## نسل بندي يا بنځې عملياتول

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې نسل بندي يا د بنځې عمليات روا دى كه ناروا؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** محمد مختيار خان ټيكسلا ۲۹ / جمادى الاول ۱۴۰۳هـ

**الجواب:** بې له شرعي ضرورته نا روا دى.(۱) پرته له خاونده نورو ته اندامونه ښكارول بې له سخت ضرورته ناروا دي.(۲) **وهوالموفق**

---

۱) قال عبد الله رضي الله تعالى كنا نغزوا مع رسول الله ﷺ وليس لنا شئى فقلنا، ألا نستخصي؟ فنهانا عن ذلک الخ.
(صحيح البخاري ۲:۷۵۹،باب مايكره من التبل والخصاء)
وقال الحافظ أحمد بن على بن حجر العسقلاني رحمه الله تعالى: والحجة فيه أنهم اتفقوا على منع الجب والخصاء، فيلحق بذلک مافي معناه من التداوي بالقطع أصلا.
(فتح الباري ۹:۱۱۱، كتاب النكاح، باب قول النبي ﷺ من استطاع الباء ة فليتزوج)
وفي الهندية: خصاء بني آدم حرام بالاتفاق.
(فتاوى هندية ۵:۳۵۷كتاب الكراهية، الباب التاسع عشر في الختان والخصاء الخ)
۲) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: (وينظر الرجل من الرجل سوى ما بين سرته إلىٰ ما تحت ركبته ومن عرسه وأمته الحلال له وطؤها ( إلىٰ فرجها بشهوة وغيرها)؛(در مختار)
وقال العلامة الشامي رحمه الله تعالى: (قوله من عرسه وأمته) فينظر الرجل منهما و بالعكس إلىٰ جميع البدن من الفرق إلى القدم ولو عن شهوة، لأن النظر دون الوط ء الحلال. (ردالمحتار ۲۵۹–۵:۲۵۸كتاب الحظر والإباحة، فصل في النظر والمس)

## عملیات نه بغیر حمل په مستقله توګه باندې بندول

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره کې چې يو سړى عيالدار دى، ښځه يې مريضه ده. ترڅه مودې راهيسې هغه حمل غورځوي، اته بچي يې زيږولي، نو څنګه دا اسقاط حمل روا دى كه ناروا؟ كه په مستقله توګه حمل بند كړي نو بيا څه حكم لري؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** احمد جان استاد مقام صريخ ضلع صوابى

**الجواب:** د سخت ضرورت په وجه، چې كله د سخت مريض كېدو يا مړه كېدو خطره وي، د حمل د مخنيوي تدبير كولاى شي [۱] او حمل د څلورو مياشتو نه وړاندې ليرې كولاى شي [۲] هو! اپريشن په هر صورت منع دى. [۳] **والله أعلم بالصواب.**

## د ډاکټر جوړه دوايي نه د مړ کېدو په صورت کې د ضمان حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره کې چې ځينې وختونه ډاكټر مريض ته

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى : إن خاف من الولد السوء في الحرة يسعه العزل بغير رضاها لفساد الزمان، فليعتبر مثله من الأعذار مسقطا لإذنها.
(رد المحتار ۲:۴۱۲ كتاب النكاح، مطلب في حكم العزل)

۲) وفي الهندية : العلاج لإسقاط الولد إذا استبان خلقه كالشعر والظفر ونحوهما لايجوز، وإن كان غير مستبين الخلق يجوز ... وخلقه لايستبين إلّا بعد مائة وعشرين يومًا. (فتاوى هندية ۵:۳۵۶ كتاب الكراهية، الباب الثامن عشر في التداوي الخ)

۳) قال الحافظ ابن حجر العسقلاني رحمه الله تعالى : والحجة فيه أنهم اتفقوا على منع الجب والخصاء فيلحق بذلک ما في معناه من التداوي بالقطع أصلا.
(فتح الباري ۹:۱۱۱، كتاب النكاح، باب قول النبي ﷺ من استطاع الباءة فليتزوج)

دوا جوړه کړي او له هغې مريض مړ شي نو څه حکم لري ؟ بينوا توجروا

**المستفتي** طاهر ميډيکوز سرډهيري چارسده..... ۲۹ شعبان ۱۴۰۲

**الجواب:** چې کله دا دوايي د حاذق حکيم له خوا تياره شوې وي؛ نو د مخالف کېدو په صورت کې دې تيارونکي باندې څه تاوان نشته. **يدل عليه ما في** لسان الحکام ۲۹۳ فليراجع.(۱) **وهوالموفق**

## د کمزورتيا او بې تربيتۍ له وجې نسل بندي کول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې نسل بندي د ضرورت په وخت جائز ده که نه؟ بينوا توجروا

**المستفتي** نا معلوم.... ۱۹/۴/۱۹۸۹

**الجواب:** د خاوند او ښځې په مشوره دا اقدام روا دی کله چې د تنګ دستۍ د خطرې له وجې وي.(۲) نوټ:...... عمليات کول ممنوع دی. **وهوالموفق**

---

۱) وفي لسان الحكام: في فتاوى ظهير الدين رحمه الله تعالى: ليس على الفصّاد والبزّاغ والحجّام ضمان السراية إذالم يقطعوا زيادة على القدر المعهود المأذون فيه فإن شرط على هؤلاء العمل السليم دون الساري لا يصح الشرط لأنه ليس في وسعهم ذلك. (لسان الحكام في معرفة الأحكام ص ۲۹۲،الفصل التاسع في أنواع الضمانات الواجبة، ضمان الفصّاد)

وفي الشامية: ولا ضمان على حجّام وبزّاغ أى بيطار وفصّاد لم يجاوز الموضع المعتاد أى وكان بالإذن. (شامي ۵:۴۷، كتاب الإجارة، قبيل مبحث الأجير الخاص)

۲) وفي إعلاء السنن: فبالنظر إلى فساد الزمان يجوز للمرأة سدّ فم رحمها أو تعاطيها ما يقطع الحبل من أصله ... فلا يفتى بجواز العزل...(باتي حاشيه په بل مخ)

## د خانداني منصوبه بندي اړوند پوښتنې

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د دنيا ابادي ډېره په تېزۍ سره مخ په زياتېدو ده. د اقتصادياتو او عمارتونو ماهران د ډار مسئلې سره مخ دي. که په دغه مسئله باندې صرف اقتصادي يا عمراني نظر سره بحث وشي نو تحديد النسل نا ممکن ښکاري. تر څو مسلمانه معاشره کې د کوم تحريک آغاز نه وړاندې ددې شرعي حيثيت ټاکل ضروري دي. زه له يوې تحقيقي اداري سره يم، د اسلام او خانداني منصوبه بندی موضوع باندې کار کوم. زما په وړاندې څه سياسي مصلحت نشته، له هر قسم زوروني بې پروا يم. خاص د ديني جذبې لاندې ما داکار په غاړه اخيستی. ددې لوبې ذمې د پېښې پوره کولو لپاره ما ته هر وخت د علماوو د لارښوونې ضرورت دی، هيله ده چې له خپل قيمتي وخت نه څو شيبې زما لپاره وباسئ او لارښوونه راته وکړئ. او لاندې کارونو باندې رڼا واچوئ:

(الف) «خانداني منصوبه بندي» له مذهبي نقطه نظره جائز ده که نه؟

(ب) د رسول الله ﷺ د حديثونو په رڼايي کې د عزل شرعي حيثيت څنګه دی؟

(ج) فقهاء کرامو کومو صورتونو کې واده شوو ته د عزل کولو اجازه ورکړې ده؟

---

(د حاشيې پاتې برخه)...... ونحوه إلّا أن يكون لحاجة ظاهرة.

(إعلاء السنن ١٧:٤١٠، كتاب الحظر والإباحة، حكم احتيال المرأة لقطع الحمل)

وفي المنهاج: العزل هو مباح خلاف الأولى ... اعلم أن المعالجة لضبط الولادة بأكل الحبوب واستعمال آلات الانسداد ليست بممنوعة إذا كانت بمشاورة الزوجين عند الحاجة كالمرض والضعف والمعاشرة الخبيثة وغيرها دون الإملاق.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ٥:٢٨٣، باب ماجاء في العزل)

(د) ایا د تحریک په صورتونو کې ضبط تولید مختلفو طریقو کې د شرعي طریقو له نظر سره خپرول جائز دي که نه؟

(هـ) که ناروا وي؟ نو پکې د کومو خرابیو د پیدا کېدو احتمال شته؟ داهم چې ددې خرابیو د تدارک لپاره ستاسو تجویزونه څه دي؟

(ز) له عزل پرته د ضبط تولید لپاره په نویو طریقو باندې عمل کول روا دی که نه؟ بینوا توجروا

**المستفتي** ثناء الله جمیل ریسرچ آفیسرج لاهور.... ۹ صفر ۱۹۸۹

**الجواب:** ستاسو سوالونه رواسېدل. د خانداني منصوبه بندی باره کې چې زموږ رایه د شرعي نصوصو او د امت د فقهاوو په رایو باندې مبني ده. دا ښکته د نړۍ ابادۍ په توندۍ سره مخ په زیاتېدو وبرونکي نتائجو پر بنا تحدید النسل کول چې جبري او حاکمانه توګه باندې وي د تحریک په طور وي. د مسلمان له لوړ شان سره نه ښایي. دیو موحد او مسلمان قوم لپاره هیڅ کله ښه نه ده چې د افلاس او تنګدستی د خطرې په بنا د عربو د مشرکانو په شان په واد (خفي) کې مبتلا شي. دا رنګ د الله ﷻ د پیغمبر ﷺ او د خلفاء راشدینو، عاقبت اندیشي، همدردي او شفقت علی الخلق کې هیڅ شبه نشته، هغوی د عربو ریګستاني او بې اوبو او وښو ملک کې د تحدید النسل حکم یا مشوره نه ده ورکړې، هلته د قحط خطره بلکې ددې متحقق کېدل هغوی محسوس کړې ده ویلي یې دي: (**تزوجوا الولود فإني مكاثر بكم الأمم**)(۱) نو د مسلماني معاشرې لپاره به دا کله ښکلا وګرځي چې د الله ﷻ پیغمبر ﷺ او دخلفاء راشدینو تابعداري پرېږدي، هره معامله کې د لوېدیځ تقلید کوي او تقلید هم په دې اندازه چې که نن هم د لوېدیځ له خوا نه د تکثیر النسل اشاره وشي، نو فوراً به یې په سمو الي او حق والي، اقرار وکړي. الغرض ددې مسئلې حل اقتصادي او عمراني له نقطه نظره تحدید النسل نه دی کوم باندې چې اعتماد د خدای د رازقیت په شان

---

۱) (مشکوة المصابیح ۲۶۷، کتاب النکاح)

د توحید خلاف دی بلکې دډې علاج دا دی چې د الله تعالی په حکمه او کائیناتو کې د روزی ومعاش کوم بې انتها او بې حسابه او اندازې خزانې ډکې کړي دي. د الله ﷻ له راکړې عقل او سوچ نه کار واخلو. د رزق زیاتېدو او زیات نه زیات پیداوار تیارولو کې له ذرائعو کار واخیستل شي. شارې ځمکې په فصل راوړلو. د زمینداري په ذریعې پرمختګ کې لار ښونه وکړو د ځمکې غیر ضروري پیداوار (د تماکو په ډول) تحدید یا له منځه یوسو. چې په دغه د انسان د بنیادي ضرورتونو هیڅ دارومدار نشته. له دغه تمهیدي بحث نه بعد په ترتیب جوابونه مختصراً وړاندې کیږي

(الف) په حاکمانه او جبري توګه باندې هراړخیز او اجتماعي تحریک چلول ناروا دي او بې جبره او زور انفرادي طور باندې ضرورتمن لپاره جائز دی (۱).

(ب) جائز ده البته خلاف اولی ده.(۲) خو دا جواز هم هغه وخت ده کله چې دا کار په مفاسدو باندې

---

۱) وقال العلامة ظفر أحمد عثماني رحمه الله تعالى: وقد نشأت في الأور با جماعة من النسآء تسعى في تقليل النسل وقطعها وتعلم أخواتها أنواعًا من الحيل لقطع الحبل وانتشرت دعوتها إلى أقصى البلاد من الهند والعرب والمصر والشام ولو تمّت حيلة هؤلاء الخبيثات لأفضت إلى قطع النسل وفساد العالم وقد حثّ النبي ﷺ على تعاطي أسباب الولد فقال تناكحوا تناسلوا تكثروا ...فلا يفتى بجواز العزل ونحوه لا أن يكون لحاجة ظاهرة.

(إعلاء السنن ۱۷:۴۱۰، باب جواز العزل، حكم احتيال المرأة لقطع الحمل)

۲) وفي المرقاة: (وعنه قال كنا نعزل والقران ينزل وزاد مسلم فبلغ ذلک النبي ﷺ فلم ينهنا) قال ابن الهمام: العزل جائز عند عامّة العلماء وكرهه قوم من الصّحابة وغيرهم والصحيح الجواز ...قال النووي هو مكروه عندنا لأنه طريق إلى قطع النسل ولهذا ورد " العزل الوأد الخفي" ... قيل ذلک لا يدل على حرمة العزل بل على كراهته.(مرقاة المفاتيح ۶:۲۲۶، كتاب النكاح، باب المباشرة)

مشتمل نه وي، ځکه چې کوم مباحات د مفاسدو په ذريعه باندې جوړ شي هغه د قران او حديثو په رڼا کې نا روا ده. دا رنګه ددې محرکات او بواعث هم د شريعت له مخې مذموم نه دي.

(ج) عزل او اسقاط حمل ضرورت مند او د معذورو اشخاصو لپاره جائز ده.(۱) او د لويديځوالو د تقليد له وجې يا اقتصادي نقطه نظر سره ناروا ده چې په ولاړه متيازې کوي او کوم خلک چې دي ته د تحريک شکل ورکوي د هغوی په نزد دا د يوې معاشي مسئلې حل دی، چې د ذهن د غلامي ثبوت دی

(د) د ضروت مند او معذورو لپاره انفرادي توګه باندې بې له جبر او اکراه نه روا ده، چې کله مفاسدو باندې مشتمل نه وي ليکن مفاسدو باندې يې اشتمال يقيني دی، نوځکه يې د تحريک په شکل چلول په هر حال ناروا دي.(۲)

(ر) د الله ﷻ د رازقيت او تقدير له صفت نه غفلت او کثرت زنا يې لعنت ددې اهم مفاسد دي(۳) چې کله تدارک په زباني توګه باندې ممکن دی نو په عملي توګه نا ممکن دي

(س) د خاوند د عذر او ضرور تمند لپاره نورې طريقې هم انفرادي طور باندې

---

۱) وفي البحر : امرأة عالجت في إسقاط ولدها لا تأثم مالم يستبن شيئ من خلقه.
(البحر الرائق ۸:۲۰۵، كتاب الكراهية، فصل في البيع، قوله وخصي البهائم)
۲) قال العلامة ظفر أحمد عثماني رحمه الله تعالى : وقد نشأت في الأور با جماعة من النساء تسعى في تقليل النسل وقطعها وتعلم أخواتها أنواعًا من الحيل لقطع الحبل وانتشرت دعوتها إلى أقصى البلاد من الهند والعرب والمصر والشام ولو تمت حيلة هؤلاء الخبيثات لأفضت إلى قطع النسل وفساد العالم وقد حث النبي ﷺ على تعاطي أسباب الولد فقالوا تناكحوا تناسلوا تكثروا ...فلا يفتى بجواز العزل ونحوه لا أن يكون لحاجة ظاهرة.
(اعلاء السنن ۱۷:۴۱۰، باب جواز العزل، حكم احتيال المرأة لقطع الحمل)
۳) وقال الله تعالى : ولا تقتلوا أولادكم خشية املاق نحن نرزقهم وإياكم.
(سورة الاسراء، آيت : ۳۱، پاره : ۱۵)

جائز دي [۱]، البته کومي طريقي چې مفاسدو باندې مشتملې وي چې د نسل بندی په صورت يا مستقل طور باندې د خاوند يا ښځې د توليد قوت له منځه وړل، چې د تغير في خلق الله له جملې هم دي، ددې ارتکاب ناروا دی، لهذا موږ د تحريک د جواز فتوا نشو ورکولای، چې کوم خلک د کتاب، سنتو او د فقهاء کرامو اقوال اوآراء تيولي وي او د خپل مطلب اخيستلو لپاره ددې تحريک ولاړولو جواز اخلي، د هغې تحقيقات شايد اصلاً تأويل او تحريف وي. **وهوالموفق**

الجواب صحيح المجيب
سميع الحق (حضرت مولانا مفتي) محمد فريد عفي عنه

## د ضرورت په وخت د وينې خرڅولو او اخيستلو مسئله

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې انساني وينه کوم ناروغ ته ورکول روا او کوم ته نا روا دي او ددې خريد و فروخت روا دی که ناروا؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** تقويم الحق آدينه صوابی...۱۹۸۸ء ۲۲/۳

**الجواب:** د شرعي ضرورت په وخت ناروغ ته وينه ورکول روا دي [۲]، او چې کله وينه مفته نه

---

۱) وفي المنهاج: العزل هو مباح خلاف الأولى ... اعلم أن المعالجة لضبط الولادة بأكل الحبوب واستعمال آلات الانسداد ليست بممنوعة إذا كانت بمشاورة الزوجين عند الحاجة كالمرض والضعف والمعاشرة الخبيثة وغيرها دون الإملاق.
(منهاج السنن شرح جامع السنن ۵:۲۸۳، باب ما جاء في العزل)

۲) وفي الهندية: يجوز للعليل شرب الدم والبول وأكل الميتة للتداوي إذا أخبره طبيب مسلم أن شفاءه فيه ولم يجد من المباح ما يقوم مقامه وإن قال الطبيب يتعجل شفائک فيه وجهان. (فتاوى هندية ۵:۳۵۵ کتاب الکراهية، الباب الثامن عشر في التداوي الخ)

ملاویږي نو اخیستل یې جائز دي. مثل شراء شعر الخنزیر(١) او کله چې مخمصې وخت کې مردار مباح کیږي نو دا ډول د تداوی د ضرورت لپاره حرام، حرام نه پاتې کیږي (٢) وهوالموفق

## د متبادل کامیاب علاج نه کېدو په صورت کې په وینه علاج کول

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د یو مسلمان فوجي ورور خطري حالت کې پروت دی. ډېر کمزوری دی. سېول سرجن یا بل ماهر ډاکټر دا مشوره ورکوې چې تاته که وینه وخېژول شي نو روغ به شې او که نه مکمل خطره کې یې. نو هغه ته وینه ورکول حرام دي که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولانا خلیل الرحمن..... ۱۹۷۳/۵/۱۴

**الجواب:** که له ویني پرته بل کامیاب علاج نه وي نو وینه ورکول روا دي (٣)، خو اخیستلو او خرڅولو نه حتی الإمکان ځان ساتل ضروري دي (٤) وهوالموفق

---

١) وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: (وشعر الخنزير) لنجاسة عينه فيبطل بيعه وان جاز الانتفاع به لضرورة الخرز، حتى لو لم يوجد بلا ثمن جاز الشراء للضرورة وكره البيع. (الدر المختار ٤:١٢٧، باب البيع الفاسد، مطلب في التداوي بلبن البنت)

٢) وفي شرح المجلة: الضرورات تبيح المحظورات يعنى أن الممنوع شرعًا يباح عند الضرورة ... كأكل الميتة والدم ... فهذه الأشياء تباح عند الاضطرار لقوله تعالى: إلّا ما اضطررتم إليه. (شرح المجلة ١:٥٥، المادة: ٢١)

٣) وفي الهندية: يجوز للعليل شرب الدم والبول وأكل الميتة للتداوي إذا أخبره طبيب مسلم أنّ شفاءه فيه ولم يجد من المباح ما يقوم مقامه وإن قال الطبيب يتعجل شفائك فيه وجهان. (فتاوى هندية ٥:٣٥٥، كتاب الكراهية، الباب الثامن عشر في التداوي الخ)

۴) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: بطل ...(پاتې حاشیه په بل مخ)

## له بې سنده ډاکټر څخه د علاج حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې يو سړی علاج معالجه کې ما هر وي، خو د حکومت له خوا هغه ته د علاج معالجې اجازه نه وي. نو څنګه دا کس په پټه د خلکو علاج کولای شي؟ بينوا توجروا

المستفتي يونس خان هنګو ...... ۱۹۸۵، ۲۷/۹

**الجواب:** که اهليت پکې وي، نو پوازې قانوني جرم دی. شرعي جرم نه دی.[۱] والله اعلم

## د جماع په وخت پوکنۍ کارول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې پوکنۍ[۲] کارول

---

(د حاشيې پاتې برخه) بيع ما ليس بمال أى ليس بمال في سائر الأديان كالدم.
(رد المحتار ۴:۱۱۲، مطلب البيع الموقوف من قسم الصحيح)

وقال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالىٰ: لم يجز بيع الميتة والدم لانعدام المالية التي هي ركن البيع. (البحر الرائق ۶:۷۰ باب البيع الفاسد)

۱) وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: سئل في رجل به داء في ظهره اتفق مع طبيب على مداوته وجعل له أجرة ولم يضرب له مدة وداواه ويريد الطبيب أجرة مثله وما أنفقه في ثمن الأدوية فهل له ذلک؟ (الجواب) نعم! والمسئلة في الخيرية من الإجارة.
(تنقيح الحامدية ۲:۱۵۱، كتاب الإجارة)
(ومثله في الخيرية على هامش تنقيح الحامدية ۲:۱۵۱، كتاب الإجارة)

۲) فرنج ليدر:-د پلاسټکو يوه خلته وي چې د کوروالي پر مهال په مخکينی شرمګاه باندې اغوستل کيږي، ددې لپاره چې د ښځې رحم ته نطفه داخله نه شي. (فيروز اللغات: ۹۳۰)

دښځې سره د کوروالي پرمهال، دشریعت له مخې روایا ناروا ده؟ بینوا توجروا

**المستفتي:** محمد مختار خان ټیکسلا ...... ۲۹ جمادی الاول ۱۴۰۳ هـ

**الجواب:** دا عمل د عزل په توګه روادی. البته غوره نه دی. لأن فيه امتناعاً من الولد لا قتله(۱) **وهوالموفق**

## لاس، غوږ، سترګه یا وینه وغیره نورو انسانانو ته ورکول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې يو انسان ته د بل انسان اندام لکه لاس، غوږ، سترګه، یا وینه ورکول روا ده که ناروا؟ بینوا توجروا

**المستفتي:** عبد المستعان مهمند متعلم حقانيه ...... ۱۹۷۳ء/۷/۱۱

**الجواب:** د انساني اندامونو استعمال مطلقاً حرام دی.

**كما في الهندية:** الإنتفاع بأجزاء الآدمي لم يجز، قيل للنجاسة وقيل للكرامة وهو الصحيح (۲)، وفيها أيضاً: مضطر لم يجد ميتةً وخاف الهلاك فقال له رجل اقطع يدي وكُلْهَا أو قال اقطع مني قطعة وكُلْهَا لا يسعه أن يفعل ذلك ولا يصح أمره به (۵: ۳۷۴) مصري (۳) قلت

---

۱) وفي المرقاة: (وعنه قال كنا نعزل والقرآن ينزل وزاد مسلم فبلغ ذلک النبي ﷺ فلم ينهنا) قال ابن الهمام: العزل جائز عند عامة العلماء وكرهه قوم من الصحابة وغيرهم والصحيح الجواز ...قال النووي هو مكروه عندنا لأنه طريق إلى قطع النسل ولهذا ورد "العزل الوأد الخفي" ... قيل ذلک لا يدل على حرمة العزل بل على كراهته.

(مرقاة المفاتيح ۶:۲۲۶ كتاب النكاح، باب المباشرة)

۲) (فتاوى هندية ۵:۳۵۴، الباب الثامن عشر في التداوي والمعالجات)

۳)(فتاوى هندية ۵:۳۳۸، كتاب الكراهية، الباب الحادي عشر في الكراهية في الأكل)

ولأنه ذريعة لابتذال الإنسان وهي إهانة له. خو وينه عضوه نه ګڼل کيږي. او ډاکټر وينه له خلکو څخه په بيه توګه اخلي، چې د هلاکت خطره نه جوړيږي. لهذا دو يني علاج او ددې ورکول د ضرورت په وخت کې جائز دي (۱) بس وهوالموفق

## له خنزير او شادو (بيزو) څخه د جوړو شوو ستنو د استعمال حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام ددې مسئلې باره کې، چې د خنزير او شادو (۲) څخه ستنې جوړې شوې وي، استعمال يې روا دی که ناروا؟ بينوا توجروا

المستفتي عبدالمهيمن کوهاټي ..... ۳ محرم ۱۳۹۶ هـ

**الجواب:** بې له شرعي ضرورته ددې انجکشن استعمال ناروا دی. كما هو حكم العلاج بالمحرم (۳). وهوالموفق

## ژوندي يا مړه انسان ته ګردې لګول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام ددې مسئلې باره کې چې د يو مريض ګوردې

---

۱) وفي شرح المجلة: الضرورات تبيح المحظورات يعنى أن الممنوع شرعًا يباح عند الضرورة... كأكل الميتة والدم ولحم الخنزير وشرب الخمر عند المجاعة أوالغصة أوالعطش أو عند الإكراه التّام بقتل أو قطع عضو، فهذه الأشياء تباح عند الإضطرار لقوله تعالى: اِلَّا مَا اضطُرِرتُم اِلَيه. (شرح المجلة ۱:۵۵، المادة: ۲۱)

۲) لنګوريوه بيزو ده چې خوله يې خلاصه او لکۍ يې اوږده وي. (فيروز اللغات: ۱۱۶۶)

۳) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: (قوله وجوزه في النهاية بمحرّم) ونصه في التهذيب: يجوز للعليل شرب البول والدم وأكل الميتة للتداوي إذا أخبره طبيب مسلم أنّ شفاء ه فيه ولم يجد من المباح ما يقوم مقامه وإن قال الطبيب يتعجل شفائك، فيه وجهان.

(ردالمحتار ۵:۲۷۵ كتاب الحظر والاباحة، فصل في البيع)

خوړېږي، د حاضر وخت ډاکټران د هغه له علاج نه لا علاجه دي بې له دې چې گوردې بدلي کړي، نو ایا د کوم انسان گردې بل مریض ته لگیدای شي که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: رحیم بخش، کوئټه

**الجواب:** د شامي (۱) او هندیه (۲) د ذکر شویو جزئیاتو په شان د اندامونو پیوندول نا روا دي، که هغه د ژوندي انسان لپاره وي او که د مړ وي، البته وینه او شیدې وغیره چې په عرف کې اعضاء گڼل کیږي. دضرورت په وخت کې کارېدی شي (۳) **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: (قوله وشعر الإنسان) ولا يجوز الانتفاع به لحديث: لعن الله الواصلة والمستوصلة... والآدمي مكرم شرعاً وإن كان كافراً فإيراد العقد عليه وابتذاله به وإلحاقه بالجمادات إذلال له.
(رد المحتار ۴:۱۱۷، کتاب البیوع، مطلب الآدمی مکرم شرعاً ولو کافراً)

۲) وفي الهندية: الانتفاع بأجزاء الآدمى لم يجز قيل للنجاسة وقيل للكرامة وهو الصحيح. (فتاوی هندية ۵:۳۵۴، الباب الثامن عشر في التداوي والمعالجات)
وفيها أيضا: مضطر لم يجد ميتة وخاف الهلاک فقال له رجل اقطع يدى وكلها أو قال اقطع منى قطعة وكلها لا يسعه أن يفعل ذلک ولا يصح أمره به.
(فتاوی هندية ۵:۳۳۸، کتاب الکراهية، الباب الحادى عشر في الكراهة في الأكل)

۳) وفي شرح المجلة: الضرورات تبيح المحظورات... يعنى أن الممنوع شرعاً يباح عند الضرورة... كأكل الميتة والدم ولحم الخنزير وشرب الخمر عند المجاعة أو الغصة أو العطش أو عند الإكراه التّام بقتل أوقطع عضو فهذه الأشياء تباح عند الاضطرار لقوله تعالىٰ: إِلَّا مَا اضطُرِرتُم إِلَيهِ.
(شرح المجلة ۱:۵۵، المادة: ۲۱)

## له سيماب او حرامو شيانو جوړه شوې دوايي استعمالول

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې ځينې دوايانې او معجون باسبيه كې براده قصيب د غوا يا جنديد ستر. كرم عروسك خصيتن، نخاع او حيواني غدود پكې شامل وي او علاج الأ عضاء بالأعضاء داصولو په لحاظ اجزاء پكې اچول كيږي. معجون يا دحبوب اكسير د فوائدو حامل كيږي. شرعاً ددې دوايانو استعمال څنګه دی. او هم د طبي او كيمياوي اعمال سيماب كې نيم قائم مقام يا د سيماب قائم النار ضرورت كې راځي او ځينې كيمياوي كتابونو او طب كې د سيماب حيواني مطلب كيږي چې د «سپي د غوښې» لكه كلاسترا كرسيماب نيم قائم ترې تر لاسه كيږي. يا د ماهي ولا سيماب نيم قائم لحم الكلب والا ورته وايي. نو شرع كې ددې څه حكم دی ؟ بينوا توجروا

المستفتي: عبد الله پشاور ..... رمضان المبارك ۱۳۸۸ هـ

**الجواب:** پرته له ضرورته سيماب مكروه او حرام دی.(۱) او چونكه سيماب جوړيدونه انقلاب ذات متحقق كيږي لهذا ددې استعمال روا دی.(۲) **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: لأن المحرم شرعًا لايجوز الانتفاع به للتداوي كالخمر.

(الدرالمختار ۴:۲۳۹ كتاب البيوع، باب المتفرقات، مطلب في التداوي بالمحرم)

۲) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: لاملح كان حماراً أو خنزيرا ولا قذر وقع في بئر فصار حمأة لانقلاب العين. (الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله لانقلاب العين) علة للكل وهذا قول محمّد، وذكر معه في الذخيرة والمحيط أباحنيفة حلية، قال في الفتح: وكثير من المشائخ اختاروه، وهو المختار لأن الشرع رتب وصف (پاتې حاشيه په بل مخ)

## وينه ويستل او د ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د جنګ يا جهاد يا امن په زمانه کې صحت مند خلک خپله وينه باسي زخميانو يا کمزورو خلکو ته يې د بېنه کېدو لپاره د ستنې په ذريعه ورکول شرعي لحاظ باندې ددې څه حکم دی، حلال دي که حرام؟ځينې خلک يې ايثاراو قرباني او دخلکو خدمت ګڼي او ځينې علماء يې د خدمت په حکم يادوي؟ بينوا توجروا

المستفتي مولوی مختار خان...... جماى الاولى ۱۳۹۵ھ

**الجواب:** چونکې وينه ويستل چې کله معمولي وي مهلک نه وي. نه تکليف ورکونکي، د فصد په شان روا ده و او د شرعي ضرورت په وخت هم علاج بالمحرم روا دی، لهذا عند الضرورة کوم ناروغ او زخمي ته وينه ورکول جائز دي.(١) **وهوالموفق**

---

(د حاشيي پاتي برخه) النجاسة على تلك الحقيقة وتنتفي الحقيقة بانتفاء بعض أجزاء مفهومها فيكف بالكل؟... ونظيره في الشرع النطفة نجسة وتصير علقة وهى نجسة وتصير مضغة فتطهر، والعصير طاهر فيصير خمراً فينجس ويصير خلًا فيطهر، فعرفنا أن استحالة تستتبع زوال الوصف المرتب عليها، (تنبيه) يجوز أكل ذلك الملح والصلوة على ذلک الرماد.

(ردالمحتار ۱:۲۳۹ باب الأنجاس، مطلب في العفو عن طين الشارع)

١) في المحيط البرهاني: الاستشفاء بالمحرم إنما لايجوز إذا لم يعلم أن فيه شفاء أما إذا علم أن فيه شفاء وليس له داوء آخر غيره فيجوز الاستشفاء به. (المحيط البرهاني ٦:١١٦ كتاب الاستحسان، الفصل التاسع عشر في التداوي والمعالجات)

وفي الهندية: يجوز للعليل شرب الدم والبول وأكل الميتة للتداوي إذا أخبره طبيب مسلم أن شفاءه فيه ولم يجد من المباح مايقوم مقامه، وإن قال الطبيب يتعجل شفائک فيه وجهان. (فتاوى هندية ٥:٣٥٥ كتاب الكراهية، الباب الثامن عشر في التداوي والمعالجات)

## پردیو، محارمو او د زوجینو یو بل ته د وینې ورکولو مسئله

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې زياتره خلک هسپتالونو کې مريضانو ته وينه ورکوي ايا دا روا دي او يوه پردى ښځه کوم زخمي سړي ته يا بالعکس د وينې ورکول روا دي که ناروا؟ بينوا توجروا

المستفتي خليل الرحمن متعلم حقانيه ......۲۷ / جمادی الثانی ۱۳۹۴ھ

**الجواب:** د شرعي ضرورت په بنا ،چې کله بې له وينې خېژولو د مريض بچ کېدو هيله نه وي يا د مرض اوږدېدو سخته اندېښنه وي، علاج بالدم جائز دى.

لجواز العلاج بالمحرم كما فى رد المحتار ۵: ۳۴۲(١) واضحه دي وي چې په وينه ورکولو کې هيڅ تکليف نه کيږي، نه د هلاکت خطره وي. په دې باندې د اندام او قطعه اطلاق هم خفي دى، لهذا د هنديه له دې جزئيې نه:

مضطر لم يجد ميتة وخاف الهلاك فقال له رجل اقطع يدى وكلها أوقال اقطع منى قطعة وكلها لا يسعه أن يفعل ذلك ولا يصح أمره به كما لا يسع للمضطر أن يقطع قطعة من نفسه فيأكل كما فى قاضى خان ۵:۳۷۴ (هندية)(٢) عدم جواز نه بريښي، په دې کې د پردیو، محارمو زوجينو حکم يو، برابر دى. لأن الجزئية لهما. فتأمل. وهوالموفق

---

١) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى : وفي التهذيب يجوز للعليل شرب البول والدم والميتة للتداوي إذا أخبره طبيب مسلم أن شفاءه فيه ولم يجد من المباح مايقوم مقامه وإن قال الطبيب يتعجل شفاءك به فيه وجهان.
(ردالمحتار ۵:۲۷۵ كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

٢) (فتاوى هندية ۵:۳۳۸ كتاب الكراهية ،الباب الحادي عشر في الكراهة في الأكل)

## د وينې بينک او مسلم يا غير مسلم ته وينه ورکول. د زوجينو يو بل ته وينه ورکول او د حرمت رضاعت مسئله

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې ايا هغه مريض ته وينه ورکېداى شي چې ضرورت يې وي؟ ايا له کافر نه وينه اخيستل او ورکول جائز دي؟ ايا بلډ بينک ته وينه ورکول جائز دي؟ که خاوند او ښځه خپلو کې يو بل ته وينه ورکړي شرعي حيثيت يې څنګه دى. دارنګه که يو سړى يوې زنانه ته وينه ورکړي: نو ايا له هغې سره نکاح روا ده؟ بينوا توجروا

المستفتي کل ضمير

**الجواب:** چې کله د وينې نه ورکېدو صورت کې د مريض هلاکت متقين يا مظنون وي، نو وينه ورکول ګناه نه ده (۱) داسې ضرورت کې بلډ بينک ته وينه ورکول هم ګناه نه ده. د خاوند وينه ښځې ته ورکول يا برعکس نکاح ته ضرر نه رسوي، حرمت رضاعت صرف له پيو نه په خاصه موده کې ثابتيږي. دا هم ده چې کومې ښځې ته وينه ورکړي هغې سره نکاح جائز ده. (۲) **وهوالموفق**

---

۱) في المحيط البرهاني : الاستشفاء بالمحرم إنما لا يجوز إذا لم يعلم أن فيه شفاء، أما إذا علم أن فيه شفاء وليس له دواء آخر غيره فيجوز الاستشفاء به.
(المحيط البرهاني ۶:۱۱۶ کتاب الاستحسان، الفصل التاسع عشر في التداوي والمعالجات)

وفي الهندية : يجوز للعليل شرب الدم والبول وأكل الميتة للتداوي إذا أخبره طبيب مسلم أن شفاءه فيه ولم يجد من المباح مايقوم مقامه.
(فتاوى هندية ۵:۲۵۵ كتاب الكراهية، الباب الثامن عشر في التداوي الخ)

۲) قال العلامة المفتي محمد شفيع رحمه الله تعالىٰ : د خاوند وينه د ښځې په بدن کې يا د ښځې وينه د خاوند په ... (باقي حاشيه په بل مخ)

## د شیدو زیاتولو او بنه نسل پیدا کیدو لپاره څارویو ته ستن ورکول

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې د ښه نسل پيدا كيدو لپاره له كوم ښه سنډا نه تخم حاصل شي او بيا له ضرورت سره سم د غوا يا مېښې په رحم كې د ستنې په ذريعه ورسول شي. په دغه وخت كې چې كله ماده نر سره د ملاويدو خواهش كوي له هغې نه هغه ماده ښې هم زياتې وركوي او ښه نسل هم وركوي، نو ايا دا صورت د شريعت له مخې روا دى كه ناروا؟ بينوا توجروا

**المستفتي**: محمد ايوب، دواخانه مجيديه حضرو ... ۵جون ۱۹۷۵ء

**الجواب:** دا عمل بذات خود شرعي منكر نه دى. زيات نه زيات دې كې د مادې د جماع خواهش نه پوره كيږي او دا كوم مطلوب شرعي كار نه دى. وهذا جاز اخصاء البهائم كما صرحوا به في باب الكراهية ( ) ونظيره ما في الدر المختار على هامش رد المحتار ۲: ۱۴۶ أدخلت منيه في فرجها هل تعتد في البحر بحثا؟ نعم! لاحتياطها لتعرف براءة الرحم، وفي النهر

---

(د حاشيې باتې برخه) بدن كې داخلولو سره په نكاح باندې هيڅ اثر نه غورځوي، نكاح به خپل حال باقي وي، ځكه چې اسلامي شريعت محرميت د نسب، مصاهرت، رضاعت سره مخصوص كړى دى، ددې نه تجاوز كول صحيح نه دي او رضاعت سره د محرميت ثبوت هم د رضاعت مودې سره خاص دى، د رضاعت موده يعنې يو نيم كال عمر نه پس پيو څښلو سره هم د رضاعت حرمت نه ثابتيږي، كما هو مصرّح ومفصّل في عامة كتب الفقه والله سبحانه وتعالىٰ أعلم.

(انسانی اعضاء کی پیوند کاری ۲۸ شوهر، بیوی کے خون کا باهم تبادله)

۱) في الهندية: خصاء بني آدم حرام بالاتفاق وأما خصاء الفرس فقد ذكر شمس الائمة الحلواني في شرحه أنه لابأس به عند أصحابنا... وأما في غيره من البهائم فلا بأس به إذا كان فيه منفعة.

(فتاوى هندية ۵: ۳۵۷ كتاب الكراهية، الباب التاسع عشر في الختان الخ)

بحثاً أن ظهر حملها نعم، وإلا لا، في ردالمحتار قوله : أدخلت منيه. إلخ أي مني خلوة ولادخول، أما لو أدخلت مني غيره فقد قدمناه في الموطوء بشبهة (۱) انتهى، قال في الموطوءة بشبهة (۲:۸۳۶) (۲) قلت: فبناء الحكم أي العدة يدل على كونه كالوطي من صاحب المني، ووطي التيس ليس بحرام فكذا إدخال منيه. وهوالموفق

## د بیمارۍ او کمزورتیا له وجې جماع کمول

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام دي مسئلې باره کې چې یو، سړی د خپلې مېرمنې د صحت د ومره لحاظ کوي چې له هغې سره جماع کمه کوي او کم یې راوړي نو دا روا دي که نه؟ بینوا توجروا

**المستفتي** عبدالله صابر ۱۹۷۴ء ۱۵/۵

**الجواب:** که بیمار او د غیر معمولي کمزورتیا باور یا غالب گمان وي؛ نو صحیح الإ عتقاد کس لپاره داسې کار کې رخصت او اجازت دی. لأنه عذر کفساد الزمان المجوز لإسقاط الحمل (۳). وهوالموفق

---

۱) (ردالمحتار مع الدر المختار ۲:۶۶۸ فروع باب العدة، قبيل فصل في الحداد)

۲) (ردالمحتار ۲:۶۶۰ باب العدة، مطلب في النكاح الفاسد والباطل)

۳) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالىٰ : ويعزل عن الحرة بإذنها لكن في الخانية أنه يباح في زماننا لفساده، قال الكمال : فليعتبر عذراً مسقطاً لإذنها، وقالوا يباح إسقاط الولد قبل أربعة أشهر.

(الدر المختار ۲:۴۱۲ كتاب النكاح، باب نكاح الرقيق، مطلب في حكم العزل)

## غاښونه په سپینو زرو یا کلايي ډکول او ورسره د لمونځ حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې غاښ له سپينو زرو یا کلايي ډک شي. ايا دا روا دي؟ ايا لمونځ ورسره کيږي که نه؟ بینوا توجروا

**المستفتی** عبدالحی بام خيل ضلع مردان.....۱۲/ربيع الاول ۱۳۹۶هـ

**الجواب:** چونکه دا علاج ممنوع نه دی. لهذا دا سړی ګناهګار نه دی (۱) او د سوري غاښ په لوڅولو کې حرج دی يعنې د هر غسل لپاره داخلي کول او ډکول مشکل او سخت کار دی لهذا د قواعدو په بنا دا عفو دی. اوبه رسول هم ضروري نه دي. كما يشير اليه قول شارح التنوير حيث قال: لا امتناع نفوذ الماء مع عدم الضرورة والحرج، ردالمحتار ۱۴۳:۱ (۲) وهوالموفق

## د مالي کمزورتيا له وجې عارضي طور باندې جنسي طاقت ختمول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې ديو سړي مالي حالت ډېر

---

۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ولا يشدّ سنّه المتحرک بذهب بل بفضة وجوزهما محمّد. (درمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله المتحرک) قيد به لما قال الكرخي إذا سقطت ثنية رجل فإن أباحنيفة يكره أن يعيدها ويشدّها بفضة أو ذهب... قال أبويوسف سألت أباحنيفة عن ذلک في مجلس آخر فلم ير بإعادتها بأ سًا.

(ردالمحتار مع الدرالمختار ۵:۲۵۵ كتاب الحظر والإباحة، فصل في اللبس)

۲) (ردالمحتار ۱:۱۱۴ كتاب الطهارة، مطلب في أبحاث الغسل)

وفي الهندية: والطين في الظفر لا يمنع والصرام والصباغ ما في ظفرهما يمنع تمام الاغتسال وقيل كل ذلک يجزيهم للحرج والضرورة ومواضع الضرورة مستثناة عن قواعد الشرع.

(فتاوى هندية ۱:۱۳ الباب الثاني في الغسل)

کمزوري وي، په سختئ سره د کور خرچې پوره کوي، که دا سړی عارض طور
باندې خپل جنسي طاقت څه طريقي سره ختم کړي تر څو د کومې ګناه مرتکب
نه شي. ايا دا جائز دي که نه؟ بينوا توجروا

**المستفتي**: عبدالودود ضلع مردان.... ۵/ربيع الثني ۱۴۱۴ھ

**الجواب**: دا عارضي معالجه ممنوع نه ده، دا خصي کېدل نه دي، خصوصاً
چې په صحيح غرض مبني وي (۱) **وهوالموفق**

## د فيل غابښ په دوايي کې استعمالول

**سوال**: څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د فيل غابښ په
دوايي کې استعمالول روا دي که ناروا؟ بينوا توجروا

**المستفتي**: محمد حنيف، وزير ستان..... ۲۱/ذی القعده ۱۴۰۰ھ

**الجواب**: د فيل غابښ د تداوي په توګه جائز دی؟
لما في الهنديه ۵:۳۹۰، فقد جوز التداوي بعظم ماسوى الخنزير والآدمي من
الحيوانات مطلقاً من غيرفصل بين ما إذا

---

۱) قال عبد الله رضي الله تعالىٰ عنه: كنا نغزو مع رسول الله ﷺ وليس لنا شيئٌ فقلنا
ألانستخصي؟ فنهانا عن ذلک.
(الصحيح للإمام البخاري ۲:۷۵۹، باب يكره من التبتل)
وقال الحافظ احمد بن حجر العسقلاني رحمه الله تعالىٰ: قوله ﷺ ومن لم
يستطع فعليه بالصوم... وفي الحديث أيضا إرشاد العاجز عن مؤن النكاح إلى
الصوم... واستدل به الخطأبي على جواز المعالجة لقطع شهوة النكاح بالأدوية، وحكاه
البغوي في شرح السنة وينبغي أن يحمل على دواء يسكن الشهوة دون ما يقطعها إصالة
لأنه قد يقدر بعد فيندم لفوات ذلک في حقه.
(فتح الباري ۹:۱۱۱، كتاب النكاح، باب قول النبي ﷺ من استطاع الباءة فليتزوّج)

كان الحيوان ذكياً أوميتاً الخ.()وهوالموفق

## برګي (برص) ختمولو لپاره الكحل استعمالول څنګه دي؟

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام د ې مسئلې باره كې چې يوه دوايي ده چې د سيرپ په شكل كې راځي او د برص لا علاجه مرض لپاره هوميوپيتهک ډاکټرانو تياره کړې ده، مګر دې کې الکحل هم شته څکه دوايي کې يې اثر معلوميږي، ددې استعمال شرعاً څنګه دی؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** محمد امين، محله خټک لاهور صوابی.... ۵/ ذی القعده ۱۴۰۰ ھ

**الجواب:** ومنه الصدق الصواب : انګريزي دواياني له الكحل نه خالي نه دي ليكن الكحل چې انګوري ياكجوري نه وي، نو له مسكر مقدار نه کم استعمال يې جائز دی. ()او انګوري او کجوري يې ضرورته جائز نه دي يعني كه له دې دوايي پرته نوره دوايي نه وي يا بله دوايي وي؛ خو زر اثر نه کوي؛ نو

---

١) فتاوى هندية: ٥:٣٥٤،كتاب الكراهية،الباب الثامن عشر في التداوي والمعالجات)

٢)قال العلامة المرغيناني رحمه الله تعالىٰ :وماسوى ذلك من الأشربة فلابأس به.... وهونص على أن مايتخذ من الحنطة والشعير والعسل والذرة حلال عند أبي حنيفة رحمه الله تعالىٰ ،ولايجد شاربه وإن سكرمنه....وعن محمد رحمه الله تعالىٰ أنه حرام ويحد شاربه إذا سكرمنه.

(الهداية٤: ٢٩٦،كتاب الأشربة)

وفي الهندية :وأماالأشربة المتخذة من الشعير أو الذرة أو التفاح أو العسل إذا اشتدّ وهو مطبوخ أوغير فإنه يجوز شربه مادون السكر عند أبي حنيفة وأبي يوسف رحمهما الله تعالىٰ.

(فتاوى هندية٥: ٤١٤،كتاب الأشربة،الباب الثاني في المتفرقات)

بیا ددې استعمال رخصت او اجازت دی. ()**وهوالموفق**

## د نامعلومه الکحل والا دوايې استعمالول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام ددې مسئلې باره کې چې ما سره يوه دوايي ده چې پنځه فیصده الکحل پکې دی: نو ددې استعمال څه حکم لري؟ او بې له دې ماته خوب هم نه راځي بينوا توجروا

**المستفتي:** نامعلوم...... ۲۷/ ذی الحجه ۱۳۹۹ھ

**الجواب:** کله چې د الکحل په اړه معلومه نه وي چې دا له خورما جوړ دي يا له انګورو که له منې نه.()نو ددې وجې بې استعمال روا دی. خصوصا کله چې د اختلاط له وجې کالعدم او

---

۱) وفي الهندية:وتكره ألبان الأتان للمريض وغيره،وكذلک لحومهما،وكذلک التداوي بكل حرام...يجوز للعليل شرب الدم والبول وأكل الميتة للتداوي إذا أخبره طبيب مسلم أن شفاء فيه ولم يجد من المباح مايقوم مقامه،وإن قال الطبيب يتعجل شفائک،فيه وجهان.

(فتاوى هندية۵:۳۵۵،كتاب الكراهية،الباب الثامن عشر في التداوي والمعالجات)

۲) وفي دررالحكام:اليقين لايزول بالشک....هذه المادة مأخوذ من قاعدة:ماثبت بيقين لا يرتفع بالشک وماثبت بيقين لايرتفع إلا بيقين.

(دررالحكام۱:۲۰۱،المادة۴)

وقال العلامة نظام الدين رحمه الله تعالى: نن سبا چې په انګريزي دوايانو کې وم اسپرټ شامل دي دا شراب نه دي، دا داسې سپرټ دي چې د کچالو، غوړيو او داسې نورو خوراکي شيانو څخه جوړ وي، د هغې استعمالول روا دي، ځکه چې دا د ځلورو حرامو مشروباتو څخه نه دي.

(نظام الفتاوى: ۱:۳۵۳،كتاب الحظر والإباحة)

منقلب شي. ( )وهوالموفق

## د مانع حمل دوايانو استعمالولو حكم

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې يوه ښځه ۷ بچيان لري اوس د نورو بچيانو له پيدا كېدو ويرېږي، د اينده حامله كېدو خيال نه پريشانه ده. دليل يې دا دی چې يو خو يې صحت باندې بد اثر پرېوځي او بل د دومره كمكيانو پالنه لويه مسئله ده، له درې كالو راهيسې هغې او خاوند يې مانع حمل تدابير اختيار كړي دي. ايا ددې لپاره اينده هم د حمل ضد تدبيرونه اختيارول روا دي؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** گوهر الرحمان، غور غشتي، اټک..... ۱۳/۳/۱۹۸۰ع

**الجواب:** بې له اپريشنه ( )نور تد بيرونه كارول جائز دي چې كله د (۱) فقر اوفاقې باعث نه وي. ( )

---

۱) وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالیٰ :لايكون نجساً رمادُ قذر ولاملح كان حماراً أو خنزيراً ولاقذر وقع في بئر فصار حمأة لانقلاب العين ،به يفتى.
(الدرالمختار ۱: ۲۳۹،باب الأنجاس ،مطلب في العفو عن طين الشارع)

۲) قال عبدالله رضي الله تعالیٰ عنه : كنا نغزوا مع رسول الله ﷺ وليس منا شيئ فقلنا : ألا نستخصي ؟فنهانا عن ذلک.
(صحيح البخاري ۲: ۷۵۹،باب مايكره من التبتل والخصاء)

وقال الحافظ العسقلاني رحمه الله تعالیٰ :والحجة فيه أنهم اتفقوا على منع الجب والخصاء ،فيلحق بذلک مافي معناه من التداوي بالقطع أصلًا.
(فتح الباري ۹: ۱۱۱،كتاب النكاح ،باب قول النبي ﷺ :من استطاع الباءة فليتزوج)

۳) قال الله تبارک وتعالیٰ :وَلَا تَقْتُلُوٓا أَوْلَـٰدَكُمْ خَشْيَةَ إِمْلَـٰقٍ ۖ نَّحْنُ نَرْزُقُهُمْ وَإِيَّاكُمْ ۚ إِنَّ قَتْلَهُمْ كَانَ خِطْـًٔا كَبِيرًا. ( سوره بني اسرائيل آيت : ۳۱،پاره ۱۵)

(ب) د صحت كمزورتيا متيقن يا مظنون وي

(ج) د ښځې او خاوند په مشوره وي. ()**وهوالموفق**

## د وينې وركولو په وجه د حرمت نكاح مسئله

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام ددې مسئلې په باره كې چې يوه عجيبه او ناآشنا مسئله مخې ته راغلې ده چې كه زوى خپل پلار ته د ضرورت په وخت د وينې عطيه وركړي نو د پلار لپاره ددې هلك د مور سره خلوت جائز دى يا ناجائز؟ **بينواتوجروا**

**المستفتي:** فضل واحد، تيمرگره دير... ۲/ذى الحجه ۱۴۰۰ هـ

**الجواب:** د وينې په وجه حرمتِ نكاح ثابتېدل د هيڅ مذهب نه دى، (۱) البته د پيو په وجه باقاعده حرمتِ رضاع كيدل. د قرآن (۲) ........

---

۱) قال العلامة ظفر أحمد العثماني رحمه الله تعالى: ومما قدمه الشارح عن الخانية والكمال أنه يجوز للمرأة سدّ فم رحمها كما تفعله النساء.....قلت: لكن في البزازية: أن له منع أمراته عن العزل، آن (فلا يجوز له سدّ فم رحمها بغير إذنه) نعم النظر إلى فساد الزمان يفيد الجواز من الجانبين.
(اعلاء السنن ۱۷: ۴۰۹، كتاب الحظر والإجابة، حكم احتيال المرأة لقطع الحمل)

۲) قال المفتي محمّد شفيع رحمه الله تعالى: د خاوند وينه د ښځې په بدن كې يا د ښځې وينه د خاوند په بدن كې داخلولو سره په نكاح باندې هيڅ اثر نه غورځوي، نكاح په خپل حال باقي وي، ځكه چې شريعت محرميت د نسب، مصاهرت، رضاعت سره مخصوص كړى دى، ددې نه تجاوز كول صحيح نه دي،
(انسانى اعضاء كى پيوند كارى ۲۸ شوهر، بيوى كے خون كا باهم تبادله)

۳) قال الله تبارك وتعالى: حرمت عليكم امهاتكم وبناتكم.....وامهاتكم التى ارضعنكم واخواتكم من الرضاعة. (سورة النساء، پاره ۴، آيت، ۲۳)

حدیث[۱] او د فقهاوو په عبارت کې تصریحي حکم دی چې ثابتیږي[۲].

وهوالموفق

---

۱) عن عائشة رضي الله تعالى عنها أن النبي ﷺ دخل عليها وعندها رجل فكأنه تغير وجهه، كأنه كره ذلك، فقالت: إنه أخي، فقال: انظرن من إخوانكن فإنما الرضاعة من المجاعة. (صحيح البخاري ۲: ۸۲۴، باب من قال لا رضاع بعد حولين)

۲) وفي الهندية: قليل الرضاع وكثيره إذا حصل في مدة الرضاع تعلق به التحريم......وإذا مضت مدة الرضاع لم يتعلق بالرضاع تحريم.
(فتاوى عالمكيرية ۱: ۳۴۲، كتاب الرضاع)

# باب الرياضة البدنية

## ورزش جائز دی

**سوال:** څه وایي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د ورزش په باره کې څه حکم دی؟ بینوا توجروا

**المستفتي:** ذاکر الله. کوهاټ... ۱۵ محرم ۱۴۰۰ھ

**الجواب:** ورزش جائز دی (۱) **وهوالموفق**

## د موجوده ورزشونو حکم

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د قران مجید په ۱۸ سپاره کې مستي د لغو په معنا اخیستل شوې، کومه لوبه چې موږ مکتبونو کې کو، ایا دا

---

۱) قال الله تبارک وتعالیٰ: أَرْسِلْهُ مَعَنَا غَدًا يَرْتَعْ وَيَلْعَبْ وَإِنَّا لَهُ لَحٰفِظُونَ... قَالُوا يَا أَبَانَا إِنَّا ذَهَبْنَا نَسْتَبِقُ.... (الآية. (سورة يوسف)

وقال العلامة القرطبي رحمه الله تعالیٰ: قال القشيري أبونصر "نستبق" أي في المرمي أوعلى الفرس أوعلى الأقدام، والغرض من المسابقة على الأقدام تدريب النفس على العدو لأنه آلة في قتال العدو.... المسابقة شرعة في الشريعة، وخصلة بديعة وعون في الحرب.

(التفسير القرطبي ۹: ۱۲۵، سورة يوسف، آيت: ۱۲، ۱۸)

وقال المفتي كفايت الله رحمه الله تعالیٰ: جسمانی ورزش چې هغې کې د شریعت خلاف څه خبره نه وي؛ نو جائز دی.

(كفايت المفتي ۹: ۲۶۹، كتاب الحظر والإباحة، يو ويشتم باب: متفرقات)

لغو ده؟ بینوا توجروا

**المستفتي:** محمد سعيد ګل، اکبرپوره ... ۱۵رمضان ۱۴۰۵هـ

**الجواب:** دا موجوده ورزش لغو په دې کې د ملک د پر مختګ هيڅ اميد نشته. په خلاف د هل چلاني او کودابي کول. ځکه چې په دې کې بدن د صحت نه علاوه ملکي ترقي کيږي. که د مسلمان بچيان او نوي ځوانان د داسې مشغولو سره خپل زړونه وتړي؛ نو ډيره به ښه وي **وهوالموفق**

## د فټ بال، والي بال او نورو لوبو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره کې چې فټ بال، والي بال او لوبو وغيره باره کې شرعي حکم څه دی؟ بينوا توجروا

المستفتي ذاکرالله، پشاور

**الجواب:** کله چې تشبيه د نصاراوو سره نه وي؛ نو دالوبه نه مطلوب ده نه ممنوع. (۱)او د تشبيه په صورت کې ممنوع ده. (۲)**وهوالموفق**

---

۱) قال المفتي كفايت الله رحمه الله تعالى: جسماني ورزش چې هغې کې د شريعت خلاف څه خبره نه وي نو جائز دی.د ورزش ډيرې طريقې دي چې په هغې کې بعضې طريقې داسې دي چې هغه د يوخاص قوم د کفارو سره مخصوص دي، مثلا کرکټ، فټ بال، هاکي وغيره چې په هغې کې د يورپين د مشابهت په وجه کراهت شته، البته که په دې شيانو کې د مشغوليدو په وجه لمونځ يا بل شرعي امر کې نقصان نه راځي؛ نو صرف د تشبيه په وجه به کراهت وی، د حرمت حکم پرې لګول صحيح نه دي.
(كفايت المفتي ۹:۲۶۹، كتاب الحظر والإباحة،يو ويشتم باب: متفرقات)

۲) في المرقاة: (قال رسول الله ﷺمن تشبه بقوم)أى من شبّه نفسه بالكفار مثلًا في اللباس وغيره أو بالفساق أو بالفجار أو بأهل التصوف والصلحاء الأبرار (فهومنهم)أى في الإثم والخير. (مرقاة المفاتيح۸:۲۵۵، كتاب اللباس ،مسئلة التشبة)

## د پهلوانی او کراټو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې په دار العلوم حقانيه کې د پهلوانی، کراټو او د لاس جنګ کوم مرکز خلاص شوی په دې کې برخه اخيستل څه حکم لري؟ که يو کس د دښمن ماتولو په غرض يا صحت جوړولو په غرض په دې کې برخه واخلي؛ نو ددې متعلق شريعت څه حکم کوي؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** جناب عزيز الرحمن متعلم حقانيه اکوړه ..... ۱۴۰۳ھ/۳/۱۹

**الجواب:** د ځان چستوالي او د الله ﷻ د دښمنانو ماتولو په بنا مشروع بلکې مطلوب دی. ( )کله چې په اصل مقصد کې خلل نه راځي. قال الله تعالیٰ يرتع ويلعب. ( )وهوالموفق

---

۱) في مجمع الأنهر: تجوز المسابقة بالسهام والخيل والحمير والأقدام.... لأنه يحتاج إليه في الجهاد للكرّ والفرّ وكل ما هو من أسباب الجهاد، فتعليمه مندوب إليه سعياً في إقامة هذه الفريضة.

(مجمع الأنهر ۴:۲۱۶، كتاب الحظر والإباحة، فصل في المتفرقات)

۲) (سورة يوسف، آيت: ۱۲)

الله الله

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

قال اللہ تبارک وتعالیٰ

يَسْأَلُونَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ

قُلْ فِيهِمَا إِثْمٌ كَبِيرٌ وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ

وَإِثْمُهُمَا أَكْبَرُ مِنْ نَفْعِهِمَا

(سورة البقرة)

# باب الأشربة

## د وربشو شرابو څښلو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې دلته په عراق كې يو اوسېدونكى وايي چې د «بير» يعني وربشو شراب حلال دي. وجه داده چې دې كې نشه نشته. كه څوک اته بوتلونه وڅښي؛ نو نشه راولي. تاسو مهرباني وكړئ تفصيل يې وليكئ؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** حكيم خان ١٧١ انګلينډ يو كې. ٢۴ شوال ١٣٨٨هـ

**الجواب:** چونكې د بير يعني د وربشو شراب مسكر دي لهذا دا حرام دي.

قال رسول الله ﷺ: كل مسكر خمر و كل مسكر حرام. رواه مسلم (١) وقال عليه الصلوة والسلام: ما أسكر كثيره فقليله حرام (رواه أحمد (٢) وابن ماجة) (٣) وفي الدار المختار: وحرمها محمد أي الأشربة المتخذة من العسل والتين ونحوهما، قاله المصنف مطلقاً قليلها وكثيرها وبه يفتى، ذكره الزيلعي وغيره واختاره شارح الوهبانية (۴) وهوالموفق

---

١) (صحيح المسلم ٢:١٦٧، كتاب الأشربة، باب بيان أن كل مسكر خمر)

٢) (مسند الامام أحمد ٢:٩١ مسند عبدالله بن عمربن الخطاب رضي الله تعالى عنهما)

٣) (سنن ابن ماجة ٢٥١، أبواب الأشربة، باب ما أسكر كثيره فقليله حرام)

۴) (الدرالمختار ٥:٣٢٣، كتاب الأشربة)

وقال العلامة الزيلعي رحمه الله تعالى: وقال محمّد ومالك والشافعي رحمهم الله تعالى: كل مأسكر كثيره فقليله حرام من أى نوع كان لقوله ﷺ: كل مسكر خمر وكل مسكر حرام... والفتوى في زماننا على قول ......(پاتې حاشيه په بل مخ)

## په شرابو علاج كول

**سوال:** څه وايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې زمونږ په كلي كې له ډېره وخته د ساه بندۍ بيمار دی، ځينو ډاكټرانو مشوره وركړې چې علاج يې شراب دي، عرض دا دی چې دې صورت كې د شرابو استعمال جائز دی كه ناجائز؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** قاري اشرف، تيمر گره دير ..... ربيع الثاني ۱۴۰۲هـ

**الجواب:** شراب څښل عادت جوړول هر وخت ممنوع دي. څكه چې على سبيل المداومة حرام دي (۱)، البته د تداوي په توگه شراب يو دوه ځاځكي څښل هغه وخت رخصت دی كله چې حاذق ديندار او مخلص مسلمان حكيم مريض ته دا مشوره وركړي، نو په دې صورت كې هم كه له شرابو پرهيز وشي غوره دی. لما في الهندية ۵:۳۵۵: هل يجوز شرب القليل من الخمر للتداوي اذا لم يجد شيئا يقوم مقامه فيه وجهان (۲) والله اعلم

---

(دحاشيې باتې برخه) محمّد رحمه الله تعالى. (تبيين الحقائق ۶:۴۶/۴۷، كتاب الأشربة)

۱) قال الله تبارك وتعالى: يَاَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنْصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ. (سورة المائدة آيت: ۹۰)

وعن ابن عمر رضي الله تعالى عنه قال: خطب عمر على منبر رسول الله ﷺ فقال: انه قد نزل تحريم الخمر الخ.

(مشكوة المصابيح ۳۱۷، باب بيان الخمر ووعيد شاربها)

۲) (فتاوى هندية ۵:۳۵۵، كتاب الكراهية، الباب الثامن عشر في التداوي والمعالجات)

وقال العلامة ابن عابدين: (قوله وجوزه في النهاية بمحرم) ونصه في التهذيب، يجوز للعليل شرب البول والدم والميتة للتداوي ... (باتي حاشيه په بل مخ)

## له وربشو او کنې نه د حاصل شويو شرابو حکم

**سوال:** څه وايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې: إنما الخمر والميسر... الخ، له خمر نه ځيني خلک صرف د خورما او انګورو شراب مراد اخلي او د حضور ﷺ له دې حديث نه استدلال کوي چې په هغه کې نبي ﷺ له «هاتين الشجرتين» نه هغه دوه ونو (خورما او انګورو) طرف ته اشاره ده چې ددې دوه ونو شراب پر تاسو حرام دي، دويم ډول شرابو نه بې دومره اندازه څښل حرام ګڼلي چې څومره اندازه باندې نشه راځي که نه نو حلال دي. خصوصاً د وربشو او الکحل شراب نو مهرباني وکړئ نور ډولونه (چې پکې د اوربشو او الکحلو شراب شامل وي) د حل او حرمت باره کې وضاحت وکړئ. د جرمني د هوميوپيتهک دوايانو کې تقريباً ۹۰ فيصده الکحل شامليږي. ددې استعمال د شريعت له مخې څنګه دی؟ بينوا توجروا

**المستفتي** نامعلوم

**الجواب:** چې الکحل، انګور او خرما حاصل وي يا له وربشو وغيره نه حاصل وي؛ نو د مفتی به قول په بنا دا هم حرام دي، **لأنه من أقسام الخمر كما في شرح التنوير على هامش ردالمحتار: والكحل حرام عند محمد وبه يفتى[1] قلت ويؤيده ظاهر ما رواه مسلم: كل مسكر**

---

(د حاشيې پاتي برخه) إذا أخبره طبيب مسلم أن شفاء ه فيه ولم يجد من المباح مايقوم مقامه. (ردالمحتار ۵:۲۷۵ كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

۱) (الدرالمختار ۵:۳۲۴، كتاب الأشربة)

وقال العلامة الزيلعي :وقال محمد ومالك والشافعي رحمهم الله كل ما أسكر كثيره فقليله حرام من أى نوع كان لقوله ﷺ: كل مسكر خمر وكل مسكر حرام.... والفتوى في زماننا على قول محمّد رحمه الله تعالى. (تبيين الحقائق ۶ : ۴۶، ۴۷، كتاب الأشربة)

خمر وكل مسكر حرام.(١) البته تداوي بالمحرم عند الضرورة جائز ده.(٢) وهوالموفق

## د تمباکو پاکوالی، استعمال او ددې له وجې د اودس ماتېدو مسئله

**سوال:** څه وايي علماء كرام دې مسئلې باره کې چې د تمباکو کرل جائز دي او که نه؟ که چېرته حرام وي، نو په دې کې زکوة ولې ورکول کېږي. که چېرته جائز وي، نو نسوار څه حيثيت لري اوچلم نوشي ولې حرامه ده. د نسوارو د خرڅولو کټه څنګه ده؟ په نسوارو اودس ماتيږي او که نه؟ بينوا توجروا

**المستفتي** عبدالوارث صوابی ... ۱۸/ رمضان ۱۳۹۵ھ

**الجواب:** ښکاره خبره ده چې تمباکو د نورو نباتاتو په شان پاک دي او استعمال يې مباح او جائز دی، اودس پرې نه ماتيږي.(٣) البته د بې هوشی (اغماء) راتلو په وخت کې يا د وينې روانېدو

---

١) (صحيح المسلم ٢:١٦٧، كتاب الأشربة، باب بيان أن كل مسكر خمر)

٢) وفي المحيط البرهاني: الاستشفاء بالمحرم انما لا يجوز إذا لم يعلم أن فيه شفاء، أما إذا علم أن فيه شفاء وليس له دواء آخر غيره فيجوز الاستشفاء به.
(المحيط البرهاني ٦:١١٦ كتاب الاستحسان، الفصل التاسع عشر في التداوي والمعالجات)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله وجوزه في النهاية بمحرم) ونصه في التهذيب، يجوز للعليل شرب البول والدم والميتة للتداوي إذا أخبره طبيب مسلم أن شفاءه فيه ولم يجد من المباح مايقوم مقامه.
(ردالمحتار ٥:٢٧٥، كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

٣) قال العلامة المفتي كفايت الله رحمه الله تعالى: تمباكو او نسوارو سره اودس نه ماتيږي. (كفايت المفتي ٢:٢٧٢، باب الطهارة، فصل چهارم)

نه وروسته اودس كول فرض دى. (۱) يدل عليه مافى ردالمحتار ۵:۳۰۵. فإنه لم يثبت اسكاره ولا تفتيره ولا اضراره بل ثبت له منافع فهو داخل تحت قاعدة، الأصل فى الاشياء الاباحة الخ.(۲) وهوالصواب

## د تمباكو نوشي اباحت باندي دويم وار وضاحت

**سوال:** څه وايي علماء كرام دي مسئلي باره كي چي ستاسو د اولنى فتوى نه دا معلوميږي چي تمباكو څښل روا دي. زيات تفصيل غواړم؟ بينوا توجروا

**المستفتى**: عبد الله جان. بنګرام. مانسهره

**الجواب:** زموږ د فتوا مطابق تمباكو څښل مباح دي. **وهوالمختار عند أكابرنا وفى ردالمحتار ۵:۴۰۶. فإنه لم يثبت إسكاره ولا إضراره بل ثبت له منافع فهو داخل تحت قاعدة، الأصل فى أشياء الإباحة** (۳) البته ددي استعمال د لهو ولعب په طريقه مكروه دى. (۴) خو په كرلو كي بي كراهيت نه لازميږي. **وهوالموفق**

---

۱) في الهندية : الفصل الخامس في نواقض الوضوء... منها مايخرج من غير السبيلين ويسيل إلى مايظهر من الدم والقيح... الإغماء ينقض الوضوء قليله و كثيره.
(فتاوى هندية ۱۲، ۱۰:۱ كتاب الطهارة، الفصل الخامس)

۲) ردالمحتار ۵:۳۲۶، كتاب الأشربة

۳) (ردالمحتار ۵:۳۲۶، كتاب الأشربة)

۴) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى : (قوله بلا لهو و طرب)... وهذا التقييد غير مختص بهذه الأشربة بل إذا شرب الماء وغيره من المباحات بلهو وطرب على هيئة الفسقة حرم.
(ردالمحتار ۵:۳۲۲، كتاب الأشربة)...(باتي حاشيه په بل مخ)

## الکحل شراب دي که نه؟

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې هوميوپيتهک دواياني عموماً د سيال په شکل کې وي، په الکحل کې تياريږي په اصلي دوا د الکحل په نسبت ۱:۱۰ او ۱:۳ وي دا سيال دوا د بلک شوگر (تور زيږي) په وړو وړو گوليو څو څاڅکو کې اچول کيږي چې يو دوه ورځو کې جذب او وچيږي، غرض دا چې ددې استعمال په ډېر لږ مقدار کې وي. غوښتنه دا ده چې ايا داسې کار د الکحلو د هغه شرابو په تعريف کې راځي چې لږ او ډېر يې حرام دي يا الکحلو په دوايي کې گډ استعمال شرعاً جائز او حلال دی؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** غلام احمد. تربيلا ډيم ... ۲۲ اپريل ۱۹۷۵ء

**الجواب:** که دا الکحل د انگورو يا له خورماوو نه تر لاسه شوي وي، نو بې له شرعي ضرورته يې استعمال حرام دی. اگر که په لږ مقدار کې هم وي او که له گني وغيره نه جوړ شوي وي حلال دي چې د مسکر مقدار نه کم وي. لکه په سوال کې چې ذکر شوي (ماخوذ از هدايه) (۱) ............

---

(د حاشيې پاتې برخه) وقال العلامة رشيد أحمد الگنگوهي رحمه الله تعالى: چلم څښل، تمباکو خوړل مکروه تنزيهي دي، که بوی وکړي، کنه نو هيڅ خبره نه ده، د حقه څښونکي او تمباکو پلرونکي مال حلال دی او د دوی په کورونو کې د مبلمستيا خوراک هم صحيح دی. (فتاوى رشيديه ۴۶۲، جواز اور حرمت کے مسائل)

۱) وفي الهداية: الأشربة المحرمة أربعة: الخمر... قوله عليه السلام: الخمر من هاتين الشجرتين وأشار إلى الكرمة والنخلة... السابع حرمة الانتفاع بها لأن الانتفاع بالنجس حرام... والثامن أن يحد شاربها وإن لم يسكر منها وماسوى ذلک من الأشربة فلا بأس به ... وهو نص على أن ما يتخذ من الحنطة والشعير والعسل والذرة حلال عند أبي حنيفة رحمه الله تعالى ولا يحدّ شاربه وإن ...(پاتې حاشيه په بل مخ)

وغيرها.()وهوالموفق

## په عطرو او دوايانو کې د کو ښويو الکحل استعمالولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې انګريزي عامو خوشبوګانو کې الکحل وکارول شي نو استعمال يې څنګه دی او د دا ډول دوايانو استعمالولو حکم څه دی او په کومو

---

(د حاشيې پاتې برخه) سکر منه... وعن محمّد أنه حرام ويحدّ شاربه إذا سكر منه.
(هداية ۴۹۶،۴۹۲:۴،كتاب الأشربة)

۱) وفي الهندية: وأما ما هو حرام بالإجماع فهو الخمر والسكر من كل شراب وأما الخمر فلها احكام ستة: أحدها أنه يحرم شربِ قليلها وكثيرها ويحرم الانتفاع بها للتداوي وغيره... والفتوى في زماننا بقول محمّد رحمه الله تعالى حتى يحدّ من سكر من الأشربة المتخذه من الحبوب والعسل واللبن والتين...لأن الفساق يجتمعون على هذه الأشربة في زماننا ويقصدون السكر واللّهو بشربها.
(فتاوى هنديه ۴۱۲،۴۱۰:۵، كتاب الأشربة، الباب الأول)

وقال العلامة نظام الدين رحمه الله تعالى: نن سبا چې په انګريزي دوايانو کې وم اسپرټ شامل دي دا شراب نه دي، دا داسې سپرټ دي چې د کچالو، غوړيو او داسې نورو خوراکي شيانو څخه جوړ وي، د هغې استعمالول روا دي، څکه چې دا د څلورو حرامو مشروباتو څخه نه دي.
(نظام الفتاوى ۳۵۳:۱، كتاب الحظر والإحاحة)

وقال حكيم الأمت رحمه الله تعالى: اسپرټ كه د عنب (انګور) او زبيب (وچکو) يا لندو خورما يا تمر (وچې خورما) څخه جوړ شوي وي؛ نو په دېکښې ګنجايش شته، للاختلاف، کنه نو ګنجايش نشته، للاتفاق،... ددې ځای څخه د هوميوپيتهک دوايانو حکم هم معلوم شو چې بې ضرورته يې استعمال پکار نه دی، څکه چې د هغې اصل اسپرټ دي او د نورو دوايانو خالي نوم دی.
(بهشتي زيور ۱۰۲، حصه نهم طبي جوهر)

جامو کې چې دا دول خوشبويي لګېدلې وي د هغو سره لمونځ څه حکم لري؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** کفايت بخاري، اټک ..... ۲۴/۵/۵۹ء

**الجواب:** داچې الکحل انګوري يا خورمايي نه وي نو ناپاک نه دي البته ددې خوراک او څښاک د امام محمد رحمه الله په نزد په هر حال منع دی او د شيخين په نزد د مسکر له اندازې نه لږ خوړل او څښل منع نه دي. هدايه. [۱] شامي. [۲] هنديه [۳] **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة المرغيناني رحمه الله تعالى: وماسوى ذلک من الأشربة فلا بأس به... وهو نص على أن ما يتخذ من الحنطة والشعير والعسل والذرّة حلال عند أبي حنيفة ولا يحدّ شاربه وإن سکر منه... وعن محمّد أنه حرام ويحدّ شاربه إذا سکر منه... وأبويوسف رحمه الله تعالى رجع إلى قول أبي حنيفة رحمه الله تعالى فلم يحرم كل مسكر. (الهداية ۳:۲۹۶، كتاب الأشربة)

۲) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وحرمها محمّد أى الأشربة المتخذة من العسل والتين ونحوهما مطلقًا قليلها وكثيرها وبه يفتى. (الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله ونحوهما) كالتمر والزبيب والعنب، فالمراد الأشربة الأربعة التي هي حلال عند الشيخين إذا غلت واشتدت وإلا فلا تحرم كغيرها اتفاقا. (ردالمحتار ۵:۳۲۳، كتاب الأشربة)

۳) في الهندية: وأما الأشربة المتخذة من الشعير أو الذرة أوالتفاح أوالعسل إذا اشتد وهو مطبوخ أو غير مطبوخ فإنه يجوز شربه مادون السكر عند أبي حنيفة وأبي يوسف رحمهما الله تعالى وعند محمّد رحمه الله تعالى حرام شربه، قال الفقيه وبه نأخذ كذا في الخلاصة، فإن سكر من هذه الأشربة فالسكر والقدح المسكر حرام بالإجماع واختلفوا في وجوب الحد.

(فتاوى هندية ۵:۴۱۴، كتاب الأشربة، الباب الثاني في المتفرقات)

## د غیر مسلمو د سپرې کانو د استعمال حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې يورپ يا داسې د نورو ملکونو سينټ يعني د سپرې والا عطر چې الکحل هم پکې شامل وي. ډېر پيدا کيږي استعمال يې څنګه دی؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** سيد امير خان .... ۳/رجب ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** د سلام وروسته دې واضحه وي چې الکحل د انګورو يا خورماوو نه جوړ وي هغه حرام او ناپاک دي او چې کوم له ګني وغيره نه جوړ شوي وي هغه پاک دي او د حرمت تفصيل دا دی چې نا معلوم وي نو احتياط په ځان ساتنه او پرهيز کې دی او د سينټ مسئلې حکم له دې قاعده نه معلوم کړئ.

(مأخوذ از بهشتي زيور)[۱] **وهوالموفق**

## د اسپرټ او جديد تيار شوي سياهي د استعمال حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې اسپرټ او موجوده تياره شوي سياهي

---

۱) قال حكيم الأمت رحمه الله تعالى: اسپرټ كه د عنب (انګورو) او زبيب (وچکو) او رطب (لمدو خورما) او تمر (وچو خورما) نه حاصل شوي نه وي نو په دې کې ګنجائش شته سره د اختلاف نه، كنه ګنجايش پکې نشته للاتفاق.

(بهشتي زيور، طبي جوهر ۷۷۶، حصه نهم)

وقال العلامة المرغيناني رحمه الله تعالىٰ: الأشربة المحرمة أربعة الخمر... قوله عليه السلام الخمر من هاتين الشجرتين وأشار إلىٰ الكرمة والنخلة... السابع حرمة الانتفاع بها لأن الانتفاع بالنجس حرام... والثامن أن يحدّ شاربها وإن لم يسكر منها... وماسوى ذلك من الأشربة فلا بأس به ...وهو نص على أن ما يتخذ من الحنطة والشعير والعسل والذرة حلال عند أبي حنيفة رحمه الله تعالىٰ.

(الهداية ۴۹۶،۴۹۲:۴، كتاب الأشربة)

پاکه ده یا ناپاکه؟ بینوا توجروا

**المستفتي:** مولوي قمر ګل، ترناب چارسده...... ۲۹/ جماد الثاني ۱۴۰۳ه

**الجواب:** چې کله اسپرټ، انګوري یا خورمايي نه وي نو ضرر نه رسوي نه حرام دی او نه ناپاک دی (مأخوذ از قواعد فقه، (۱) والله اعلم

## چلم، چرس، نسوار، افین او د سګرټو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې چلم، چرس، او سګرټ څکول، د نسوارو او افینو اړوند د شریعت له مخې څه حکم لري، حرام دي که مباح او که مکروه؟ بینوا توجروا

**المستفتي:** عبد المستعان.... ۱۰/۳/۷۴ء

**الجواب:** تمباکو څښل في نفسه مباح دي. قال العلامة الشامي: **فإنه لم يثبت إسكاره ولا تفتيره ولا اضراره بل ثبت له منافع فهو داخل تحت قاعدة، الأصل في الأشياء الإباحة** (ردالمحتار ۵:۴۰۶)(۲) البته چې د لهو په طریقه او بغیره صحیح غرض څخه وي

---

۱) وفي الفتاوى الخانية: وأما المتخذ مما سوى التمر والعنب نحو الثمار والسكر والفانيذ والحبوب والعسل كالشعير والحنطة والذرة وما أشبه ذلك مالم يشتدّ يحل شربه بلا خلاف، فإذا غلى واشتدّ وقذف بالزبد فإن كان طبخ أدنى طبخة يحل في قول أبي حنيفة وأبي يوسف رحمهما الله تعالى.
(فتاوى خانية على هامش الهندية ۳:۲۳۰، كتاب الأشربة)

وقال حكيم الأمت رحمه الله تعالى: اسپرټ که د عنب (انګورو) او زبیب (وچکو) او رطب (لمدو خورما) او تمر (وچو خورما) نه حاصل شوي نه وي نو په دې کې ګنجائش شته سره د اختلاف نه، کنه ګنجایش پکې نشته للاتفاق. (بهشتي زیور، طبی جوهر ۷۷۶، حصه نهم)

۲) (ردالمحتار ۵:۳۲۶ كتاب الأشربة)

نو مکروه دي. كما صرح به ( ۵:۴۰۱ ) او د نسوارو هم دا حکم دی او په چرسو کې د نشي رانلو صفت دی. لهذا افيون هم حرام دي. كما في الدر المختار على هامش ردالمحتار ( ۴:۴۰۴، ۴۰۵ ) وهوالموفق

## عطرو کې د ګډو شويو الکحلو استعمالول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې موجوده زمانه کې له عطرو سره څه نا څه شراب ګډوي، استعمالول يې څنګه دي. لګول يې صحيح دي که نه؟ بينوا توجروا

**المستفتی:** حکيم الله بنوي. متعلم حقانيه اکوړه ختک ۵ محرم ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** که دا شراب (اسپرټ يا الکحل) انګوري يا خورمايي وي نو دا عطر پليت دي. واجب الاجتناب دي او که له ګنې وغيره نه تر لاسه شوي وي؛ نو د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد به پاک او جائز

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله بلا لهو وطرب) ... وهذا التقييد غير مختص بهذه الأشربة بل إذا شرب الماء وغيره من المباحات بلهو وطرب على هيئة الفسقة حرم. (ردالمحتار ۵:۳۲۲، كتاب الأشربة)

۲) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ويحرم أكل البنج والحشيشة هي ورق القنب والأفيون لأنه مفسد للعقل ويصد عن ذكر الله وعن الصلاة.

(الدر المختار على هامش ردالمحتار ۵:۳۲۵، كتاب الأشربة)

وفي الدرالمنتقي: ويحرم أكل البنج والحشيشة والأفيون لكن دون حرمة الخمر، فإن أكل شيئا من ذلك لاحد عليه بل يعزر بما دون الحد.

(الدرالمنتقي على هامش مجمع الأنهر ۴:۲۵۱، كتاب الأشربة)

الاستعمال وي (مأخوذ از كتاب الأشربة شامي ()وهدايه.()) والله اعلم

**بدن ته د مضرو اشربه وو استعمالول حرام دي اګر که نشه پکې نه وي**

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې فيجي آئر لينډ يوه جزيره ده په هغه جزيره كې يو بوټي راخيږي چې ښځونه يې راويستل كيږي. له وچېدو وروسته اوبو سره ګډيږي څو نفره شاوخوا كښيني بيا يې څښي. دري دري غړپه لس لس دقيقي وروسته تولو شپه يې څښي. څو لاندي خصوصيتونه لري

---

۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: والمحرم منها أربعة أنواع، الأول: الخمر ... وحرم قليلها وكثيرها بالإجماع، والثاني الطلاء، والثالث السكر، والرابع نقيع الزبيب، والكل أى الثلاثة المذكورة حرام إذا غلى واشتد وحرّمها محمّد أى الأشربة المتخذة من العسل والتين ونحوهما مطلقا قليلها وكثيرها وبه يفتى. (درمختار مختصراً)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله ونحوهما) كالتمر والزبيب والعنب، فالمراد الأشربة الأربعة التي هي حلال عند الشيخين إذا غلت واشتدت وإلا فلا تحرم كغيرها اتفاقًا. (ردالمحتار ۵:۳۱۸تا۳۲۳، كتاب الأشربة)

۲) قال العلامة المرغيناني رحمه الله تعالى: الأشربة المحرمة أربعة الخمر والعصير وهو الطلاء ونقيع التمر وهو السكر ونقيع الزبيب... الرابع أنها (الخمر) نجسة نجاسة غليظة كالبول ... والسابع حرمة الانتفاع بها لأن الانتفاع بالنجس حرام ولأنه واجب الاجتناب وفي الانتفاع به اقتراب... فكل ذلك حرام عندنا إذا غلا واشتد وقذف بالزبد وإذا اشتد على الاختلاف... وما سوى ذلك من الأشربة فلا بأس به... وهو نص على أن مايتخذ من الحنطة والشعير والعسل والذرة حلال عند أبي حنيفة رحمه الله تعالى. (الهداية ۳:۴۹۲تا۴۹۶ كتاب الأشربة)

(۱) د ابو رنګ د خاورې د رنګ په څېر کرې، ډېر استعمالونکي يې چوپوالی خوښوي

(۲) ډېر استعمالونکي ځوان د بوډاګانو غوندې ښکاري.

(۳) له ډېر استعماله بدن باندې سپينې سپينې کربنې راخيژي.

(۴) لاسونه سخت، بدن وچوې چې لاس نيولو کې خنډونه او دانې محسوسيږي.

(۵) ډېر استعمالونکي يې اکثر لمونځ نه کوي، عموماً شخې يې پرېشانه وي، ډيره سستيا محسوسوي. زيات مزل نشي کولی.

(۶) ډېرو ملکونو کې دا ډېر نشه لرونکې شی ګڼې او پابندي پرې لګيدلې وي، د دغه شي نوم يګانه (**Yagana**) دی. په دې باره کې شرعي حکم څه دی؟ بينوا توجروا

**المستفتی**: محمد طيب قاسمي کنيډا

**الجواب**: چونکې دا شربت (يګانه) بدن ته زيان رسوي. لهذا ددې استعمال حرام دی لکه چې په زهر قاتل کې چې نشه نشته مګر استعمال يې حرام دی. صرح بحرمته في ردالمحتار۴:۴۰۳، في كتاب الأشربة () او د برش د حرمت په وجوهاتو کې د بدن فساد مذکور دی كما في تلك

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ :ولا يلزم من حرمته نجاسته كالسم القاتل فإنه حرام مع أنه طاهر.

(ردالمحتار ۵:۳۲۴، كتاب الأشربة)

وفي الهندية: أكل الطين مكروه هكذا ذكر في فتاوى أبي الليث رحمه الله تعالىٰ وذكر شمس الائمة الحلواني في شرح صومه إذا كان يخاف على نفسه أنه لوأكله أورثه ذلك علة أو آفة لايباح له التناول وكذلك في كل شئ سوى الطين.

(فتاوى هندية ۵:۳۴۰، كتاب الكراهية، الباب الحادي عشر في الكراهة في الأكل)

الصفحة أن أدمانه (البرش) يفسد البدن والعقل ويسقط الشهوتين ويفسد اللون وينقض القوٰى وينهك،(۱)او علامه شامي رحمه الله هم په ردالمحتار کې دې نه د اضرار له وجې د حرمت په طرف اشاره کړې ده.

وهكذا يقال في غير من الاشياء الجامدة المضرة في العقل او غيره يحرم تناول القدر المضر منها دون القليل (۲) وقال في ۴۰۶: فانه لم يثبت اسكاره ولا تفتيره ولا إضراره (۳) وهو الموفق۔

## بې له صحيح غرضه سګرټ څښل مکروه دي

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې چلم يا سګرټ څښل څنګه دي؟ که يو امام سګرټ وڅښي: نو هغه پسې لمونځ کول څنګه دي؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** عابد محمود ضلع اټک ... ۱۷/ نومبر ۱۹۸۴ء

**الجواب:** تمباکو څکول بذات خو دمباح دي ،کما في ردالمحتار ۵:۴۰۶: فإنه لم يثبت إسكاره ولا تفتيره ولا إضراره بل ثبت له منافع فهو داخل تحت قاعدة: الأصل في الاشياء الإباحة الخ (۴) ليکن د لهو او صحيح غرض نه بغير په ددې استعمال مکروه وي کما في ردالمحتار ۵:۴۰۱ قال في الدر: وهذا التقييد غير مختص بهذه الأشربة بل إذا

---

۱) (ردالمحتار ۳۲۶، کتاب الأشربة)

۲) (ردالمحتار ۵:۳۲۵، کتاب الأشربة)

۳) (ردالمحتار ۵:۳۲۶، کتاب الأشربة)

۴) (ردالمحتار ۵:۳۲۶، کتاب الأشربة)

شرب الماء وغيره من المباحات بلهو وطرب على هيئة الفسقة حرم.(١) وهو الموفق.

## د نسواري د اودس ماتيدو حكم

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې سړى د لمانځه لپاره اودس وكړي او تمباكو خوله كې واچوي. ايا په دې باندې اودس ماتيږي كه نه؟ دا ډول د سګرټ ارونډ هم وضاحت وكړئ چې اودس ماتونكي دى كه نه؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** مولوى احمد الرحمن. ضلع هنګو ۱۹۸۶ء ۴۱۰

**الجواب:** چونكې تمباكو ښبل نه مسكر دي نه مفتر،(٢) لهذا د اودس په ماتيدو كې يې هيڅ وجه

---

١) (ردالمحتار ۵:۳۲۲، كتاب الأشربة)

وقال الشيخ محمّد كامل رحمه الله تعالىٰ: سئلت عن الدّخان الذي شاع في زماننا وعمت به البلوى ماحكم الله تعالىٰ فيه؟

فالجواب: أن المجتهدين لم يتكلموا عليه لأنه إنّما حدث بعدهم والمتأخرون اختلفوا فيه فمنهم من يقول بتحريمه، ومنهم من يقول بإباحته، ومنهم من توسط وقال بكراهته وأحسن ما رأيت فيه قول شيخ مشائخنا خاتمة المحققين العلامة الأمير المالكي: واختلف في الدخان، والورع تركه آه فلا ينبغي صرف المال فيه ولا تضييع الوقت ولا سيما لمن هو منسوب للعلم الشريف، والله تعالىٰ أعلم.

(فتاوى كاملية ۲۶۹،۲۶۸، كتاب الحظر والإباحة)

٢) وفي ردالمحتار: ففيهم حكم النبات وهو إباحة على المختار والتوقف وفيه إشارة إلىٰ عدم تسليم إسكاره وتفتيره وإضراره.

(ردالمحتار ۵:۳۲۸ كتاب الأشربة، قبيل كتاب الصيد)

تشنه (١) وهو الموفق

## د امام اعظم رحمه الله په نزد له شرابو پرته په نورو شرابو کې کله حد جاري کیږي

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې فتاوی عالمکیري ۲:۱۶۰ کې دي:

(١) والسكران مما سوى الخمر من الأشربة المتخذة من التمر والعنب والزبيب يحد.

(٢). النئ من ماء العنب إذا غلا واشتد ولم يقذف بالزبد فشربه إنسان وسكر لا يحد في قول أبي حنيفة رحمه الله تعالى وحكمه العصير عنده،(٢) مهرباني وکړئ د دويم مطلب واضح کړئ؟ بینوا توجروا

**المستفتي**: محمد صادق

**الجواب:** له شرابو پرته نورو شرابو کې قذف بالزبد دامام الائمه په نزد ضروري دی، كما في درالمختار ۵:۴۰۰ كتاب الأشربة(٣) فليراجع،نو بغير قذف

---

١) قال العلامة المفتي كفايت الله رحمه الله تعالى: په تمباکو او نسوارو دواړو باندې اودس نه ماتیږي. (كفايت المفتي ۲:۲۷۲، باب الطهارة، فصل چهارم)

٢) (فتاوى هندية ۲:۱۶۰ كتاب الحدود ،الباب السادس في حد الشرب)

٣) قال العلامة الحصكفي :والكل أى الثلاثة المذكورة حرام إذا غلى واشتد وإلا لم يحرم اتفاقا، وإن قذف حرم اتفاقا ظاهر كلامه فبقية المتون انه اختار ههنا قولهما. (الدر المختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله إذا غلى واشتد) أى ذهبت حلاوته وصار مسكراً وإن لم يقذف بالزبد خلافا للإمام... (قوله وظاهر كلامه) حيث لم يقل وقذف بالزبد (قوله قولهما) أى بعدم اشتراط القذف.

(ردالمحتار ۵:۳۲۱، كتاب الأشربة)

بالذبذ کې چې کوم په عبارت نمبر ۲ کې ليکلي دي باوجود د سکر نه حد نه لازميږي، وهو مذهب الإمام في العصير **وهوالموفق**

## په شرابو لړلو جامو سره د لمانځه حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې شراب د چا په جامو ولګيږي ايا بې ويڅلو لمونځ پکې کيږي؟ بينوا توجروا

**المستفتی:** ظهور، دير. ۲۷/ رمضان المبارک ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** انګوري او خورمايي شراب ناپاک دي، په لګيدو سره يې جامې پليتيږي، چې بې ويڅلو نه پاکيږي. که د عفو له اندازې واوړي لمونځ پکې نه کيږي. هدايه (۱) شامي،(۲) بحر (۳) **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة المرغيناني رحمه الله تعالىٰ: الأشربة المحرمة أربعة: الخمر والعصير ونقيع التمر ونقيع الزبيب... والرابع أنها (الخمر) نجسة نجاسة غليظة كالبول... إن حرمة هذه الأشربة (الثلاثة) دون حرمة الخمر حتى لا يكفر مستحلها ويكفر مستحل الخمر لأن حرمتها اجتهادية وحرمة الخمر قطعية... ونجاستها خفيفة في رواية وغليظة في رواية ونجاسة الخمر غليظة رواية واحدة.

(الهداية ۴۹۵،۴۹۴:۳، كتاب الأشربة)

۲) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالىٰ: ولم يبين حكم نجاسة السكر والنقيع ومفاد كلامه أنها خفيفة وهو مختار السرخسي. (الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: (قوله ومفاد كلامه) حيث صرّح بأن نجاسة الباذق كالخمر وسكت عن هذين، ويبعد أن يقال تركه هنا اعتماداً على ما مرّ فتأمل. (ردالمحتار ۳۲۱:۵، كتاب الأشربة)

۳) قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالىٰ: والمحرم منه ...(پاتې حاشيه په بل مخ)

## د انګورو او خورما الکحل د استعمال حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې الکحل (اسپرټ) په جوکلون، عطور، او افترشيو وغيره کې موجود وي د هغې څه حکم دی؟

کله چې الکحل اصل شراب نه دی بلکې دا خو له کيميکل نه جوړ شوي دیاو دا نه څښل کيږي بلکې که وڅښل شي نو د خطرناکو زهرو کار به ورکوي. په امريکا او يورپ کې اوسيدونکي هر مسلمان يې تقريباً استعمالوي. مهرباني وکړئ وضاحت وکړئ؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** عبدالرحمن. ساکن بهودي سټاکن (امريکه) ... ۱۹۸۷ء ۱۱/۱۶

**الجواب:** انګوري او خورمايي الکحل بې ضرورته استعمالول ناروا دي.(١) الکحل هم يو ډول

---

(د حاشيې پاتې برخه) أربعة الخمر ... أنها نجسة العين نجاسة غليظة كالبول والغائط ... والطلاء ... ونجاسته قيل مغلظة وقيل مخففة وهو ظاهر الرواية والسكر ... ونقيع الزبيب ... ونجاستها خفيفة. (البحر الرائق ۸:۲۱۸، كتاب الأشربة)

وفي الهداية: قدر الدرهم وما دونه من النجس المغلظ كالدم والبول والخمر... جازت الصلوة معه وإن زاد لم تجز ... وإن كانت مخففة ... جازت الصلوة معه حتى يبلغ ربع الثوب. (الهداية ۱:۷۴، ۷۵، باب الأنجاس)

١) قال العلامة الكاساني رحمه الله تعالى: أما الخمر فيتعلق بها أحكام: منها: أنه يحرم شرب قليلها وكثير ها إلا عند الضرورة... وأما السكر والفضيح ونقيع الزبيب فيحرم شرب قليلها وكثيرها لماروى عن النبي ﷺ أنه قال: الخمر من هاتين الشجرتين، وأشار عليه الصلوة والسلام إلى النخلة والكرمة.

(بدائع الصنائع ۴:۲۷۷ تا ۲۸۰، كتاب الأشربة، أحكام الخمر)

وقال العلامة نظام الدين رحمه الله تعالى: كه په تحقيق سره دا ...

......(باقي حاشيه په بل مخ)

شراب دي(۱) وهوالموفق

## تمباکو او د افیونو کرل، خرڅول او اخیستل او د مزدوري حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې افین او تمباکو کرل روا دي که ناروا او قیمت یې حلال دی که حرام؟ بینوا توجروا

**المستفتی** عبدالغني...... ۱۹۷۰ء/۳/۵

**الجواب:** د تمباکو کرل، اخیستل او خرڅول جائز دي. (۲)او د افیونو کرل (۳)

---

(د حاشیې پاتې برخه) خبره معلومه شي چې په دې دواګانو کې کوم اسپرټ او شراب کارول کیږي د منقه (انګورو) څخه جوړ وي، نو باید چې استعمال نه شي، هغه خلور شرابونه د انګورو، وشکو، لنده خورما او وچې خورما، څخه جوړ شوي وي، باید استعمال نه شي، ځکه چې ددې بو څاڅکی هم په اتفاق سره حرام او مردار دی.
(نظام الفتاوی ۱:۳۵۳، کتاب الحظر والاباحة)

۱) وفي حاشیه بهشتی زیور: د اسپرټو تحقیق دا دی چې اسپرټ ګویا د شرابو اصل دی، د تېزوالي له وجې نه څښل کیږي......د اسپرټو څخه د کیمیایي علم په ذریعه نشه یې توکي وباسي هغې ته الکحل وایي.
(حاشیه بهشتی زیور ۱۰۲،حصه نهم، طبي جوهر)

۲) قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالى: (قوله والتتن الخ)... فإنه لم يثبت إسكاره ولا تفتيره ولا إضراره بل ثبت له منافع فهو داخل قاعدة، "الأصل في الأشياء الاباحة".
(ردالمحتار ۵:۳۲۶، کتاب الأشربة)

۳) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله لا عصرها لقيام المعصية بعينه) فيه منافاة ظاهرة لقوله سابقاً لأن المعصية لا تقوم بعينه... ولعل المراد هنا عصر العنب على قصد الخمرية فإن عين هذا الفعل معصية بهذا القصد.
(ردالمحتار ۵:۲۷۷،فصل في البيع، كتاب الحظر والإباحة)

اخيستل او خرڅول (۱) او مزدوري يې ناروا ده. (۲) چې ددوايي لپاره نه وي.
والله اعلم

## سګرټ او چلم څښل

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې تاسو سګرټ او حقه (چلم) ته د مباح حکم ورکړی دی او ځينې خلک وايي چې د دود له وجې ممنوع دی؟ بينوا توجروا

**المستفتي** سيد خونا جان. قيم سيد آباد (لانډي)..... ۱۴۰۵/۵/۲۵ھ

**الجواب:** علامه شامي رحمه الله په ردالمحتار کتاب الأشربة کې د تمباکو خرڅول مباح ګڼلي دي، **حيث قال لم يثبت إسكاره ولا تفتيره ولا إضراره بل ثبت له منافع فهو داخل تحت قاعدة: الأصل في الأشياء الإباحة** ۶:۴۵۹ ( )**مطبع الحلبي**، البته کله ناکله مباح شيان د خارجي پېښو له وجې حراميږي. **وهنا كذلك لأن فيه إضاعة المال.** ( )

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله صح بيع غير الخمر) ثم إن البيع وإن صح لكنه يكره كما في الغاية.
(ردالمحتار ۵:۳۲۳، كتاب الأشربة)

۲) وفي شرح المجلة: من شرائط الانعقاد أيضاقياساً على البيع، كون المستأجر مقدور الاستيفاء حقيقة أو شرعاً فلا تنعقد... الاجارة على المعاصي لأنها غير مقدورة الاستيفاء شرعاً. (شرح المجلة للأتاسي رحمه الله تعالى ۲:۵۲۸، المادة:۴۴۵)

۳) (ردالمحتار ۵:۳۲۶ كتاب الأشربة)

۴) عن المغيرة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: إن الله حرم عليكم عقوق الأمهات ووأدالبنات ومنع وهات وكره لكم قيل وقال وكثرة السؤال وإضاعة المال، متفق عليه. (مشكوة المصابيح ۴۱۹، باب البر والصلة)

وإسرافاً (١) لأن العوام يشربونها على وجه التلهي دون التقوى كما في ردالمحتار ۶:۴۵۳ كتاب الأشربة: إذا شرب الماء وغيره من المباحات بلهو وطرب على هيئة الفسقة حرم(٢) فافهم حتى يتبين لك شرب الشيئ من شرب الدخان
نوټ: (كل دخان حرام) حديث نه دى. (٣) **وهوالموفق**

## افيون خوړل مكروه تحريمي دي

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې د افيونو خوړل حرام دي كه حلال؟ بينوا توجروا

**المستفتي**: ظهور دير.... ۹۷ء/۲/۵

**الجواب:** افيون خوړل مكروه تحريمي دي (شامي (۴)، هنديه) (۵) **وهوالموفق**

---

١) قال العلامة ابن عابدين: أن الإسراف حرام كالإسراف في الطعام والشراب، قال الله تعالىٰ: إِذَآ أَنفَقُوا لَمْ يُسْرِفُوا وَلَمْ يَقْتُرُوا. (ردالمحتار ۲: ۱۵۰، كتاب الحجر)

٢) (الدرالمختار ۵:۳۲۲، كتاب الأشربة)

٣) قال العلامة اللكهنوى: سوال "كل دخان حرام" حديث دى كه نه دى؟
جواب: په معتبرو كتابونو په حواله دا حديث نه دى.
(مجموعة الفتاوى ۱: ۱۳۷، كتاب العلم والعلماء)

۴) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: من غاب عقله بالبنج والأفيون يقطع طلاقه إذا استعمله للهو وإدخال الآفات قصداً لكونه معصية... وهو صريح في حرمة البنج والأفيون. (ردالمحتار ۵:۳۲۵، كتاب الأشربة)

۵) في الجوهرة النيرة: (ولا يجوز أكل البنج والحشيشة والأفيون وذلك كله حرام... فإن أكل شيئا من ذلك لاحد عليه وإن سكر منه... بل يعزر بما دون الحد.
(الجوهرة النيرة ۲: ۱۷۶، كتاب الأشربة)

## د نسوارو سره لمونځ کول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې په جيب کې نسوار سره لمونځ کول صحيح دي که نه؟ بينوا توجروا

**المستفتی** محمد حسين. مينګوره..... ۱۴۰۲هـ

**الجواب:** تمباکو پاک. چونه پاکه. او به پاکې. نسوار پاک دي .**وهوالموفق**

## افيون پاک دي

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې زه په فصلونو کې کار کوم نو جامو باندې د افيونو داغ لګېدلی وي چې بدبويي ترې ځي له دې سره لمونځ درست دی که نه؟ بينوا توجروا

**المستفتی** ظهور. دير...... ۲۷/ رمضان المبارک ۱۴۰۵هـ

**الجواب:** افيون پاک دي (شامي) (۱) **وهوالموفق**

## د چرسو افيونو وغيره نشه کېدونکې عادي کس ته د استعمال حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې يو سړی د افيونو، بنګو او چرسو عادي وي؛ خو د دغو شيانو استعمال په هغه هيڅ تاثير نه کوي. د شرعي دلايلو څخه يې ثابته کړئ چې دا سې

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله وقال محمّد الخ) الظاهر أن هذا خاص بالأشربة المائعة دون الجامد كالبنج والأفيون فلا يحرم قليلها بل كثيرها المسكر... ولم نر أحداً قال بنجاستها... أما الجامدات فلا يحرم منها إلا الكثير المسكر، ولا يلزم من حرمته نجاسته كالسم القاتل فإنه حرام مع أنه طاهر.
(ردالمحتار ۵:۳۲۳،۳۲۴، كتاب الأشربة)

شخص باندي مذکوره شيان حرام دي که مکروه؟ د حرمت په صورت کې حد او تعذير هم واضح کړئ او د حلت په صورت کې مدلل وجوهات نقل کړئ عندنا مشکور وعند الناس وعند الله ماجور شئ؟ بينوا توجروا

**المستفتي** مولوي سعيد. مظفرآباد ...... ۱۷/ ربيع الثاني ۱۳۹۰هـ

**الجواب:** چونکې د هغو جوامدو حرمت د اسکار له وجې دی. لهذا د اسکار د معدوم کېدو له وجې حرمت منتفي شو؟ في ردالمحتار ۵:۴۰۵، بقي هنا شيء لم أرمن نبه عليه عندنا وهو أنه إذا اعتاد أكل شيء من الجامدات التي لايحرم قليلها ويسكر كثيرها حتى صار يأكل منها القدر المسكر ولا يسكره سواء أسكره في ابتداء الأمر أولا فهل يحرم عليه استعماله نظراً إلى أنه يسكر غيره أو إلى أنه قد أسكره قبل إعتياده أم لا يحرم نظراً إلى أنه طاهر مباح، والعلة في تحريمه الإسكار ولم يوجد بعد الإعتياد وإن كان فعله الذي أسكره قبله حراماً، فليتأمل، نعم صرح الشافعية بأن العبرة لما يغيب العقل بالنظر لغالب الناس بلا عادة () انتهى باختصار يسير. خو چونکې د معتاد کېدو لپاره بدني نقصان هم لري او مضر دی او د مضرو شيانو استعمال به له کراهت تحريمي نه خالي نه وي. يدل عليه تعليل حل التتن فإنه لم يثبت إسكاره ولا تفتيره ولا إضراره (رد المحتار ۵:۴۰۶) ([1])
نوټ: په د غو شيانو کې حد نشته. او تعزير حاكم[3]

---

۱) (ردالمحتار ۵:۳۲۵، كتاب الأشربة)

۲) (ردالمحتار ۵:۳۲۶، كتاب الأشربة)

۳) في الجوهرة النيرة: ولا يجوز أكل البنج والحشيشة والأفيون وذلك كله حرام... فإن أكل شيئا من ذلك لا حد عليه وإن سكر منه... بل يعزر بما دون الحد.
(الجوهرة النيرة ۲:۱۷۶، كتاب الأشربة)

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ويحرم... (باقي حاشيه په بل مخ)

ته سپارل شوی (۱) وهوالموفق

## د حقه وغیره استعمال د صحیح غرض پرته مکروه دی

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې زيد چلم سګرټ حرام ګڼي او فاروق وايي چې حرام نه دي. دا په نيشه کې نه شمېرل کيږي؟ مسئله د حوالې سره بيان کړئ. د اخرت ثواب وګټئ؟ بينوا توجروا

**المستفتی** نوروليخان. باجوړ سکاوټس...... ۲۹/۱/۲۰۱۰ء

**الجواب:** چونکې تمباکو مسکر (نشه کونکي) نه دي. لهذا د چلم وغيره استعمال حرام نه دی؛ خو چونکي زياتره خلک دا بغير د صحيح غرض استعمالوي. لهذا په داسې خلکو کراهت خامخا راځي. قال العلامة الشامي في ردالمحتار ۶:۴۰۶ فإنه لم يثبت إسكاره ولا تفتيره ولا إضراره بل ثبت له منافع (۲) وفيه ۴:۴۰۱ إذا شرب الماء وغيره من المباحات للهو وطرب على هئية

---

(د حاشيې پاتې برخه) أكل البنج والحشيشة والأفيون فإن أكل شيئا من ذلك لاحد عليه وإن سكر منه بل يعزر بما دون الحد.
(الدرالمختار مختصراً ۵:۳۲۵، كتاب الأشربة)

۱) وفي الهندية: فصل في التعزير، وهو تأديب دون الحد في جناية ليست موجبة للحد كذا في النهاية وينقسم إلى ما هو حق الله وحق العبد والأول يجب على الإمام لا يحل له تركه... قالوا لكل مسلم إقامة التعزير حال مباشرة المعصية وأما بعد المباشرة فليس ذلك لغير الحاكم.
(فتاوى هندية ۲:۱۶۷، كتاب الحدود، فصل في التعزير)

۲) (ردالمحتار ۵:۳۲۶، كتاب الأشربة)

الفسقة حرم فقط. (۱) وهوالموفق.

## دسيون اپ او کوکا کولا څښلو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې په سيون اپ او د کوکا کولا په بوتلونو کې الکحل يعنې شراب ګډېږي دا دواړه مشروب ګرمی کې تازه دم روول ادا کوي، د حلت او حرمت حکم يې څه دی؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** معين الدين ناصر شور سوات

**الجواب:** سيون اپ او کوکا کولا کې چې کوم الکحل ګډ شوي په دې کې انګوري يا خورمايي کېدل نه متيقن او نه مظنون دي بلکې موهوم او محتمل دي يعنې انګور، خورما، بيره، کښې، وربشې وغيره څخه د اخيستو احتمال شته، نو له دې مشروباتو اجتناب واجب نه دی. البته احتياط پکار ده. **وهذا بناء على أن الشك يورث الإحتياط دون الحرمة لأن اليقين لايزول بالشك كما في شرح المجلة ۲۰ المادة: ۴ (۲) وهوالموفق**

---

۱) (ردالمحتار ۵:۳۲۲، كتاب الأشربة)

قال العلامة رشيد أحمد رحمه الله تعالى: چلم څښل او تمباکو خوړل مکروه تنزيهي دي، که بوی ولري، او که بوی ونه لري بيا هيڅ پروا نشته، د چلم او د خر خولو پيسې پاکې دي، په مبلمستيا کې يې هم دوډی خوړل حلال دي.

(فتاوى رشيديه ۴۶۲، جواز اور حرمت کے مسائل)

۲) (شرح المجلة ۱۸:۱، المادة: ۴)

وفي درر الحكام: اليقين لا يزول بالشک... هذه المادة مأخوذ من قاعدة: ما ثبت بيقين لا يرتفع بالشک وما ثبت بيقين لا يرتفع إلا بيقين.

(درر الحكام ۲۰:۱، المادة: ۴)

## د دوا په توګه افيون خوړل

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې يو ډاکټر مريض ته ووايي ستاسو د ناروغۍ علاج د افيونو په خوړلو کيږي. ايا افيون حلال دي که حرام؟ بينوا تو جروا

**المستفتي:** سبز علي، خويشکي پايان ..... ۱۹۷۲ع ۱۰/۹

**الجواب:** افين خوړل د دوا په توګه جائز دي چې کله د نيشې مقدار ته نه وي رسيدلي او لږ وي.

في ردالمحتار ۳۴:۵ والحاصل أن استعمال الكثير المسكر منه حرام مطلقاً وأما القليل فإن كان للهو حرم وإن سكر منه يقع طلاقه... الخ.(¹) وهو الموفق

## الكحل کې ګډه دوا او عطرو استعمال د جواز او عدم جواز قاعده کليه

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې په کومه دوا او عطرو کې الکحل شامل وي، ايا د شريعت له مخې يې استعمال روا دی؟ منشاء د سوال دا ده چې ايا الكحل د شرابو يو قسم دی؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** مولوي عبدالله، لتمبر ضلع کرک..... ۷۶ع ۲۶/۱۱

**الجواب:** که الکحل او اسپرټ د انګورو او خورما نه جوړ وي؛ نو دا ناپاک او حرام دي او که د ګنې او جوار وغيره نه جوړ وي نو پاک او حلال دي. کله چې د مسکر له مقدار نه راکم وي او که څوک يې ونه پيژني چې له څه نه جوړ شوي دي نو احتياط په اجتناب کې دی. وهذا الحكم مستنبط من أشربة الهداية(²)

---

۱) (ردالمحتار ۳۲۵:۵، كتاب الأشربة)

۲) قال العلامة المرغيناني : الأشربة المحرمة الخمر...والعصير إذا طبخ حتى يذهب اقل من ثلثيه ونقيع التمر وهو السكر ونقيع الزبيب إذا اشتد...(پاتې حاشيه په بل مخ)

وردالمحتار ۵:۳۹۶ () وهوالموفق

## د سګرټ او نسوارو استعمال حلال ګڼلو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې يو عالم دا حکم صادر کړی چې څوک نسوار يا چلم څکول مطلقاً حرام نه ګڼي نو ناح يې فسخه کيږي؟ نو ايا سګرټ څښل. تمباکو او نسوار وغيره شريعت کې مطلقاً حرام دي؟ بينوا توجروا

**المستفتي** حاجي شريف پټواري ضلع بنو ۱۹۹۰، ۹/۳

**الجواب:** علامه شامي وغيره په کتاب الأشربة کې د تمباکو څښل مباح ګڼلي. نو په دې بناء

---

(د حاشيې پاتې برخه) وغلا... إن حرمة هذه الأشربة دون حرمة الخمر... ونجاستها خفيفة في رواية وغليظة في أخرى ونجاسة الخمر غليظة رواية واحدة... وماسوى ذلک من الأشربة فلا بأس به...وهو نص على أن ما يتخذ من الحنطة والشعير والعسل والذرة حلال عند أبي حنيفة رحمه الله تعالىٰ ...وعن محمد رحمه الله تعالىٰ أنه حرام ويحد شاربه إذا سكر منه.
(الهداية ۴:۴۹۲، كتاب الأشربة)

۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالىٰ :والمحرم منها أربعة أنواع ، الأول: الخمر وحرم قليلها و كثيرها بالإجماع ، والثانى الطلاء ، والثالث السكر ،والرابع نقيع الزبيب ، والكل أى الثلاثة المذكورة حرام إذا غلى واشتدّ ، وحرّمها محمد أى الأشربة المتخذة من العسل والتين ونحوهمامطلقًا قليلها وكثيرهاوبه يفتى. (درمختارمختصراً)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ :(قوله ونحوها) كالتمروالزبيب والعنب،فالمراد الأشربة الأربعة التى هي حلال عند الشيخين إذا غلت واشتدت وإلا فلاتحرم كغيرها اتفاقًا.
(ردالمحتار ۵:۳۱۸ تا ۳۲۳، كتاب الأشربة)

حلال دي،(۱) او ددې مستحل کافر نه دی. خو د فقهاوو د اختلاف او اسراف له وجې نه اجتناب اهم دی (۲) وهوالموفق

## شراب خانو، قمارخانو او سرودخانو سره د تعاون حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې شراب خانو سره عدم تعاون باره کې د شريعت څه حکم دی؟ بينوا توجروا

**المستفتي** الله مست خان مصري بانډه اکوړه ختک ۲/شعبان

**الجواب:** شراب خانو، قمارخانو او سرود خانو سره عدم تعاون ضروري دی (۳)

---

۱) وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى "(قوله والتتن)أقول قد اضطربت آراء العلماء فيه فبعضهم قال بكراهته وبعضهم قال بحرمته وبعضهم بإباحته وأفردوه بالتأليف،وفي شرح الوهبانية للشرنبلالي : ويمنع من بيع الدخان وشربه : وشاربه في الصوم لاشک يفطر : ... قلت ... فإنه لم يثبت إسكاره ولا تفتيره ولا إضراره بل ثبت له منافع فهو داخل تحت قاعدة : الأصل في الأشياء الإباحة.

(ردالمحتار ۵:۳۲۶،كتاب الأشربة،قبيل كتاب الصيد)

۲) وفي حاشية شرح الوقاية: التنباک فيه خلاف كثير، ذهب البعض إلى الكراهة التحريمية والبعض إلى الكراهة التنزيهية والبعض إلى الإباحة مع كراهة الطبعية وعندي القول الآخر والقول بالتنزيه رجيح.

(حاشيه شرح الوقاية۶۷:۴،كتاب الأشربة)

۳) قال الله تبارک وتعالى :﴿وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ﴾.

(سورة المائدة آيت ۲)

وفي المرقاة: (وعن جابر رضي الله تعالى عنه...(باتې حاشيه په بل مخ)

لکه علماء چې وخت په وخت دا مشورې ورکوي **وهوالموفق**

## د ديندار ماهر ډاکټر په خبره شرابو باندې علاج کول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې شراب د مريض لپاره د حاذق حکيم په وينا روا کيږي که نه؟ بينوا توجروا

**المستفتي**: شيخ محمد مير، سوات... ۲۳/ ذی قعده ۱۳۹۴ھ

**الجواب:** که ديندار ماهر ډاکټر مشوره ورکړي چې بې له شرابو په بل څه علاج نه کيږي، يا کيږي خو ډېر وخت نيسي نو په دې صورت کې علاج بالمحرم مباح شو (شامي)[1] فقط

## خوله او پوزه کې نسوار اچول او د چلم څښلو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې حقه (چلم) او نسوار خوله او پوزه کې د اچولو څه حکم دی؟ بينوا تو جروا

**المستفتي**: فقير استاد، ضلع بنو...... ۱۵ ذي القعده ۹۵ھ

---

(د حاشيې پاتې برخه) قال: لعن رسول الله ﷺ آكل الرباوموكله وكاتبه وشاهديه)، وقال العلامة النووي رحمه الله تعالى :فيه تصريح بتحريم كتابة المترابيين والشهادة عليهما و تحريم الإعانة على الباطل. (مرقاة المفاتيح ۶:۵۹،باب الربا)

۱)) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى :وفي التهذيب :يجوز للعليل شرب البول والدم والميتة للتداوي إذا أخبره طبيب مسلم أن شفاء ه فيه ولم يجد من المباح ما يقوم مقامه ،وإن قال الطبيب يتعجل شفاؤک به ، فيه وجهان ، وهل يجوز شرب القليل من الخمر للتداوي فيه وجهان.

(رد المحتار ۵:۲۷۵،كتاب الحظر والإباحة ، فصل في البيع)

**الجواب:** چونکې تمباکو نه مسکر دي نه مفتر، لهذا استعمال يې مباح دی که د نسوارو په شکل کې وي يا د چلم په شکل کې وي. كما فى رد المحتار ۵: ۴۰۶ فإنه لم يثبت إسكاره ولا تفتيره ولا إضراره بل ثبت له منافع فهو داخل تحت قاعدة: الأصل فى الأشياء الإباحة. (۱) وهوالموفق

## د نشيي کس د عبادت قبلېدو مسئله

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د نشيي سړي عبادت قبول دی که نه؟ بينوا توجروا.

**المستفتي:** ټيکدار بهادر خان نوشهره.... ۲۷/ذی الحجه ۱۳۹۹ هـ

**الجواب:** د نشې په حالت کې لمونځ ناجائز او ناقابل قبول دی (۲) او چونکې د تمامو عباداتو د صحت لپاره صحت او هوش ضروري نه دی. لهذا د نشيي ټول عبادات نامقبول گرځول غيرمقبول دي (۳) وهوالموفق

---

۱) (ردالمحتار ۵: ۳۲۶، کتاب الأشربة)

۲) وفي التفسير القرطبي: (يَأَيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوا لَاتَقْرَبُوا الصَّلٰوةَ وَأَنْتُم سُكٰرٰى) خصّ الله سبحانه وتعالى بهذا الخطاب المؤمنين لأنهم كانوا يقيمون الصلوة وقد أخذوا من الخمر وأتلفت عليهم أذهانهم فخصوا بهذا الخطاب.... فكان منادى رسول الله ﷺ إذا أقيمت الصلوة ينادي ألا لايقربن الصلوة سكران.... (حَتّٰى تَعلَمُوا مَاتَقُولُونَ) فإذا كان بحيث لايعلم مايقول تجنب المسجد مخافة التلويث ولاتصح صلاته. (التفسير القرطبي ۵: ۱۹۲، سورة النساء، آيت ۴۳)

۳) وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: السكر:.... (پاتې حاشيه په بل مخ)

(د حاشيې پاتې برخه) .... سُرُورٌ يُزِيلُ الْعَقْلَ فَلَا يَعْرِفُ بِهِ السَّمَاءَ مِنَ الْأَرْضِ. وَقَالَا: بَلْ يَغْلِبُ عَلَى الْعَقْلِ فَيَهْذِي فِي كَلَامِهِ. وَرَجَّحُوا قَوْلَهُمَا فِي الطَّهَارَةِ وَالْأَيْمَانِ وَالْحُدُودِ..... وَبَيَّنَ فِي التَّحْرِيرِ حُكْمَهُ أَنَّهُ إِنْ كَانَ سُكْرُهُ بِطَرِيقٍ مُحَرَّمٍ لَا يُبْطِلُ تَكْلِيفَهُ فَتَلْزَمُهُ الْأَحْكَامُ وَتَصِحُّ عِبَارَتُهُ مِنَ الطَّلَاقِ وَالْعَتَاقِ، وَالْبَيْعِ وَالْإِقْرَارِ، وَتَزْوِيجِ الصِّغَارِ مِنْ كُفْءٍ، وَالْإِقْرَاضِ وَالِاسْتِقْرَاضِ لِأَنَّ الْعَقْلَ قَائِمٌ. وَإِنَّمَا عَرَضَ فَوَاتُ فَهْمِ الْخِطَابِ بِمَعْصِيَتِهِ. فَبَقِيَ فِي حَقِّ الْإِثْمِ وَوُجُوبِ الْقَضَاءِ. وَيَصِحُّ إِسْلَامُهُ كَالْمُكْرَهِ لِإِرَادَتِهِ لِعَدَمِ الْقَصْدِ.

# باب الرشوة

## رشوت ورکول کومو حالاتو کې روا او کومو کې ناروا دي

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې رشوت ورکول کومو حالاتو کې ناروا دي؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** عبدالرحمن... ۷۴ع/۳/۲۷

**الجواب:** باطل ناحق کول او حق باطلولو لپاره رشوت حرام دی او د خپل حق ثابتولو او ظلم ساتنې لپاره يې اخيستل حرام دي [۱]. **وهوالموفق**

---

۱) في الخانية :والثاني إذا دفع الرشوة القاضي له وهذه الرشوة حرام من الجانبين سواء كان القضاء بحق أو بغير حق، ومنها إذا دفع الرشوة لخوف على نفسه أوماله وهذه الرشوة حرام على الآخذ غيرحرام على الدافع....ومنها إذا دفع الرشوة ليسوى أمره عندالسلطان حل له الدفع ولايحل للآخذأن يأخذ.

(الفتاوى الخانية على هامش الهندية ۲: ۳۶۲، ۳۶۳، كتاب الدعوى والبينات)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ :منها ماهو حرام على الآخذ والمعطي وهوالرشوة على تقليد القضاء والإمارة،الثاني إرتشاء القاضي ليحكم وهوكذلك ولوالقضاء بحق لأنه واجب عليه،الثالث أخذ المال ليسوي أمره عند السلطان دفعاً للضرر أو جلباً للنفع وهوحرام على الآخذ فقط.

(ردالمحتار ۴: ۳۳۸، كتاب القضاء ،مطلب في الكلام على الرشوة والهدية)

## د نوکرۍ لپاره د رشوت ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې زموږ يو دوست نوکري لټوي، خو نوکري بې سفارشه او بې رشوته نه ملاويږي. په دې صورت کې رشوت ورکول روا دي؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** فيض الباري. تېمرګره، دير ۲۳/ رجب المرجب ۱۴۰۹ھ

**الجواب:** چې په پاکستان کې قابل او غير قابل دواړو ته بې رشوته نوکري نه ملاويږي نو رشوت ورکونکی د مجبورۍ له وجې شرعي مجرم نه دی. (۱) خو چې دغه ملازم د اړوند کار اهليت ولري؛ نو تنخوا به يې نه حراميږي (۲)

**وهوالموفق**

## خوشي کېدو لپاره له هندو پيسې اخيستل حرام دي

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې يو مشرک څه جرم وکړي او يو مسلمان يې ونيسي او مشرک هندو مسلمان فوجي ته په ۲۲۰ روپۍ ورکولو ځان خلاصول غواړي

---

۱) قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالىٰ :ومنها إذا دفع الرشوة ليسوي أمره عند السلطان حل له الدفع ولايحل للآخذ أن يأخذ. (البحر الرائق ۶: ۲۶۲، كتاب القضاء)

وفي مجمع بحارالانوار :ومن يعطي توصلاً إلى أخذحق أو دفع ظلم فغير داخل فيه (رشو). مجمع بحار الانوار ۲: ۳۳۳، باب الراء مع الشين)

۲) قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالىٰ :وأما ركنها فهو الإيجاب والقبول والإرتباط بينهما وأما شرط جوازها فثلاثة أشياء: أجر معلوم وعين معلوم وبدل معلوم....وأما حكمها فوقوع الملک في البدلين ساعة فساعة.

(البحر الرائق ۸: ۳۰۸، كتاب الاجارة)

چې ما اوس پرېږده بیا به زه غلطي نه کوم؛ نو ایا مسلمان فوجي ته د مشرک ۲۲۰، روپۍ حلالې دي که حرامې؟ بینوا توجروا

**المستفتي** ملاداد خان سکر سنده ....... ۷۰ع ۱ ۱۵

**الجواب:** دا روپۍ د مسلمان لپاره حرامې دي، واپس کول یې ضروري دي.[۱] فقط **وهوالموفق**

## زلزله ځپونکي د مرستې لپاره په رشوت باندې زیات تاوان لیکي

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې زموږ علاقه د اوسنۍ زلزلې ښکار شوې او ډېر تاوانونه شوي او بهر ممالکو نه چې څه رقم هغو علاقو ته ورکوي، (چې تاسو به هم راډیو او اخبارو کې اورېدلې وي) دې لپاره کې د حکومت پروګرام هغو خلکو ته دا و چې د خراب شوي کور په بدل کې به یې پنځه سوه روپۍ ورکولې، د حیواناتو وغیره نورو په بدل کې یې هم څه خاص اندازه تاوان ټاکلی و. مړو ته یې هم یوه اندازه تاوان ورکولو، خلکو د حکومت هغه فیصله ونه منل، د مظاهرو وروسته حکومت معاوضه کې اضافه وکړه. خلک رضا شوه. بیا پلټنه پیل شوه خو په عمومي توګه خلکو رشوتونه ورکړه او د کورونو شمېر یې زیات وښودلو او پلټونکو هم د رشوت په وجه زیات ولیکل، مثلاً د یو کور په ځای یې دوه ولیکل نو اوس دا معاوضه چې ملاوېږي حرامه ده که حلاله؟

---

[۱]) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى :الرشوة بالكسر مايعطيه الشخص الحاكم وغيره ليحكم له أو يحمله على ما يريد.... الثالث أخذ المال ليسوي أمره عند السلطان دفعًا للضرر أو جلبًا للنفع وهوحرام على الآخذ فقط.... وفي القنية: الرشوة يجب ردها ولاتملك وفيها :دفع للقاضي أو لغيره سحتا لإصلاح المهم فأصلح ثم ندم يرد ما دفع إليه.(رد المحتار ۴:۲۳۸، كتاب القضاء ،مطلب في الكلام على الرشوة والهدية)

خلک دا امدادي فنډ چې له بهرنیو ملکونو راغلی خپل حق گڼي، که هغه هرې طريقې سره تر لاسه کوي له دې دروغو سره چې کوم فنډ د راډيو او اخبارونو په ذريعه ښودل کيږي هغه مونږ ته لسمه برخه هم نه دی رسيدلی، حکومت راسره ظلم کوي؛ نو مونږ تر خپله وسه د اخيستو کوشش کوو، ليکن بل طرف گورو چې دروغ هم دي او رشوت هم. نو جناب نه پوهېږو او عام خلک په دې مرض کې مبتلا دي. لهذا دا مسئله راته حل کړئ چې د منبر په سر يې هم ښکاره کړو له خپلې ذمه وارۍ نه بې غمه شو؟ بينوا توجروا

**المستفتی** مدير المدرسه العربيه الإسلامية. پټن. سوات

**الجواب:** که د رشوت ورکونکو ټول تاوانونه له دغه منظور شوي رقم نه زيات وي يا ورسره برابر وي؛ نو په دغه رشوت کې څه حرج نشته. كما في ردالمحتار: الثالث أخذ المال ليسوى أمره عند السلطان دفعاً للضرر أو جلباً للنفع وهو حرام على الآخذ فقط ۳۰۳:۴،(۱) وهكذا (التورية) لدفع الضرر كما صرحوا به في باب اليمين.(۲) که نقصان له دغه مال نه کم وي نو د عدم استحقاق په وجه دا زيات مال اخيستل روا نه دي.(۳) البته

---

۱) رد المحتار ۴:۳۳۸، كتاب القضاء، مطلب في الكلام على الرشوة والهدية)

۲) قال العلامة الحكفي رحمه الله تعالى: وإن أكره على الكفر بالله تعالى أوسب النبي ﷺ بقطع أو قتل رخص له أن يظهر ما أمر به على لسانه ويورّي. (الدر المختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله ويورّي) التورية أن يظهر خلاف ما أضمر في قلبه، إتقاني.

(ردالمحتار ۵:۹۳، كتاب الاكراه)

۳) قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: وفي المصباح .... (باتي حاشيه په بل مخ)

که امداد ورکونکي دا مصرف صرف د لګولو لپاره ورکوي نو مخصوص رويه ممنوع نه ده. (۱)

## غير قانوني مال راوړو باندې رشوت ورکول او اخيستل

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د پاکستان تجاران پاکستاني مال کابل ته او د کابل مال پاکستان ته په غير قانوني لارو راوړي. په وړلو راوړلو کې پوليس او بابوګان پيسې اخلي. په دې باندې وزيران او باچا هم خبر وي چې ددې علاقې والا دا ډول کاروبار ونه کوي. زموږ علاقه کې د نوکرۍ په نوم هيڅ نشته. ايا زموږ له طرفه هغوی ته پيسې ورکول روا دي که نه؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** رحمت جنرل ستور. لنډي کوتل ........ ۲۶/۶/۷۰ء

**الجواب:** تاجرانو ته يې ورکول روا دي؛ خو پوليسو ته يې اخيستل ناروا دي (۲) بس، **وهوالموفق**

---

(د حاشيې پاتې برخه) الرشوة بكسر الراء مايعطيه الشخص الحاكم وغيره ليحكم له أويحمله على ما يريد.... وفي السير الكبير الرشوة لاتملك.

(البحر الرائق ۶: ۲۶۲، كتاب القضاء)

۱) في الخانية: ومنها إذا دفع الرشوة ليسوي أمره عند السلطان حل له الدفع ولايحل للآخذ أن يأخذ.

الفتاوى الخانية على هامش الهندية ۲: ۳۶۳، كتاب الدعوى والبينات)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: أن كل مقصود محمود، يمكن التوصل إليه بالصدق والكذب جميعًا فالكذب فيه حرام، وإن أمكن التوصل إليه بالكذب وحده فمباح إن أبيح تحصيل ذلک المقصود.

(ردالمحتار ۶: ۳۰۳، كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع، فروع)

۲) في مجمع بحار الأنوار: ومن يعطى توصلًا إلى أخذ.... (پاتې حاشيه په بل مخ)

## په رشوت باندې حاصله شوې نوکري او د تنخا حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې زيد د ملازمت پيدا کېدو لپاره هره خوا منډې وهي. په دغه ترپ تروپ کې رشوت هم ورکوي. بې له دې ملازمت پيدا کول عنقا دي. په دې صورت کې ځينې علماء وايي چې په دې صورت کې د رشوت ورکول روا دي. ځکه چې په دې رقم خپل حق حاصلېږي او بعضې وايي چې د معيشت دايره ډېره پراخه ده. نو ډېر تشويش کې يو. بې له دې زيد ته بې خپل دوست بې له مشورې روزګار کتلی دی او هغه هم رشوت ورکوي. اوس دې نوکرۍ باندې پاتې کېدل روا دي که نه؟ او دا تنخوا اصلاً حلاله ده که حرامه؟ في الحال زيد ته بې له دې بل هيڅ طريقه عمل نشته؟ بينوا توجروا

**المستفتي**: ابن امين. کوهاټ

**الجواب:** په داسې مجبورۍ کې رشوت ورکول ناروا دي. [1] په رشوت باندې شته نوکري کولو باندې تنخا اخيستلو کې هيڅ حرمت او کراهت نشته. [2]

في ردالمحتار: الثالث: أخذ

---

(د حاشيې پاتې برخه) حق أودفع ظلم فغير داخل فيه (رشو)

(مجمع بحار الأنوار ۲: ۳۳۳، باب الراء مع الشين)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: الثالث: أخذ المال ليسوي أمره عند السلطان دفعاً للضرر أو جلباً للنفع وهو حرام على الآخذ، فقط.

(رد المحتار ۴: ۳۳۸، كتاب القضاء، مطلب في الكلام على الرشوة والهدية)

۱) في الخانية: ومنها إذا دفع الرشوة ليسوي أمره عند السلطان حل له الدفع ولايحل لآخذ أن يأخذ.

(فتاوى خانية على هامش الهندية ۲: ۳۶۳، كتاب الدعوى والبينات)

۲) قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: وأما ركنها .... (پاتې حاشيه په بل مخ)

المال ليسوى أمره عند السلطان دفعاً للضرر أو جلباً للنفع وهو حرام على الآخذ فقط.(۱) وهوالموفق

## سرکاري مدرسو کې د رشوت په ذريعه نوکري حاصلول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې ځينې سرکاري مدارسو کې بې له رشوته د دينياتو معلم نه مقررېږي، لهذا د حاجت او افلاس په صورت کې رشوت ورکوي؛ نو سرکاري مدارسو کې نوکر کېدل روا او که ناروا دي؟ بينوا توجروا

**المستفتي**: مولوي عبدالرحمن. سکنه بهادر خيل. کرک. ۷۳ع ۲۴/۲

**الجواب:** په مسئوله صورت کې رشوت ورکونکی نه ګنهګارېږي، يدل عليه ما في رد المحتار ۴:۳۰۳ : الثالث أخذ المال ليسوّى أمره عند السلطان دفعاً للضرر أوجلباً للنفع وهوحرام على الآخذ فقط. (۲) وهوالموفق

## د رشوت په پيسو د اخيستل شويو شيانو د استعمال حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې زما والد صاحب کچريو (دار القضاء) کې ملازم دی او رشوت اخلي، هماغه روپۍ کورونو کې خرچ کېږي زه هم ملازم يم. زما هم زر

---

(د حاشيي پاتې برخه) فهو الإيجاب والقبول والإرتباط بينهما، وأماشرط جوازها فثلاثة أشياء: أجر معلوم وعين معلوم وبدل معلوم....وأما حكمها فوقوع الملک في البدلين ساعة فساعة. (البحر الرائق ۸: ۳، کتاب الإجارة)

۱) (رد المحتار ۴: ۳۳۸، کتاب القضاء، مطلب في الکلام على الرشوة والهدية)

وفي مجمع بحار الأنوار: ومن يعطى توصلاً إلى أخذ حق أو دفع ظلم فغير داخل فيه. (مجمع بحار الأنوار ۲: ۳۳۳، باب الراء مع الشين)

روپۍ تنخا ده، هغه زه د کور په خرچه کې ورکوم. والد صاحب زما روپۍ ا
خپلې روپۍ يو ځای خرج کوي. ما د الله تعالی په فضل تبليغ کې خلو
مياشتې هم لګولي دي چې زما زندګي يې بدله کړې ده او ما سره ددې خبرې
احساس شته چې زمونږ کور کې حرام مال هم خرج کيږي. مهرباني وکړئ دې
باره کې وضاحت وکړئ؟ بينوا تو جروا -

**المستفتي** نبي خالد نديم بمعرفت قاري محمد يعقوب صاحب ۱۹۸۲ع/۱۰/۱۴

**الجواب:** تاسې او ټول کور والا نوټ او کاغذ خورئ يا که په هغه اخيستل شوی خوراک وغيره؟ په هر حال تاسې چې کوم مال استعمالوئ، د عرف په بنا ثمن او قيمت ته اشاره نه کيږي چې په دې مال (رشوت والا) باندې خوراک او څښل وغيره ستاسو راکړه. نو د داسې خوراک استعمال روا دی. كما في رد المحتار ۵:۲۳۵ (۱)، المطبع الحلبي، البته رشوت کې چې سابه، خواره کباب وغيره راوړي نو هغه مه خورئ (۲) وهوالموفق

## د رشوت په ذريعه د راغلو شيانو استعمال

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې غير ملکي اشياء رخت لوښو وغيره استعمال

---

۱) قال العلامة الحصكفي :وإن أشارإليها ونقدغيرها أوأشارإلى غيرهاونقدها أواطلق ولم يشر ونقدها لايتصدق في الصور الثلاث عندالكرخي قيل وبه يفتى ،(درمختار) وفي درالمختار :ولواشترى بالدراهم المغضوبة طعاما حل التناول ولو اشترى بها دنانير لم يجزله أن يتصرف فيهافوجب عليه ردها.
(رد المحتار۵: ۱۳۳،كتاب الغصب)

۲) قال العلامة الشامي رحمه الله تعالى :وفي القنية الرشوة يجب ردها ولاتملك.
(رد المحتار۴: ۳۳۸،مطلب في الكلام على الرشوة والهداية، كتاب القضاء)

روا دی که ناروا، کله چې په هغې کې عام شیان کستم کې په رشوت اخستو باندې راځي چې زمونږ د ملک قانون منافي دي؟ بینوا توجروا

**المستفتی:** سهیل قاسم آباد، پندی

**الجواب:** کستم صرف یو قانوني جرم دی، ددې خلاف ورزي صرف د قانون خلاف ورزي ده، د شریعت خلاف ورزي نه ده. (۱) **وهوالموفق**

## په رشوت باندې ونې له ناکلي اندازې نه ډیرې وهل او دغه رشوت قرض، صدقه او مضاربت وغیره کې استعمالول

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام دې مسئلې باره چې یو کس د ځنګلاتو ملازم دی، د ځنګلاتو ټیکه حکومت ټیکدار ته ورکوي، ټیکدار د ملازم په اجازه له خپل معلوم حساب نه ونې زیاتې کاټوي او دغه ټیکه دار ملازم ته له خپل ځان نه څه روپۍ ورکوي نو په دې اړه د شریعت څه حکم دی؟

(۲) دا روپۍ هغه یو ملازم ته د تجارت او مضاربت لپاره ورکوي نو په دغه رقم باندې هغوی ته تجارت کول څنګه دي؟

(۳) دغه روپۍ کوم ملګري ته د قرض حسنه په توګه ورکول څنګه دي؟

---

۱) قال الدكتور وهبة الزحيلي رحمه الله تعالىٰ :حدد الماوردي واجبات المسلمين نحو الحاكم بأمرين وهما(۱)الطاعة في غير معصية (۲) النصرة مالم يتغير حاله، فقال إذا قام الإمام بما ذكرنا من حقوق الأمة فقد أدى حق الله تعالىٰ فيما لهم وعليهم ووجب له عليهم حقان، الطاعة والنصرة مالم يتغيرحاله....وبذل الطاعة مشروط بقيام الحاكم بواجباته التي ذكرت سابقاً ومضمونها التزام أوامر الشريعة.

(الفقه الإسلامي وأدلته ۸: ۶۱۹۰،حقوق الإمام الحاكم)

(۴) دا مال د مفتي صدقي په توګه ورکول څه حکم لري؟

(۵) له داسې مال نه زکات ورکول کيږي که نه؟ په دې حج او عمره کيږي يا بل چاته د حج او عمرې لپاره ورکول څنګه دي؟

(۶) د داسې سړي په کاروبار کې د ملازم په حيث کار کول او تنخا اخيستل څنګه دي؟

(۷) له دې نه د مقروض قرضه ادا کول څه حکم لري؟

(۸) که دا روپۍ ښې نه وي؛ نو له دې مال نه د ځان خلاصولو په خاطر غريبانو باندې تقسيم شي يا مساجدو او مدارسو ته ورکړل شي يا بل څه صورت وشي؟ بينوا توجروا

**المستفتي**: بدر منير سواتي، متعلم حقانيه.....۳/ ذي قعده ۱۳۹۴هـ

**الجواب**: (۱) د عدم استحقاق له وجې دا په رشوت کې راځي.

لأن الرشوة ما يعطيه الشخص الحاكم وغيره ليحكم له أو يحمله على ما يريد. (رد المحتار ۴:۳۰۳).(۱) (۲)نر(۸) ددې کس لپاره ضروري ده چې بعينه دغه روپۍ واپس کړي (۲) يا معافي

---

۱) رد المحتار ۴:۳۳۷، كتاب القضاء، مطلب في الكلام على الرشوة)

وعن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: لعنة الله على الراشي والمرتشي، رواه أبوداؤد وأحمد والترمذي.

وقال العلامة العثماني رحمه الله تعالى: والحاصل أن حد الرشوة ما يؤخذ عما وجب على الشخص سواء كان واجبًا على العين أوعلى الكفاية، وسواء كان واجبًا حقًا للشرع كما في القاضي وأمثاله.

(إعلاء السنن ۱۵:۶۱، كتاب القضاء، تحقيق معنى الرشوة لغةً وشرعًا)

۲) قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: وفيها دفع للقاضي أو لغيره سحتًا لإصلاح المهم فأصلح ثم ندم يردّ ما دفع إليه فظاهره أن التوبة من .... (باقي حاشيه په بل مخ)

وغواړي. (۱) کنه نو له وایسی نه مخکې مضاربت، قرضونه او خیراتونه وغیره حرام دي له دې نه هیڅ قسم غنیتوب نه حاصلیږي (۲) **وهوالموفق**

---

(د حاشيې پاتې برخه) الرشوة بردّ المال إلى صاحبه.

(البحر الرائق ٦: ٢٦٢، كتاب القضاء)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: وفي القنية: الرشوة يجب ردّها ولا تملك. (رد المحتار ٤: ٣٣٨، كتاب القضاء، مطلب في الكلام على الرشوة والهدية)

١) في المرقاة: (وعن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: من كانت له مظلمة لأخيه من عرضه أو شيئ) أي أمر آخر كأخذ ماله (فليتحلله منه) أى من المظلوم (اليوم قبل أن لايكون دينار ولادرهم إن كان له عمل صالح) أى بأن يكون مؤمناً ظالماً غير معفومن مظلومه (أخذ بقدر مظلمته وإن لم تكن له حسنات أخذ من سيئات صاحبه فحمل عليه. (مرقاة المفاتيح ٩: ٣٢٠، ٣٢١، باب الظلم)

٢) قال المحدث القاري رحمه الله تعالى: عن ابن عمر رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: لاتقبل صلاة بغير طهور ولاصدقة من غلول) والمراد هنا من تصدق بما خان بأن تصدق من مال حرام فلايثاب على التصدق به بل يعاقب إن علم أنه حرام وثوابه لمالكه ومحل هذا إذا كان يعرف مالكه أو وارثه وإلا فهو مأمور بالتصدق به.

(مرقاة المفاتيح ١: ٣٣٤، ٣٣٥، باب ما يوجب الوضوء، الفصل الأول)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: لو مات الرجل وكسبه من بيع الباذق أو الظلم أو أخذ الرشوة يتورع الورثه، ولايأخذون منه شيئا وهو أولى بهم، ويردونها على أربابها إن عرفوهم، ولا تصدقوا بها ولأن سبيل الكسب الخبيث التصدق إذا تعذرالرد على صاحبه. (رد المحتار ٥: ٢٧٣، كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

## د زائد انټر پرائز سکیم شرعي حیثیت

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې زائد انټر پرائز سکیم شرعي لحاظ سره جائز دی که نه؟ بینوا توجروا

**المستفتي**: مولانا فضل الرحمن، دره پیزو، ضلع بنو.

**الجواب:** دا معامله حرامه ده، لس روپۍ باندې درې کوپن ملاوېدو لپاره د یو شخص په نوم شل روپۍ لېږلو شرط او ضروري ده. دا شرط فاسد دی.(۱) دا هم چې شل روپۍ په بنکاره انعام او حقیقت کې رشوت دی (۲) **وهوالموفق**

---

۱) في المرقدة: أن النبي ﷺ نهى عن بيع وشرط.....ثم المراد شرط لايقتضيه العقد كما هو ظاهر.

(مرقاة المفاتيح ۶:۸۲،باب المنهي عنها من البيوع)

۲) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى :الرشوة بالكسر مايعطيه الشخص الحاكم وغيره ليحكم له أو يحمله على ما يريد ......وفي القنية : الرشوة يجب ردها ولاتملك.

(ردالمحتار ۴:۳۳۷، كتاب القضاء ،مطلب في الكلام على الرشوة والهداية)

وقال الله تبارک وتعالى :وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُم بَيْنَكُم بِالْبَاطِلِ وَتُدْلُوا بِهَا إِلَى الْحُكَّامِ لِتَأْكُلُوا فَرِيقًا مِّنْ أَمْوَالِ النَّاسِ بِالْإِثْمِ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ، أى لاتدخلوا بأموالكم إلى الحكام ،أى لاتصانعوهم بها ولاترشوهم ليقتطعوا لكم حقا لغيركم وأنتم تعلمون أنه لايحل لكم ،عن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ :لعن الله الراشي والمرتشي في لحكم .....إنما تلحق اللعنة الراشي إذا قصد بها أذية مسلم أو ينال بها مالايستحق.

(الكبائر للذهبي رحمه الله تعالى ۱۴۹ ،الكبيرة الثانية والثلاثون)

## د مجاهدينو نمايندګانو ته د هديې په نوم رشوت ورکول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د افغانستان د مجاهدينو نمايندګانو ته صدقه، تحفه او هديه وغيره په نوم باندې شيان، د قسم د الفاظو له تاکيدونو سره ورکوي چې دا رشوت نه دی. که صحيح ورته وويل شي يا رشوت ورنکړې، نو خپلو ځايونو ته يې رسول مشکل ښکاري. ددې پيسو اخيستل او ورکول څه حکم لري؟ بينوا توجروا

**المستفتي** اتحاد اسلامي مجاهدين افغانستان ... ۱۶ ربيع الثاني ۱۴۰۳ع

**الجواب:** دا مجاهدين په هغه هديه يا رشوت کې د مؤاخذې قابل نه دي. لأنهم أعطوه لإحياء حقهم، البته مؤاخذين د مؤاخذې قابل دي (شامي ۴:۳۰۲) (۱) والله أعلم

## د کار نه کولو له وجې د بجلی والا افسرانو ته رشوت ورکول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې زه واټر پمپ يا کور لپاره د بجلی راوستلو عريضه کوم. د بجلی محکمې دفتري افسران او نوره عمله بې پيسو زمونږ کار نه کوي، آيا هغوی ته د پيسو ورکول روا که ناروا دي؟ بينوا توجروا

**المستفتي** خيال بادشاه، پشاور ۱۴۰۰ ۲۴/۴ھ

**الجواب:** واضحه دې وي چې خپلو حقوقو لپاره د مجبورۍ له وجې چا ته روپۍ ورکول جائز دي. په دې شرط چې د بل حق تلفي ونه شي. اخيستونکي ته اخيستل ناروا او حرام دي لما في رد

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: الثالث أخذ المال ليسوي أمره عند السلطان دفعاً للضرر أو جلباً للنفع وهو حرام على الآخذ فقط.

(رد المحتار ۴:۳۳۸، كتاب القضاء، مطلب في الكلام على الرشوة والهداية)

المحتار على الدر المختار ۲: ۳۱۶، الثالث أخذ المال ليسوّى أمره عند السلطان دفعاً للضرر أوجلباً للنفع وهوحرام على الآخذ فقط. (۱) وهوالموفق.

## د ضرر دفع کولو لپاره رشوت ورکول ناروا دی

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره کې چې د دفع مضرت لپاره رشوت ورکول څه حکم لري؟ بينوا توجروا

**المستفتی:** نا معلوم...... ۲۸ جمادی الأول ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** د دفع مضرت لپاره رشوت ورکول جائز دي. أحكام القران لأبى بكر الجصاص الرازى. (۲) والله اعلم

---

۱) رد المحتار ۴: ۳۳۸، كتاب القضاء مطلب في الكلام على الرشوة والهدية)

وفي الخانية: الثاني: إذا دفع الرشوة إلى القاضي ليقضي له وهذه الرشوة حرام من الجانبين سواء كان القضاء بحق أو بغير حق...ومنها: إذا دفع الرشوة ليسوّي أمره عند السلطان حل له الدفع ولايحل للآخذ أن يأخذ.

(الفتاوى الخانية على هامش الهندية ۲: ۳۶۲، كتاب الدعوى والبينات)

۲) قال العلامة أبوبكر الجصاص رحمه الله تعالى: ووجه آخر من الرشوة وهوالذي يرشو السلطان لدفع ظلمه عنه فهذه الرشوة محرمة على آخذها محظورة على معطيها، يرشو السلطان لدفع ظلمه عنه، فهذه الرشوة محرمة على آخذها غير محظورة على معطيها، عن جابر بن زيد والشعبي قالا: لا بأس بأن يصانع الرجل عن نفسه وماله إذا خاف الظلم.

(احكام القرآن ۲: ۴۳۳، باب الرشوة)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: الثالث: أخذالمال ليسوّي أمره عند السلطان دفعاً للضرر أو جلبًا للنفع وهوحرام على الآخذ فقط.

(رد المحتار ۴: ۳۳۸، كتاب القضاء، مطلب في الكلام على الرشوة والهدية)

## د خپل حق اخيستلو او د بل حق تلفي لپاره د رشوت حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې يو شی د يو کس خپل حق وي او د هغه د لاس نه راوړلو لپاره مجبوراً رشوت ورکړي: نو ګناهګاريږي که نه؟ بينوا توجروا

**المستفتي** ماسترز بياؤ خان. کرک ... ۱۴۰۰ھ/۳/۱۴

**الجواب:** د خپل حق اخيستلو لپاره رشوت ورکونکی نه ګنهګاريږي. البته د چا د حق تلفي لپاره رشوت ورکونکی هم ګنهګار دی. (۱) **وهوالموفق**

## د حق تلفي او مظلوميت ګمان کېدو په صورت کې د رشوت ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د نرس ټرېننګ لپاره د حکومت شرط دا دی چې د ضلع د ميډيکل افسر (سول سرجن) نه بې بايد د يو کال د هسپتال ټرېننګ سند اخيستی وي. اوس دا کس چې د نرس امتحان ورکونکی وي، د ضلع ميډيکل افسر ۵۰۰ روپۍ رشوت نه بغير سند نه ورکوي او کله چې ضلعي ميډيکل افسر سرټيفيکيټ ورنکړي نو هغه د نرس امتحان نه محروميږي او بيا وروسته درې زره روپۍ د رشوت په توګه په دفتر کې ورکوي، که هغه کامياب‌يږي هم نو ناکام به وي. اوس هغو ځايونو کې چونکې له مجبورۍ نه رشوت ورکول ضروري وي.

---

(۱) قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى :وفي المصباح : الرشوة بكسر الراء مايعطيه الشخص للحاكم وغيره ليحكم له أويحمله على مايريد....وفي الخانية :الرشوة على وجوه أربعة ،منها ما هوحرام على الجانبين وذلک في موضعين أحدهما :إذا تقلد القضاء بالرشوة حرم على القاضي والآخذ ....الثاني : إذا دفع الرشوة ليقضي له، حرم من الجانبين.....ومنها إذا دفع الرشوة ليسوّي آمره عندالسلطان حل له الدفع ولايحل للآخذ أن يأخذ. (البحر الرائق ۶:۲۶۲،كتاب القضاء)

لهذا ستاسو نه ددې مسئلې وضاحت غواړو چې له دې وجې رشوت ورکول څنګه دي؟ بينوا توجروا

**المستفتي**: ډاکټر عبدالرحمن. جميل دواخانه. ټانک ضلع ډېره

**الجواب**: چې د رشوت ورکولو په صورت کې حق تلفي او مظلوميت مظنون وي نو رشوت ورکول حرام نه دي، اخيستل يې حرام دي. (ردالمحتار ۴:۳۰۳)[1] وهوالموفق

## د شاګردانو څخه خدمت اخيستل او ممتحينينو ته د رشوت دعوت ورکول

**سوال**: څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې بنده د ګورنمنټ هائي سکول جګناته (ضلع صوابی) کې د عربي معلم دی. بنده ته لاندې مسائل مخې ته شوي

(۱) موږ ټول استاذان چای او د غرمې ډوډی په مکتب کې خورو. د چای پخلي لپاره خس و خاشاک د مکتب په ماشومانو راغواړو. هيڅ هم نه ورکوو. ډوډی لپاره استاذان اجتماعي سودا اخلي او هلکانو ته يې د پخولو لپاره ورکوي. د غرمې له رخصتی يو ساعت وړاندې هغه شاګرد پرېږدي تر څو خپلو استاذانو ته ډوډی راوړي، دا هلک د خپلې خوارۍ بدل نه اخلي. بلکې هغه ته نه ورکول کيږي يو ساعت درس يې هم ضايع شي

(۲) په امتحانو کې د استاذانو ډيوټي پيل شي، ځينې هلکان په هغو ورځو کې باقاعده معاوضه ورکوي: خو بل طرف د ماشومانو درس هم خالي پاتې شي چې کوم استاذان د امتحان اخيستو لپاره راځي نو ددې سکول طلباء د همدې استاذ لپاره د روټي انتظام هم کوي چې مقصد د نقل ازادي

(۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى :الثالث :أخذالمال ليسوّي أمره عند السلطان دفعًا للضرر أوجلبًا للنفع وهوحرام على الآخذفقط.

(رد المحتار ۴:۳۳۸، كتاب القضاء، مطلب في الكلام على الرشوة والهدية)

وي، د امتحان په دوارن کې هغه طالبان لرګي. شيدې او ماسته وغيره هم راوړي. ددې مسئلې وضاحت وکړئ! بينوا توجروا

**المستفتي**: فيروز شاه فاضل حقانيه... ۱۹۹۰ع/۵/۵

**الجواب:** دا کارونه نه روا دي او نه ترې ځان ساتل اسان ديؤ البته چې بره افسران معترض نه وي نو د اعتراض قابل نه دي.(۱) **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: اذا دفع لابنه مالًا فتصرف فيه الابن يكون للأب إلّا دلّت دلالة التمليک.

(رد المحتار ۵: ۲۷۳، کتاب الهبة)

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: يجب على المؤمن أن يعلم ولده الجود والإحسان كمايجب عليه أن يعلّمه التوحيد والإيمان.

(الدر المختار ۵: ۵۶۷، کتاب الهبة)

# باب أموال اليتامى

## د يتيمانو ماشومانو په مال کښې تصرف کول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې باره کښې چې د يتيمانو په مال کښې تصرف کول جائز دی که نه؟ بينوا توجروا

**المستفتي:** مولانا رحيم الله باچا صاحب. اضاخيل ....۸ محرم ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** جائز دي چې کله په دغه تصرف کښې حفاظت مظنون وي[۱] وهو الموفق

## د يتيمو ماشومانو سره شريکي جايداد نه امام ته دوډۍ ورکول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کښې چې يو سړی مړ شو. د هغه ډېر يتيمان پاتې شوي، په خپلو منځو کښې يې څمکه نه ده تقسيم شوې. شريکي حساب دی. ايا دا بڅه خپل

---

۱) وفي الدرالمختار: يقرض القاضی مال الوقف والغائب واللقطة واليتيم ولا يقرض الأب. (الدرالمختار)

وفي رد المحتار: (قوله لايقرض الأب) أی في أصح الروايتين، فتح، قال في البحر: وفي خزانة الفتاوی الصحيح أن الأب كالقاضي.

(ردالمحتار ۳۷۸:۴، ۳۷۹، كتاب القضاء، مطلب للقاضي إقراض مال اليتيم ونحوه)

وقال العلامة القرطبي رحمه الله تعالى: (وَيَسْئَلُونَكَ عَنِ الْيَتٰمٰى قُلْ اِصْلَاحٌ لَّهُمْ خَيْرٌ) لما أذن الله عزوجل في مخالطة الأيتام مع قصد الإصلاح بالنظر إليهم وفيهم كان ذلک دليلا على جواز التصرف في مال اليتيم، تصرف الوصي في البيع والقسمة وغير ذلک على الاطلاق لهذه الاية.

(الجامع لأحكام القرآن ۶۱:۳ سورة البقرة آيت نمبر ۲۲۰)

امام ته په خپله خوښه خواړه وغيره ورکولای شي؟ په داسې حال کې چې د امام سره هم د يوې نيمې مياشتې خرچه موجوده وي او که د دغه پيش امام لپاره يتيم ماشوم ډوډۍ نه وروړي؛ نو د هغه انتظام نور خلک کولای شي؟

يوبل کس د چې ټول زامن يې بالغ دي، صرف دوه نابالغه دي او دا کس وفات شوی. بالغ ماشومان يې خپل امام ته په خوښه ډوډۍ راوړي، د هغوی جايداد هم په خپلو کې تقسيم شوی نه دی، امام ته دا خوراک خوړل څنګه دي؟ بينوا تو جروا

**المستفتي**: مولوي محي الدين ...... ۲۸شوال ۱۳۹۴ھ

**الجواب**: واضحه ده چې د يتيم له مال نه تبرع کول صحيح نه دي. (۱) نه ولي د تبرع کولو مجاز دی او نه يتيم. لهذا مذکوره دواړو صورتونو کې د پيش امام لپاره دا ډوډۍ خوړل روا نه دي. قال الله تعالى: اِنَّ الَّذِيْنَ يَأْكُلُوْنَ اَمْوَالَ الْيَتٰمٰى ظُلْمًا»(۲) أى بغير حق شرعى، الخ وفى الدرالمحتار: وكل من شركاء الملك أجنبى فى الإمتناع عن تصرف مضر فى مال صاحبه، هامش ردالمحتار ۳:۴۶۰ (۳) وهوالموفق

## د يتيم په مال تجارت کولو کې د تاوان او ضمان مسئله

**سوال**: څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې وارث د يتيم په مال کې تجارت کوي او مقصد يې د يتيم مال زياتول وي مګر د فايدې په ځای نقصان وشي. نو دا نقصان د چا په ذمه

---

۱) في الهنديه :في كتاب القاضي :ليس للقاضي ولاية التبرع بمال اليتيم.
(فتاوى هندية ۵:۳۷۹، كتاب الكراهية ،الباب الثلاثون في المتفرقات)

۲) (سورة النساء :آيت نمبر ۱۰)

۳) (الدرالمختار ۳:۳۶۵، كتاب الشركة)

دی؟ بینوا تو جروا

**المستفتي** کلیم الله شاه مسکین پور شریف.... ۷۳ع ۱۵/۳

**الجواب:** په دې باندې ضمان نشته (آداب الأوصياء على هامش جامع الفصولين ۲:۲۳۲)()وهوالموفق

## د يتيم له مال نه د هغه کور پوخ جوړولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې يو سړی وفات شي. د هغه نه يو زوی اودرې لوڼې يتيماني پاتې شوې. د هغوی کور کچه دی. نو پخول يې د هغه له مال نه څنګه دي؟ بينوا توجروا

**المستفتي** مولانا رحيم الله باچا. اضاخيل.... ۱/ جمادی الأول ۱۴۰۳هـ

**الجواب:** که په دغه پوختګی کې د هغو يتيمانانو مفاد وي. سالانه د مرمت خرچه او له ورانېدو نه لرګيو د بربادېدو خطرې نه د خوندي کېدو هيله وي. نو سرپرست ددغه پخولو مجاز دی (۲)

---

۱) في آداب الاوصياء: تصرف في مال اليتيم وربح ثم قال كنت أخذته مضاربة ولي في الربح حصة لم يصدق إلابيبنة، ومثله في العتابية، قال في مجموع النوازل: وإن نوى المال لم يضمن.

(آداب الأوصياء على هامش جامع الفصولين ۲:۲۳۲، فصل في المضاربة، الطبعة الأولى بالمطبعة الأزهرية)

۲) قال العلامة ثناء الله پانی پتی رحمه الله تعالى: (وَيَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الْيَتٰمٰى قُلْ اِصْلَاحٌ لَّهُمْ خَيْرٌ)يعنى إصلاح أموال اليتمى وأمورهم خير فإن رأيتم الإصلاح في المجانبة فذاك (وإن تخالطوهم) ورأيتم إصلاحهم في المخالطة (فإخوانكم)...

....(پاتې حاشيه په بل مخ)

(د حاشیې پاتې برخه) أى إنهم إخوانكم في الدين والنسب والاخوان يعين بعضهم بعضا ويصيب بعضهم من مال بعض على وجه الإصلاح،(وَاللهُ يعلَمُ المُفسِدَ)يعنى الذى يقصد بالمخالطة الخيانة وإفساد مال اليتيم وأكله بغير حق من المصلح الذى يقصد به الإصلاح.

(التفسير المظهرى ۲۷۵:۱،سورة البقرة :ايت نمبر ۲۲۰)

.وفي تفسير القرطبي :(وَيسئَلُونَكَ عَنِ اليتمى قُلِ اِصلَاحٌ لَهم خَير)

الثانيه :لما أذن الله عزوجل في مخالطة الأيتام مع قصد الإصلاح بالنظر إليهم وفيهم كان ذلك دليلاً على جوازالتصرف في مال اليتيم، تصرف الوصي في البيع والقسمه وغير ذلك على الإطلاق لهذه الاية.

(التفسير القرطبي ۶۱:۳، سورة البقرة : ايت نمبر ۲۲۰)

اللہ اللہ

# فتاوی فریدیہ

## نہم جلد

## باب التصویر

# باب التصوير

## مشتهاة تصوير او عكس ته كتل ناجائز دي

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې ټي وي ته كتل د قرآن او حديثو په رڼا كې څنګه دي؟ كله چې په دې كې د ناربنه وو او ښځو تصويرونه هم راځي. ټي وي كې بعضې مولوي صاحبان د اسلام په موضوع تقريرونه كوي. د هغوى عكس ته كتل د ښځو لپاره څنګه دي؟ بينوا تو جروا

**المستفتي** زين الدين، روسك روډ پښاور ۵/ فروري/ ۱۹۸۶ع

**الجواب:** د كوم سړي يا زنانه عكس ته كتل بذات خود ممنوع نه دي. البته له هغوى نه خوند اخيستل چې كله متيقن يا مظنون وي نو بنا بر حديث **كأنما ينظر إليها (رواه ابوداود)**(۱) ممنوع دي. (۲) دا هم چې ليډري دنيا كې له منكراتو نه بچ كېدل مشكل كار دي **وهوالموفق**

---

۱) عن ابن مسعود رضي الله تعالى عنه قال: قال رسول الله ﷺ: لا تباشر المرأة المرأة فتنعتها لزوجها كأنما ينظر إليها.

(سنن أبي داؤد ۲:۲۹۲، كتاب النكاح، باب مايؤمر به من غض البصر)

۲) قال المفتي محمّد شفيع رحمه الله تعالى: وهذا كله مصرح في مذهب المالكية ومؤيد بقواعد مذهبنا، ونصه عن المالكية ماذكره العلامة الدردير في شرحه على مختصر الخليل حيث قال يحرم تصوير حيوان عاقل أوغيره إذا كان كامل الأعضاء إذا كان يدوم وكذا إن لم يدم على الراجح كتصويره من نحو قشر بطيخ ويحرم النظر إليه إذالنظر إلى المحرم لحرام. (جواهر الفقه ۷:۲۶۴، كتاب الحظر والإباحة، تصوير كے ديكهنے كا حكم)

وقال العلامة ابن عابدين: (قوله النظر الى ملاءة ...(پاتې حاشيه په بل مخ)

## تصویر او تمثیل کې فرق

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره کې چې تصوير او تمثيل کې فرق شته يا نشته؟ بينوا توجروا

**المستفتى** عبدالماجد. ټيکسلا.....۷۶ع/۳/۱۷

**الجواب:** قسطلاني په شرح بخاري کې دا فرق غلط ګڼلی. **فليرجع إلى كتاب** البيوع.(١)**وهوالموفق**

## د ضرورت په وخت فوټو ويستل روا دی

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره کې چې شناخت كارډ ته عكس اخيستل څنګه دي؟ بينوا توجروا

**المستفتى** حاجي شيخ احمد. كله ګنګ.....۷۶ع/۹/۱۷

---

(د حاشيې پاتې برخه) الأجنبية بشهوة حرام)...لو كان على المرأة ثياب لابأس بأن يتامل جسدها مالم تكن ملتزقة بها تصف ما تحتها لأنه يكون ناظراً إلى ثيابها وقامتها، فهو كنظره إلى خيمة هى فيها ولو كانت تصف يكون ناظراً إلى أعضائها... فإن نظره بشهوة إلى ملاءتها أوثيابها وتأمله في طول قوامها ونحوه قد يدعوه إلى الكلام معها ثم إلى غيره، ويحتمل أن تكون العلة كون ذلك استمتاعا بما لايحل بلاضرورة.

(ردالمحتار ۵:۲۶۳، كتاب الحظر والإباحة ،فصل في النظر والمس)

١) قال العلامة القسطلاني رحمه الله تعالى: (تماثيل) جمع تمثال بكسر الفوقية وبعد الميم الساكنة مثلثة وهو الصورة والمراد بها صور الحيوان وفي مسلم قال لى مسروق هذه تماثيل كسرى فقلت لاهذه تماثيل مريم...... (پاتې حاشيه په بل مخ)

**الجواب:** د ضرورت په وخت کې عکس اخیستل روا دي (۱) وهوالموفق

## د شناختي لپاره تصوير ويستل جائز دي

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دي مسئلې باره کې (۱) چې د شناخت کارډ لپاره تصوير اخيستل روا دی که ناروا؟

(۲) تصوير د ځان سره ساتل او ورسره لمونځ کول جواز لري که نه؟

(۳) دا حکم د پاکستان په خلکو باندې چليږي. که په واکمنو؟

---

(د حاشيې پاتې برخه)......

(ارشاد الساري ۴۸۱ ،باب عذاب المصورين يوم القيامة ،كتاب اللباس)

وقال العلامة العيني رحمه الله تعالىٰ: قوله تماثيل جمع تمثال بكسر التاء... وقيل لا فرق بين الصورة والتمثال والصحيح أن بينهما فرق وهو أن الصورة تكون في الحيوان والتمثال يكون فيه وفي غيره وقيل التمثال ماله جرم وشخص والصورة ماكان رقماً أو تزويقا في ثوب أوحائط.

(عمدة القاري ۲۲:۷۰، كتاب اللباس ، باب عذاب المصورين يوم القيامة)

۱) في شرح المجلة :الضروريات تبيح المحظورات. (شرح المجلة ۱:۵۵ المادة: ۲۱)

وقال المفتي كفايت الله رحمه الله تعالىٰ: التصوير لايجوز مطلقًا بالقلم وغيره ولكن عند شدة الضرورة جائز لأن الضرورات تبيح المحظورات قاعدة الشريعة مسلمة عند الفقهاء العظام. (كفايت المفتي ۹:۲۴۴ كتاب الحظر والإباحة)

وفي شرح السير الكبير: وإن تحققت الحاجة له إلى استعمال السلاح الذى فيه تمثال فلا بأس باستعماله لأن مواضع الضرورة مستثناة من الحرمة كما في تناول الميتة. (شرح السير الكبير ۴:۱۴۶۳، باب مايكره في دارالحرب ومالايكره)

(۴) څه فایده لري او که نقصان؟

(۵) که جواز لري نو په کومو وجوهاتو سره؟ بینوا توجروا

**المستفتي**: مولوي سرور دین. چارسده..... ۱۲ اپریل ۱۹۷۵ع

**الجواب:** (۱) د ضرورت په وخت تصویر ویستل روا دي خصوصاً چې د نیم بدن وي (۱)

(۲) چې پټ وي نو لمونځ نه مکروه کیږي لکه د نوټ (روپیو) سره لمونځ (۲)

(۳) ترا وسه د پاکستان عوامو ته دا کار اختیاري دی. (۳)

(۴) د سفر په وخت کې فایده لري

(۵) قالوا أمر السلطان إکراه. (۴) وقال الله تعالى: إِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ! (۵)

فَافْهَمْ. وهوالموفق

---

۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ولا يكره لو كانت ...مقطوعة الرأس أو الوجه أو ممحوة عضو لا تعيش بدونه.

(الدر المختار ۱:۴۷۹،۴۸۰، مطلب مكروهات الصلاة)

۲) قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: رجل في يده تصاوير وهو يؤم الناس لاتكره إمامته لأنها مستورة بالثياب... لايكره أن يصلي ومعه صرة أوكيس فيه دنانير أودراهم فيها صور صغار لاستتارها.

(البحر الرائق ۲:۲۷، باب مايفسد الصلوة ومايكره فيها)

۳) (اليوم صار غير اختياري. سيف الله حقاني)

۴) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: أمر السلطان إكراه وإن لم يتوعده.

(ردالمحتار ۵:۹۱، كتاب الإكراه)

۵) (سورة الأنعام آيت: ۱۲۰)

## جيب کې تصوير سره لمونځ کول

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د ذي روح (ژوندي شي) تصوير د ځان سره ساتل حرام دي، که يو سړی ورسره لمونځ کوي او تصوير په جيب کې ساتي؛ نو که ناروا وي، د ضرورت په وخت بيا څه حکم لري. لکه نن سبا چې د حج يا شناخت کارډ لپاره جوړيږي؟ بينوا توجروا

**المستفتي** عبدالحميد، باجوړ کيمپ...... ۹ رمضان ۱۳۹۰هـ

**الجواب:** د حيوان تصوير چې په جيب وغيره کې پټ وي نو لمونځ ورسره کول مکروه نه دي. كما في ردالمحتار: قال في البحر ومفاده كراهة المستبين لا المستتربكيس أوصرة أوثوب آخر وأقره المصنف أو كانت صغيرة. (۱) وهوالموفق

## ډلييز عکسونه اخيستل

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې ډلييز عکسونه چې نن سبا دا يو کار جوړ شوی چې په ګروپ فوټو کېد په ډېر اهتمام سره ځانونه شاملوي. ايا داسې کول يا کېدل او بيا فريم د يادګار په توګه ساتل په محمدي ﷺ شريعت کې جواز لري؟ بينوا توجروا

**المستفتي** ډاکټر سيد بادشاه، حويليان هزاره .... ۷۳،۳،۵

**الجواب:** د جاندار (ژوندي) تصوير ويستل حرام دی. (۲) دې کې هر ډول مرسته کول حرام

---

۱) (الدرالمختار ۴۷۹:۱، باب مايفسد الصلوة ومايكره فيها، مكروهات الصلوة)

۲) عن عبد الله بن مسعود رضي الله تعالى عنه قال سمعت رسول الله ﷺ يقول: أشد الناس عذابًا عند الله المصورون، متفق عليه. (مشكوة المصابيح ۳۸۵، باب التصاوير)
وقال العلامة العيني رحمه الله تعالى: أن تصوير... (پاتي حاشيه په بل مخ)

او ناروا ده.(۱) وهوالموفق

## د قاتل د قصاص پېښه په تصويرونو خپرول

**سوال:** ما يقول العلماء الكرام في المسئلة الآتية: هل يجوز إشاعة واقعة قصاص شاه فيصل وقاتله بالتصاوير كقول البعض بالجواز أم لا؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولوي حميد الرحمن. بنو...۷۵ع/۸/۶۷

**الجواب:** هذه الإشاعة لا مطلوبة ولا ممنوعة وإن كان التصوير الأصلي أو الفرضي من الأمور المحرمة.(۲) وهوالموفق

---

(د حاشيي پاتې برخه) ذي روح حرام وأن مصوره توعد بعذاب شديد.
(عمدة القاري ۱۲:۳۹ باب بيع التصاوير)

۱) قال الله تبارک وتعالى: وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ. (سورة المائدة آيت:۲)

وقال العلامة القاري رحمه الله تعالى: (وكاتبه وشاهديه) قال النووي فيه تصريح بتحريم كتابة المترابيين والشهادة عليهما وبتحريم الإعانة على الباطل.
(مرقاة المفاتيح ۶:۵۹ ،باب الربا)

۲) وعن ابن عباس رضي الله تعالى عنه قال سمعت رسول الله ﷺ يقول: كل مصور في النار يجعل له بكل صورة صورها نفساً فيعذبه في جهنم، وعن ابن عباس رضي الله تعالى عنه قال سمعت رسول الله ﷺ يقول: ...من صوّر صورة عُذِّب وكُلِّف أن ينفخ فيها وليس بنافخ. (مشكوة المصابيح ۳۸۵ ،باب التصاوير)

وقال العلامة العيني رحمه الله تعالى: أن تصوير ذي روح حرام وأن مصوره توعد بعذاب شديد.

(عمدة القاري ۱۲:۳۹ ،باب بيع التصاوير)

## تې وي باندې د خبرونو اورونکي ښځې لېدل ممنوع دي.

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې د شريعت له مخې تې وي باندې خبرونه اورېدل روا دي كه ناروا؟ بينوا توجروا

**المستفتی:** نا معلوم.....۲۷/ذي الحجه۱۳۹۶ھ

**الجواب:** كه خبرونه اورونكي ښځه وي نو كتل ورته ممنوع دي،(۱) د ابو داؤد د حديث له وجې (۲) **وهوالموفق**

## د تمام بدن عكس اخيستلو حكم

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې ايا اسلام كې عكس جوړول جائز دي؟ بينوا توجروا

**المستفتی:** نا معلوم ۱۹۷۵ع/۱۰/۳۱

**الجواب:** اسلام كې د تمام بدن عكس جوړول ممنوع دي، بخاري شريف (۳) **وهوالموفق**

---

۱) عن بريدة رضي الله تعالیٰ عنه قال قال رسول الله ﷺ لعلیّ يا علیّ! لا تتبع النظرة النظرة فإن لک الأولی وليست لک الآخرة.

(مشكوة المصابيح ۲۶۹، باب النظر إلی المخطوبة)

۲) عن ابن مسعود رضي الله تعالیٰ عنه قال قال رسول الله ﷺ: لا تباشر المرأة المرأة لتنعتها لزوجها كأنما ينظر إليها.

(سنن أبي داؤد ۲:۲۹۲، كتاب النكاح، باب مايؤمر به من غضّ البصر)

۳) عن عبد الله رضي الله تعالیٰ عنه قال: سمعت ...(پاتې حاشيه په بل مخ)

## له سيني پورته نيمايي عکس د يادګار لپاره د کېښودلو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د کوم مرشد، استاذ والد او زوی وغيره تصوير له سينې پورته وي، چې شرک هم مقصدنه وي د يادګار لپاره يې ساتل روا دي که نا روا؟ بينوا توجروا

**المستفتي**: سعيد الله ازاد. کوهستاني...... ۱۹۸۵ع/۴/۶

**الجواب:** علماء دا نه خوښوي (۱) البته د شرح تنوير له عبارت نه جواز معلومېږي ۱:۶۰۷ / (۲) والله اعلم

## بې ضرورته د ژوندي تصوير وېستل، په صندق يا بټوه کې يې د ساتلو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د بنده سره د علامه شبير احمد عثماني

---

(د حاشيې پاتې برخه) النبي ﷺ يقول: إنّ أشدّ الناس عذابًا يوم القيمة المصوّرون ... إن رسول الله ﷺ قال إن الذين يصنعون هذه الصور يعذّبون يوم القيمة، يقال لهم أحيوا ما خلقتم. (صحيح البخاري)

وفي حاشيته: قال النووي قال أصحابنا وغيرهم من العلماء: تصوير صورة الحيوان حرام شديد التحريم وهو من الكبائر لأنه متوعد عليه بالوعيد الشديد.
(صحيح البخاري ۲:۸۸۰، كتاب اللباس، باب التصاوير)

۱) قال المفتي كفايت الله رحمه الله تعالى: د پورته نيم بدن چې په هغې کې مخ او سر وي، تصوير جائز نه دی.

(كفايت المفتي، كتاب الحظر والإباحة ۹:۲۳۹، بيسواں باب، فوټو)

۲) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ولا يكره لو كانت... مقطوعة الرأس أوالوجه أو ممحوة عضو لا تعيش بدونه.

(الدر المختار ۱:۴۷۹،۴۸۰، مطلب مكروهات الصلاة)

مرحوم، امير شريعت عطاء الله شاه بخاري مرحوم او د مفكر اسلام مفتي محمود عكسونه دي چې صرف او صرف د ياداشت په توګه مې ساتلي. براه كرم په دې اړه وضاحت وكړئ؟ بينوا توجروا

**المستفتي** عطاء الله زاهد، ناظم جمعية طلبه اسلام،

بونير سوات ١٩٨٥ء/١٢/٢٤

**الجواب:** بې له شرعي ضرورته مكمل تصوير (د ژوندیو شيانو) اخيستل يا خپل ځان سره ايښودل ممنوع دي، (١) البته كه صندق يا بټوه وغيره كې پټ وي نو ممنوع نه دي، (٢) او اخيستل يې په هر حال ممنوع دي، **إلا عند الضرورة** (٣) او نيمايي عكس علماوو نه ده خوښ كړې، خو د شرح تنوير په

---

١) عن عائشة رضي الله تعالى عنها أنها اشترت نمرقة فيها تصاوير... فقال رسول الله ﷺ إن أصحاب هذه الصور يعذّبون ويقال لهم أحيوا ما خلقتم، ثم قال إن البيت الذى فيه الصور لا تدخله الملائكة.

قال العلامة النووي رحمه الله تعالى: وهذه الأحاديث صريحة في تحريم تصوير الحيوان وأنه غليظ التحريم.

(صحيح المسلم ٢٠١:٢، كتاب اللباس والزينة، باب تحريم تصوير صورة الحيوان)

٢) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله لا المستتر بكيس أو صرة) بأن صلى ومعه صرة أو كيس فيه دنانير أودراهم فيها صور صغار فلا تكره لاستتارها، بحر، ومقتضاه أنها لو كانت مكشوفة تكره الصلاة مع أن الصغيرة لا تكره الصلوة معها كما يأتي، لكن يكره كراهة تنزيه جعل الصورة في البيت نهر... ولو كانت تمنع دخول الملائكة كره إبقاء ها في البيت. (ردالمحتار ٤٧٩:١، مطلب مكروهات الصلوة)

٣) قال المفتي كفايت الله رحمه الله تعالى: التصوير لا يجوز مطلقًا بالقلم وغيره ولكن عند شدة الضرورة جائز لأن الضرورات تبيح المحظورات قاعدة الشريعة مسلمة عند الفقهاء العظام. (كفايت المفتي ٢٤٣:٩، كتاب الحظر والإباحة)

عبارت کې اجازت معلومیږي (۱) وهوالموفق

## د حیوان تصویر والا کور کې لمونځ کول مکروه تحریمي دي.

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې زموږ حجره کې تې وي ایښې، هلته موږ د عزر په وخت کې لمونځ کوو او هیڅ تصویر هم پکې نشته ایا په دې کې لمونځ درست دی؟ او کومه کمره کې چې تصویرونه ځوړند وي هلته د لمانځه څه حکم دی؟ بینوا توجروا

**المستفتي** حاجي مسلم خان، تنګی چارسده......۱۴۰۴ھ/۱۱/۷

**الجواب:** تې وي یوه اله ده، بذات خودنه حسن ده او نه قبیح ده، البته د خارجي عوارضو له وجې حسن یا قبیح ګرځي، (۲) او کوم ځای چې د حیوان تصویرونه وي نو هلته لمونځ کول مکروه تحریمي دي إلا أن تكون خلف المصلى (۳)

---

۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ولايكره لوكانت... مقطوعة الرأس أوالوجه أوممحوة عضو لا تعيش بدونه.
(الدرالمختار ۱:۴۷۹، مطلب مكروهات الصلوة)

۲) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ومن ذلک ضرب النوبة للتفاخر فلو للتنبيه فلا بأس به. (الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: وهذا يفيد أن آلة اللهو ليست محرمة لعينها بل لقصد اللهو منها، اما من سامعها أو من المشتغل بها وبه تشعر الإضافة، ألا ترى أن ضرب تلك الآلة بعينها حل تارة وحرم أخرى باختلاف النية بسماعها والأمور بمقاصدها.
(ردالمحتار ۵:۲۴۷، كتاب الحظر والإباحة، قبيل فصل في اللبس)

۳) قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: وكره أن يكون فوق رأسه أوبين يديه أو بحدائه صورة... ولم يذكر ما إذا كانت خلفه للاختلاف، ففي رواية لا يكره.
(البحر الرائق ۲:۲۷، باب ما يفسد الصلوة ومايكره فيها)

نوټ: تصویر او عکس ته کتل او د عکس اواز اورېدل بذات خود مباح دي، البته د خارجي عوارضو له امله حرام شوي. **وهوالموفق**

## د بې جان شيانو تصوير وېستل او داسې ځايونو کې د لمانځه حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د بې جانه شيانو عکسونه وېستل څنګه دي؟ که په کمره کې وي؛ نو هلته لمونځ کېږي که نه کېږي؟ بينوا توجروا

نا معلوم.........۷۸ع/۱۰/۳۱

**الجواب:** نه دا ډول تصوير جوړول مکروه دي او نه دا ډول کمره کې لمونځ کول مکروه دي. (بخاري شريف)[۱] (هنديه)[۲] **وهوالموفق**

## په ابتدائيه ښوونځيو (سکولونو) کې د تصويرونو کتابونو لوستلو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې زموږ دولتي ابتدائي مکتبونو د نصاب کتابونه له تصويرنو ډک وي، ددې نه د ماشومانو ذهنونو د متاثرکېدو ډېره زيانه خطره ده

---

۱) عن سعيد بن أبي الحسن قال كنت عند ابن عباس إذ أتاه رجل فقال يا ابن عباس إني إنسان، إنما معيشتي من صنعة يدي وإني أصنع هذه التصاوير، فقال ابن عباس لا أحدثک إلا ما سمعت رسول الله ﷺ يقول سمعته، يقول: من صوّر صورة فإن الله معذّبه حتى ينفخ فيها الروح وليس بنافخ فيها أبداً فربا الرجل ربوة شديدة واصفرّ وجهه، فقال ويحک إن أبيت إلا أن تصنع فعليک بهذا الشجر وكل شيى ليس فيه روح. (صحيح البخاري ۱:۲۹۶، كتاب البيوع، باب بيع التصاوير التي ليس فيها روح)

۲) في الهندية: ولا يكره تمثال غير ذي الروح كذا في النهاية.
(فتاوى هندية ۱:۱۰۷، الباب السابع فيما يفسد الصلوة ومايكره فيها، الفصل الثاني)

له دغو كتابونو پرته ددې معيار نور كتابونه نشته. لهذا ګزارش دا دی چې دغه كتابونه لوستل څنګه دي؟ بينوا توجروا

**المستفتي**: نا معلوم.........

**الجواب**: د دغو كتابونو د اخيستلو وروسته د تصويرونو پاڼې لرې كول ضروري دي (۱) او د كومې پاڼې چې په څه برخه باندې تصوير او څه باندې مضمون وي نو په هغه كاغذ وغيره لګول اسانه تدبير سره دي محفوظ وساتي **وهوالموفق**

## سركاري د دفترونو كې د قائد اعظم تصوير ځوړندېدو سره د لمانځه حكم

**سوال**: څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې سركاري دفترونو كې د قائد اعظم تصويرونه ځړېدلي، ايا هلته هم د الله د رحمت فرښتې نه راځي. او هلته لمونځ كيږي

---

۱) قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: وفي الخلاصة ولو رأى صورة في بيت غيره يجوز له محوها وتغييرها.

(البحر الرائق ۲۹:۲، باب مايفسد الصلوة ومايكره فيها)

وعن أبي سعيد الخدري رضي الله تعالى عنه عن رسول الله ﷺ قال: من رأى منكم منكراً فليغيره بيده فإن لم يستطع فبلسانه...الحديث.

(مشكوة المصابيح ۴۳۶، باب الأمر بالمعروف)

وفي المرقاة: (عن عائشة رضي الله تعالى عنها أن النبي ﷺ لم يكن يترك في بيته شيئا فيه تصاليب) أى تصاوير (إلا نقضه) أى أزال ذلك الشيئ أو قطعه والنقض في الأصل إبطال أجزاء البناء.

(مرقاة المفاتيح ۳۲۷:۸، باب التصاوير)

که نه کیږي؟ بینوا توجروا

**المستفتی**: نا معلوم...... ۷۸ع/۱۰/۳۱

**الجواب**: که دا فوټو د ټول بدن وي یا د هغه اعضاوو وي چې انسان پرې ژوندی پاتې کېدی شي، بیا هلته لمونځ کول مکروه دي، (۱) البته د نه کولو څخه مکروه لمونځ زر ځله غوره دی (۲) **وهوالموفق**

## تصویرونو والا کمرې ته د رحمت پرښتې نه راځي

**سوال**: څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې ما د لويو لويو علماوو نه اورېدلي چې که د چا په کمره یا کور کې د چا تصوير لګېدلی وي که هغه ژوندی وي یا وفات شوی وي، ولي الله هم وي نو هغه کور ته د رحمت پرښتې نه راځي ایا دا صحیح ده؟ بینوا توجروا

**المستفتی**: نا معلوم... ۷۸ع/۱۰/۳۱

**الجواب**: دا د حدیث مضمون دی (۳) **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالیٰ: ويكره لبس ثوب فيه تماثيل ذي روح... ولا يكره لوكانت... مقطوعة الرأس أوالوجه أو ممحوة عضو لا تعيش بدونه أو لغير ذي روح لايكره.

(الدرالمختار ۱:۴۷۹/۴۸۰ ،كتاب الصلوة، مطلب مكروهات الصلوة)

۲) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالیٰ: وكره تحريما... صلوة... مع شروق إلا العوام فلا يمنعون من فعلها لأنهم يتركونها والآداء الجائز عند البعض أولى من الترک.

(الدرالمختار ۱:۲۷۲ ،كتاب الصلوة، مطلب يشترط العلم بدخول الوقت)

۳) عن أبي طلحة رضي الله تعالیٰ عنه قال قال النبي ﷺ: لا تدخل الملائكة بيتا فيه كلب ولا تصاوير، متفق عليه.

(مشكوة المصابيح ۳۸۵، باب التصاوير)

## د اخبارونو لپاره روزانه د علماء کرامو عکسونه اخیستلو حکم

سوال څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې اخبارونو کې روزانه د علماء کرامو عکسونه راځي ایا دا جائز دي؟ بینوا توجروا

المتسفتي: نا معلوم......۷۸ع/۱۰/۳۱

**الجواب:** د علماوو عکسونه اخیستل ممنوع دي (۱) **وهوالموفق**

## د کوم قائد يا ولي عکسونه دفتر کې ځوړندول نا روا دي

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې په شریعت مطهره کې د عکسونو اخیستل څنګه دي؟ دفتر یا کور کې بې ځوړندول څنګه دي؟ ددې سره لمونځ روا دی که ناروا؟ لمونځ ورسره کیږي که نه کیږي؟ شناختي کارډ وغیره لپاره اخیستل خو به ناروا نه وي؟ دا رنګه د مشر یا ولي عکس ایښودل جائز دي که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي مولوي ګل شیر، پشاور ۱۲/صفر المظفر ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** د ژوندي شيانو (حیواناتو وغیره) عکسونو اخیستل عکاسي حرامه ده، **لورود اللعن علیه** (۲) که دا عکس د کوم مشر وي یا د عامو خلکو وي، که د عبرت لپاره وي يا نورو مقصدونو

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: وظاهر كلام النووي في شرح مسلم الإجماع على تحريم تصوير الحيوان، وقال: وسواء صنعه لما يمتهن أولغيره، فصنعته حرام بكل حال، لأن فيه مضاهاة لخلق الله.

(ردالمحتار ۱:۴۷۹، مطلب مكروهات الصلوة)

۲) عن عبد الله رضي الله تعالى عنه قال سمعت النبي ﷺ يقول: إن أشد الناس عذاباً يوم القيمة المصوّرون... إن رسول الله ﷺ قال: إن الذين يصنعون هذه الصور يعذبون يوم القيمة يقال لهم أحيوا ما خلقتم. (صحيح البخاري)...(ياتي حاشيه په بل مخ)

لپاره وي البته د ضرورت په وخت کې به ضرورتمند مجرم نه وي، (۱) او څرنګه چې پاسپورټ او شناختي کارډ ته ضرورت دی. (۲) غالباً نیمایي قطعه عکس وي، لهذا ددې اجازت شته. او نوټ غالباً پټ هم وي لهذا په دې کې حرج نشته. (۳)

وهوالموفق

## ټي وي باندې د قران تلاوت، وعظ اودخبرونو ویونکود ښکلونوکتلو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې يو قاري ټي وي

---

(د حاشيې پاتې برخه) وفي حاشيته: قال النووي: قال أصحابنا وغيرهم من العلماء تصوير صورة الحيوان حرام شديد التحريم وهو من الكبائر لأنه متوعد عليه بالوعيد الشديد.

(صحيح البخاري ۲:۸۸۰، كتاب اللباس، باب التصاوير)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: وظاهر كلام النووي في شرح مسلم الإجماع على تحريم تصوير الحيوان... فصنعته حرام بكل حال لأن فيه مضاهاة لخلق الله. (ردالمحتار ۱:۴۷۹، مطلب مكروهات الصلوة)

۱) في شرح المجلة: الضرورات تبيح المحظورات.
(شرح المجلة ۱:۵۵، المادة: ۲۱)

۲) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: أمرالسطان إكراه وإن لم يتوعده.
(ردالمحتار ۵:۹۱، كتاب الإكراه)

۳) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ولا يكره لوكانت تحت قدميه أو في يده، عبارة الشمني بدنه لأنها مستورة بثيابه ومفاده كراهة المستبين لا المستتر بكيس أو صرة أو ثوب آخر أو مقطوعة الرأس أو الوجه أوممحوة عضو لا تعيش بدونه.
(ردالمحتار ۱:۴۷۹، مطلب مكروهات الصلوة)

باندې تلاوت کوي یا یو واعظ وعظ کوي یا خبرونه اوروي: نو د هغو شکلونه لیدل څه حکم لري؟ بینوا توجروا

**المستفتي**: قاضي فیض القادر، دته خیل، میران شاه.....۸۸ع/۶/۷

**الجواب**: تصویرونو او بوتانو ته کتل بذات خود ممنوع نه دي. والله اعلم

## کتابونو او اخبارونو کې پټ تصویرونه د پرښتو داخلیدو لپاره مانع نه دي

**سوال**: څه فرمایي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې تصویرونه او عکسونه ساتل حرام دي، حدیث شریف کې دي چې د چا په کور کې تصویر وي هغه ته د رحمت پرښتې نه ورځي، په دې ضمن کې هغه درسي کتابونه چې د مجبورۍ له وجې کور کې ایښې وي یا اخبارونه او رسالې چې ښکاره نه بلکې صندوق یا الماري کې بندې وي د هغو لپاره هم همدا حکم دی که نه؟ بینوا توجروا

**المستفتي**: محمد رفیق، تحصیل وضلع راولپنډي.....۷۶ع/۲۵/۷

**الجواب**: چې تصویرونه صندوق وغیره کې پټ وي، ددې وجې د پرښتو دخول نه بندیږي (۱) **وهوالموفق**

## د حکومت ارډر شناختي کارډ لپاره عکسونه اخستل اکراه کې داخل دي

**سوال**: څه فرمایي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د حکومت د ارډر

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (لا المستتر بكيس أوصرّة) بأن صلّى ومعه صرّة أوكيس فيه دنانيرأو دراهم فيها صورصغار فلاتكره لاستتارها، بحر، ومقتضاه أنها لوكانت مكشوفة تكره الصلاة مع أن الصغيرة لاتكره الصلاة معهاكما يأتي، لكن يكره كراهة تنزيه جعل الصورة في البيت، نهر...فعدم دخول الملائكة إنما هو حيث كانت الصورة معظمة.

(ردالمحتار ۱:۴۷۹، باب ما يفسد الصلاة وما يكره فيها، مطلب مكروهات الصلاة)

مطابق شناختي كارډ لپاره عكسونه اخيستل روا دي كه ناروا؟ بينوا توجروا

**المستفتي**: عبدالحليم چلاس، كوهستان..... ۱۴۰۰ھ /۴/ ۲۲

**الجواب**: د حكومت اډر په اكراه كې داخل دى. (۱) په دې بنا د تمام بدن تصوير مرخص دى. (۲) او د نيمايي تنې تصوير جوړول د شرح التنوير د عبارت په بنا په هر حال مرخص دى (۳) **وهوالموفق**

## دسرود آلات او د بزرګانو او ليډرانو تصوير ماتونكي باندې د ضمان حكم

**سوال**: څه فرمايي كرام دې مسئلې باره كې چې د بزرګانو او ليډرانو تصويرونه ماتول او سوځول او هم د سرود آلات ماتول د ضمان موجب دي كه نه؟ بينوا توجروا

**المستفتي**: شيرباد شاه ۲۹ ربيع الاول ۱۴۰۵ھ

**الجواب**: د مفتى به قول پر بنا تصوير ضائع كونكى او د سرود آلات ماتونكي با ندې ضمان نشته، **كما في شرح التنوير على هامش رد المحتار ۵: ۱۸۵، وقالا لايضمن**

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: أمر السلطان إكراه وإن لم يتوعده.
(رد المحتار ۵: ۹۱، كتاب الإكراه)

۲) في شرح المجلة: الضرورات تبيح المحظورات.
(شرح المجلة لسليم رستم باز رحمه الله تعالى ۲۹، المادة: ۲۱)

۳) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ولايكره لو كانت..... مقطوعة الرأس أو الوجه أو ممحوة عضو لاتعيش بدونه.
(الدر المختار ۴۷۹، ۴۸۰، مطلب مكروهات الصلاة)

فلا يصح بيعها وعليه الفتوى[1] وهو الموفق.

---

١) (الدر المختار ٥: ١٤٨، كتاب الغضب، فصل في مسائل متفرقه)

وفي الهندية: إذا كسر بربط إنسان أو طنبوره أو دفه أو ما أشبه ذلك من الآلات الملاهي فعلى قولهما لاضمان وعلى قول أبي حنيفة رحمه الله تعالى يجب الضمان.... قال القاضي صدر الإسلام: الفتوى على قولهما لكثرة الفساد فيما بين الناس.

(فتاوى هندية ٥: ١٣١، كتاب الغصب، الباب الرابع في كيفية الضمان)

اللہ اللہ

# فتاوی فریدیہ

## نهم جلد

## باب الغناء ورسومات النكاح

الله الله

بسم الله الرحمٰن الرحیم

قال رسول الله صلی الله علیہ وسلم

الغناء ینبت النفاق فی

القلب کما ینبت الماء الزرع.

(رواہ البیہقی)

# باب الغناء ورسومات النکاح

## د فقهي او احاديثو له مخې مزامير حرام دي

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام ددې مسئلې په باره کې چې ډول. راډيو. ټيپ او وغيره په شريعت کې تر کومه حده بند دي؟ **بينواتوجروا**

المستفتي: جناب ساجد خان ماسټر، مانسهره... ۲۵ / جولائي ۱۹۷۹ ع

**الجواب:** د حديثو (۱) او فقهي روايتونو له مخې (۲) دا مزامير حرام دي **فقط**

---

۱) عن أبي عامر أو أبي مالک الأشعري رضي الله تعالىٰ عنه قال سمعت رسول الله ﷺ يقول: ليکونن من أمتي أقوام يستعجلون الخز والحرير والخمر والمعازف.

مشکوة المصابيح ۴۵۶، باب البکاء والخوف)

وعن عمران بن حصين رضي الله تعالىٰ أن رسول الله ﷺ قال: في هذه الأمة خسف ومسخ وقذف، فقال رجل من المسلمين ومتى ذلک؟ قال إذا ظهرت القيان والمعازف وشربت الخمور.

(جامع الترمذي ۲: ۴۴، باب ماجاء في أشراط الساعة، أبواب الفتن عن رسول الله ﷺ)

۲) قال العلامة ابن نجيم: وفي المعراج: الملاهي نوعان محرم وهو الآلات المطربة من غير الغناء کالمزمارسواء کان من عود أوقصب کالشبابة أوغيره کالعود والطنبور لما روي أبو أمامة أنه عليه الصلوة والسلام قال: ان الله بعثني رحمة للعلمين وأمرني بمحق المعازف والمزامير.

(البحر الرائق ۷: ۸۸، کتاب الشهادة، باب من تقبل شهادته ومن لاتقبل)

وقال العلامة الحصکفي: أن الملاهي کلهاحرام ويدخل عليهم بلا إذنهم لإنکار المنکر، قال ابن مسعود: صوت اللهووالغناء ينبت النفاق.... (پاتې حاشيه په بل مخ)

## د واده او خوشحالۍ په وخت د دریا او مزامیر غږولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د ډول غږول، د سندرو غږول او د موسيقي نور آلات، کوم چې زياتره عياش خلک د ودونو او نورو خوشحاليو په موقع باندې استعمالوي او هغه روا ګڼي او د هغو د جواز لپاره وايي چې د چشتي کورنۍ صوفيان او د دين بزرګانو دا د سماع په وخت کې غږولي دي او کوم کس چې په همداسې موقع باندې ډول ونه غږوي بلکې له دې منعه وکړي نو په داسې کس باندې لعن طعن کيږي، په دې باره کې مدلل جواب وليکئ؟ **بينواتوجروا**

المستفتي: حوالدار، وزيرستان ۱۹۷۶ع/۶/۵.

**الجواب:** واضحه دې وي چې د واده په وخت اګر که د دف غږول روا دي، ليکن دا جواز هغه وخت دی کله چې د شرائطو رعايت وکړی شي. **کما في ردالمحتار۵ ۳۰۷ قبيل فصل في اللبس** (۱) د موسيقي استعمال په هر حال ناروا دی، **قال الله تعالى: ومن الناس من يشتري لهو الحديث** (۲) **قال الحسن: الغناء والمزامير والمعازف على القرن، فليراجع الى**

---

(د حاشيې پاتې برخه) في القلب كماينبت الماء النبات، قلت: وفي البزازية استماع صوت الملاهي كضرب قصب ونحوه حرام.

(الدرالمختار ۵: ۲۴۵، ۲۴۶ كتاب الحظر والإباحة)

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: عن الحسن لابأس بالدف في العرس ليشتهر، وفي السراجية: هذا إذا لم يكن له جلاجل ولم يضرب على هيئة التطرب.

(ردالمحتار ۵: ۲۴۷، كتاب الحظر والإباحة، قبيل فصل في اللبس)

۲) (سورة لقمان، آيت: ۶)

كمالين [۱] وغيره، وفى صحيح البخاري : ليكونن من أمتي اقوام يستحلون الخز والحرير والمعازف، مشكوة ۴۷۰ [۲] وفى الدر المختار: وفى البزازية: استماع صوت الملاهي كضرب قصب ونحوه حرام لقوله عَلَيْهِ السَّلَامُ: استماع الملاهي معصية والجلوس عليها فسق والتلذذ بها كفر (بالنعمة)، هامش رد المحتار ۵ : ۳۰۶ [۳].

او د مشائخو څخه د ثبوت په وخت نقل كول به په علاج بالمحرم يا په غلبه حال باندې حمل كول ضروري دي [۴] وهوالموفق

## په كور كې د موسيقى آلات ساتل او د ځينو صوفيانو په عمل سره د هغو د اوريدلو په جواز باندې استدلال كول

**سوال:** څه فرمايي علماء كرام دې مسئلې باره كې چې زما زوى يوه آله اخيستې په هغې كې چې يو ښتن ووهي نو د ستار آواز ترې راځي، چې بله ښتن ووهي نو د بانسري آواز ترې راځي. ما هلك ته وويل چې په بوه كور كې قرآن پاک او ټنګ ټكور دواړه نشي چلېدلی، يوه صاحب وويل چې صوفيانو په ځينو

---

۱) حاشيه جلالين ۲ : ۳۹۲، سورة لقمان)

۲) مشكوة المصابيح ۴۵۶، باب البكاء والخوف)

۳) الدر المختار ۵ : ۲۴۶، كتاب الحظر والإباحة)

۴) في الفتاوى التاتارخانية :ومن أباحه من المشائخ الصوفية :فلمن تخلّى عن اللهو وتحلّى بالتقوى واحتاج إلى ذلك احتياج المريض إلى الدواء ،وله شرائط ،أحدهم :أن لا يكون فيهم أمرد ،والثاني :أن لايكون جمعيتهم إلامن جنسهم ،ليس فيهم فاسق ولاأهل الدنيا ولا امرأة، والثالثة:أن تكون نية القوّال الإخلاص لا أخذالأجر والطعام ،والرابعة :أن لايجتمعوا لأجل طعام أوفتوح ،والخامسة :أن لايقوموا إلامغلوبين ،والسادسة :أن لايظهرون وجداً إلاصادقين.
(فتاوى تاتارخانية ۱۸ : ۱۸۸، كتاب الكراهية ،الفصل الثامن عشر في الغناء واللهو)

مواقعو کې موسيقي ته روا ويلي. ستاسو راهنمائي زما لپاره کافي کيږي، په داسې حالاتو کې کله چې زړه مي پريشانه وي، په ذهن باندې بوج وي، د موسيقي آواز آوريدل شرعًا روا دي او که نه؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي: محمد شاه پشاور يونيورستي ... ۲۷/ جمادی الثاني ۱۴۰۴ هـ

**الجواب:** ته همدا آله د کوم غير مسلم په وکالت سره خرڅه کړه (۱)، او قيمت يې په خپلو ضرورياتو کې مصرف کړه او يا دا اله غير مسلم ته د هغو په غير مقدسو ورځو کې بخشش کړه، (۲) باقي فقهاء کرامو په «خلاصة الفتاوی او نورو کې ليکلي چې په کور کې د موسيقي د آلاتو ساتل ناروا دي. اګر که استعمالولی يې هم نشي (۳) او کومو صوفيانو چې سرود ته روا ويلي نو دا د ضرورت په وخت کې د شراب څښلو په شان دي کوم ته چې علاج بالمحرم ويل کيږي (۴) **والله اعلم**

---

۱) قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالىٰ: (قوله ولو أمر ذميا بشراء خمر أو بيعها صح) أي التوكيل وبيع الوكيل وشراؤه عند أبي حنيفة، وقالا لايجوز على المسلم وعلى هذا الخلاف الخنزير، وعلى هذا توكيل المحرم غيره ببيع صيده.

(البحر الرائق ۶: ۸۴، باب البيع الفاسد)

۲) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالىٰ: والإعطاء بإسم النيروز والمهرجان لايجوز، أى الهدايا باسم هذين اليومين حرام، وإن قصد تعظيمه كما يعظمه المشركون يكفر.

(الدر المختار ۶: ۵۳۲، مسائل شتّى، قبيل كتاب الفرائض)

۳) وفي الخلاصة: ولو أمسك في بيته شيئًا من المعازف والملاهي كره ويأثم وإن كان لا يستعملها لأن إمساك هذه الأشياء يكون للهو عادةً.

(خلاصة الفتاوى ۴: ۳۳۸، كتاب الكراهية، الفصل الثاني في العبادات)

۴) في الخيرية: وإن كان سماع غناء فهو حرام لأن.... (باتي حاشيه په بل مخ)

## د نیکو خلکو په مزارونو باندې د عرس او قوالی محفلونه جوړولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې ځينې خلک چې د چشتيه سلسلې پيروان دي، د نيکو خلکو په مزارونو باندې د کلني عرس اهتمام کوي، په دې موقع خلک ډول او باجې غږوي او ګډيږي، هلته خلک قوالي (سندرې) وايي، د هغو د ليدلو لپاره ښځې هم راځي. دا خلک چرس په ښکاره څښي او هغې ته د ملنګانو نشه وايي او هغه روا ګڼي، همدارنګه دا خلک د لمانځه او روژې په باره کې خاص اهتمام نه کوي، د دوی متعلق څه حکم دی؟ بينوا توجروا.

المستفتي: حاجی مسلم خان، تنګي، چارسده..... ۱۴۰۴ هـ

**الجواب:** دا عرس، قوالي (سندرې) او سرود ټول حرام دي (۱) په هغو کې شرکت

---

(د حاشيې باتي برخه) التغني واستماع الغناء حرام أجمع العلماء وبالغوا فيه، ومن أباحه من المشائخ الصوفية فلمن تخلّى عن الهوى وتحلّى بالتقوى واحتاج إلى ذلك احتياج المريض إلى الدواء، وله شرائط، أحدها: أن لايكون فيهم أمرد، والثاني: أن لايكون جميعهم إلامن جنسهم، ليس فيهم فاسق ولا اهل الدنيا ولاامرأة، والثالث: أن تكون نيه القوّال الإخلاص لا أخذالأجر والطعام، والرابع: أن لايجتمعوا لأجل طعام أوفتوح، والخامس: أن لايقومون إلامغلوبين، والسادس: أن لايظهرون وجداً إلا صادقين.... والحاصل أنه لارخصة في باب السماع في زماننالأن جنيداً رحمه الله تعالى تاب عن السماع في زمانه.

(فتاوى خيرية على هامش تنقيح الحامدية ۲: ۲۷۸، كتاب الكراهية والاستحسان)

۱) وفي التاتارخانية: وفي اليتيمة: سئل الحلواني عمن سمّوا أنفسهم بالصوفية، فاختصوا بنوع لبسة، واشتغلوا باللهو والرقص وادعوا لأنفسهم.. (باتي حاشيه په بل مخ)

او هغوته کتل تول شرعي ممنوعات دي [1]، **وهوالموفق**

## د اشعارو ویلو او نعت خوانی حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې د سندرو او باجو او ترنم په انداز باندې چې کومه شاعري او نعت خواني ده. په دې باره کې موخبر کړئ؟ **بينوا توجروا**

المستفتي: نامعلوم متعلم حقانيه... ۸ جمادى الثانى ۱۴۰۴ هـ

**الجواب:** که چیرته مضمون درست وي او نعت خوان مشتهي نه وي او لموزيخ کوونکو ته تکليف نه وي؛ نو روا دي که نه ناجائز دي [2]، **وهوالموفق**

---

(د حاشيې پاتې برخه) منزلة؟ فقال: افتروا على الله كذبًا....ويكره اللعب والغناء وعمل الشعوذة والنظر إلى ذلك....وإن كان سماع غناء فهوحرام، لأن التغني واستماع التغني حرام أجمع عليه العلماء وبالغوافيه.

(الفتاوى التاتارخانية۱۸: ۱۸۷، ۱۸۸، كتاب الاستحسان والكراهية، الفصل الثامن عشر في الغناء واللهو)

۱) قال الله تبارک وتعالیٰ: وَإِذَا رَأَيْتَ الَّذِينَ يَخُوضُونَ فِي آيَاتِنَا فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ حَتَّىٰ يَخُوضُوا فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِ. (سورة الإنعام، آيت: ۶۸)

وقال العلامة القرطبي رحمه الله تعالىٰ: فكل من جلس معصية ولم ينكر عليهم يكون معهم في الوزر سواء، وينبغي أن ينكرعليهم إذا تكلموا بالمعصية وعملوا بها فإن لم يقدر على النكير عليهم فينبغي أن يقوم عنهم حتى لايكون من أهل هذه الآية.

(تفسير القرطبي ۵: ۳۹۷ آيت: ۱۴۰)

۲) في الهندية: ولو كان في الشعر حكم أوعبر أو فقه لايكره كذا في التبيين، وإنشاد ما هو مباح من الأشعار لابأس به، وإذاكان في الشعر صفة.... (پاتې حاشيه په بل مخ)

## له ناروا او خلاف شرع محفلونو څخه د ځان ساتلو عهد کول عبادت دی

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دي مسئلې باره کې چې د لمانځه په وخت د ول

---

(د حاشيي پاتي برخه) المرأة إن كانت امرأة بعينها وهي حية يكره وإن كانت ميتة لايكره. (فتاوى هندية٥: ٣٥١، كتاب الكراهية، الباب السابع عشر في الغناء واللهو)

وقال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: وفي فتح القدير: التغني المحرم هوماكان في اللفظ مالايحل كصفة الذكر والمرأة المعينة الحية.... سئل محمدبن شجاع عن الذي يترنم مع نفسه؟ قال: لايقدح في شهادته.... ونقل البزازي في المناقب الإجماع على حرمة الغناء إذا كان على آلة كالعود.

(البحرالرائق ٧: ٨٨، كتاب الشهادة: باب من تقبل شهادته ومن لاتقبل)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله اوشعرالخ).... من آفات اللسان الشعر، سئل عنه ﷺ؟ فقال: كلام حسنه حسن وقبيحه قبيح.... ويحرم هجو مسلم ولو بما فيه.... فما كان منه في الوعظ والحكم وذكر نعم الله تعالى وصفة المتقين فهوحسن، وماكان من ذكر الأطفال والأزمان والأمم فمباح، وماكان من هجو وسخف فحرام، وماكان من وصف الخدود والقدو والشعور فمكروه.... وقدأخرج الإمام الطحاوي في شرح مجمع الآثار أنه ﷺ نهى أن تنشد الأشعار في المسجد.... ثم وفق بينه وبين ماورد أنه ﷺ وضع لحسان منبراً ينشد عليه الشعر بحمل الأول على ماكانت قريش تهجوه به ونحوه مما فيه ضرر.

(ردالمحتار ١: ٤٨٨ مطلب مكروهات الصلوة، مطلب في إنشاد الشعر)

وقال العلامة أشرف علي التهانوي رحمه الله تعالى: د کوم نعت مضمون چې د شرع خلاف نه وي په جومات او غیرجومات دواړو کې يې ويل جائز دي او د کوم نعت مضمون چې د شرع خلاف وي هغه په دواړو ځايونو کې ناجائز دی، دغسې که څه مانع امر د خارج نه وي بيا هم ناجائز دی، لکه نظم د موسيقی په قواعدو سره ويل يا د نعت خوان مشتهي کيدل.

(امدادالفتاوی ٦: ١٩٧، كتاب العقائد والكلام، عنوان اشعار نعتيه درمسجد خواندن)

وهل کیدلو، مولوي صاحب خلکو ته اعلان وکړ چې په داسې محفلونو کې له ګډون کولو څخه د ځان ساتلو عهد کول یکار دی ترڅو لمونځ کوونکو ته تکلیف نه وي، لهذا ځینو خلکو عهد وکړ، یوه کس وویل چې له ګډا او سندرو څخه د ځان ساتلو عهد کول سنګین جرم دی، آیا مولوي صاحب مجرم دی که معترض؟ بینوا توجروا

المستفتي نامعلوم.......

**الجواب:** له داسې ناروا او خلاف شرع محفلونو څخه د ځان ساتلو عهد کول عبادت دی (۱) ځکه چې دا له معصیت څخه د ځان ساتل دي. لهذا مولوي صاحب مجرم نه دی. بلکې معترض کوم ناخبره معلومیږي. **وهوالموفق**

## په واده کې سهره تړل او ډول غږول

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې زمونږ په سیمه (علاقه) کې یو واده و، په کوم کې چې زوم (د واده زلمي) سهره تړلې وه، د کومې له وجې چې د هغه مخ هم معلومیده. او له هغه سره ډول او باجې هم وي، آیا په محمدي ﷺ شریعت کې داسې نکاح صحیح ده؟ **بینوا توجروا**

المستفتي: محمد یعقوب خان ایوبیه خانپور .. ۱۳/ستمبر ۱۹۶۹ء

---

۱) قال الله تبارک وتعالىٰ: وَقَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِي الْكِتٰبِ أَنْ إِذَا سَمِعْتُمْ اٰيٰتِ اللّٰهِ يُكْفَرُ بِهَا وَيُسْتَهْزَأُ بِهَا فَلَا تَقْعُدُوا مَعَهُمْ حَتّٰى يَخُوضُوا فِي حَدِيثٍ غَيْرِهٖٓ ۖ إِنَّكُمْ إِذًا مِّثْلُهُمْ.
(سورة النساء، آیت: ۱۴۰، پاره: ۵)

وقال العلامة القرطبی رحمه الله تعالىٰ: فكل من جلس في مجلس معصية ولم ينكر عليهم يكون معهم في الوزر سواء، وينبغي أن ينكر عليهم إذا تكلموا بالمعصية وعملوا بها فان لم يقدر على النكير عليهم فينبغي أن يقوم عنهم حتّى لايكون من اهل هذه الآية.
(التفسير القرطبی ۵: ۳۹۷، آیت: ۱۴۰)

**الجواب:** سهره تړل فضول خرچي او اسراف دی، (۱) د هر مسلمان لپاره ضروري ده چې له دې څخه منعه شي (۲) او د ډول او وغيره غړول د ځينو علماوو په نزد روا دي، ليکن د لهولعب په ډول بې کول قابل د منعې دي (۳). **وهوالموفق.**

## د واده والا د خپلو عزيزانو او دوستانو لپاره د جامو جوړولو په عوض کې د بزې يا غوايي اخيستل

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام ددې مسئلې په باره کې چې زمونږ په سيمو کې د ودونو په موقع باندې د واده والاهلک چې څومره نږدې رشته دار. دوستان او خواص وي هغوی له واده يوه ورځ مخکې د واده کوونکي هلک د هغو لپاره يوه يوه جوړه جامې جوړې کړي او خبر ورکړي چې ما ستاسو لپاره جامې جوړې کړې دي. په جامو باندې نن سبا ټولې درې سوه روپۍ مصرفيږي، نو پورته ذکر شوي کسان د همدې جامو په عوض کې يوه بزه يا غوايي يا وغيره شيان راوړي او د جامو نه جوړولو په صورت کې په خپل مينځ کې سره ناراضه کيږي او د همدې ناراضګۍ له وجې په دويم ځل له رشته دارانو سره همداسې چلند نه کيږي. آيا دا مال راوړل او د هغه په عوض کې يوه جوړه جامې جوړول د شريعت

---

۱) قال الله تبارک وتعالى: إِنَّ الْمُبَذِّرِينَ كَانُوا إِخْوَانَ الشَّيَاطِينِ.
(سورة بني إسرائيل، آيت: ۲۷)

۲) قال المفتي كفايت الله رحمه الله تعالى:
(كفايت المفتي ۹: ۸۸ كتاب الحظر والاباحة، تيسرا باب، رسوم مروجه)

۳) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: أن آلة اللهو ليست محرمة لعينها بل لقصد اللهو منها.....وعن الحسن: لابأس بالدف في العرس ليشتهر، وفي السراجية: هذا إذالم يكن له جلاجل ولم يضرب على هيئة التطرب.
(ردالمحتار ۵: ۲۴۷، كتاب الحظر والاباحة، قبيل فصل في اللبس)

له مخې څنګه دي؟ حرام دي که حلال؟ **بينوا توجروا**

المستفتي: مولوي غلام الله چلاسی، ضلع کوهستان ...

۷/ ذی الحجه ۱۴۰۴ﻫ

**الجواب:** دا لين دين بذات خود نه ممنوع دی او نه مطلوب دی، ليکن د التزام او اهتمام له وجې بدعت او مکروه دی (۱) والله اعلم

## د واده په وخت د چکچکو (تاليو) سره د اتڼ کولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې (۱) زمونږ په سيمه کې د واده په موقع د اتڼ او سندرو لوبه کيږي، زمونږ په سيمه کوبنتيه کې په دې باندې اختلاف دی، براه کرم د هغه حکم ذکر کړی؟

(۲) د واده په موقع خلک له ماسخوتن وروسته په حجره کې سره راټول شي، د تيم سره سندرې وايي، سره له دې چې په دواړو صورتونو کې لمونځ اداء کيږي، براه کرم موږ مستفيد کړئ؟ **بينوا توجروا**

**المستفتي:** مولوي عثمان کونتيه... ۲۶ صفر ۱۴۰۲ هه

**الجواب:** دا دواړه شغلونه د لهو لعب کېدو له وجې ناروا او مکروه دي. **لمافي ردالمحتار ۸: ۳۴۷ - ۳۴۸: قوله كره كل لهو أي كل عبث ولعب فالثلاثة بمعنى الواحد كما في شرح التأويلات، والاطلاق شامل لنفس الفعل واستماعه كالرقص والسخرية**

---

۱) وفي المرقدة: قال النووي البدعة كل شيئ عمل على غير مثال سبق وفي الشرع احداث مالم يكن في عهد رسول الله ﷺ.

(مرقاة المفاتيح ۱: ۱۱۶، باب الاعتصام بالكتاب والسنة، الفصل الأول)

وقال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: ولأن ذكر الله إذا قصد به التخصيص بوقت دون وقت أو بشيئ دون شيئ لم يكن مشروعاً حيث لم يرد الشرع به لأنه خلاف المشروع. (البحر الرائق ۲: ۱۵۹ باب العيدين)

والتصفيق وضرب الأوتار من الطنبور والبربط والرباب والقانون والمزمار والصنج والبوق فإنها كلها مكروهة، لأنها زي الكفار [1] وهوالموفق.

## د (اوربل) رسم حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د (اوربل) رسم څه حکم دی؟ **بينوا توجروا**

المستفتي: شهزاد ګل، رشکی، نوشهره. ۲۸ / ذی الحجه ۱۴۰۴ هه

**الجواب:** (اوربل) رسم دی، بدعت نه دی [2] **وهوالموفق.**

## په واده کې د ډول غړول د اعلان او تشهیر لپاره روا دی او د سیل جوړولو لپاره ناروا دی

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د واده په موقع د ډول غړول شرعاً څه حکم لري؟ ځينې خلک ورته مباح او ځينې خلک

---

۱) (رد المحتار ۵: ۲۷۹، کتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

وقال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: (وكل لهو) يعني لايجوز ذلك لقوله عليه الصلوة والسلام: كل لعب ابن آدم حرام إلا ثلاثاً.... ويكره استماع صوت اللهو والضرب به والواجب على الإنسان أن يجتهد ماأمكن حتى لايسمع.

(البحر الرائق ۸: ۲۰۷، کتاب الكراهية، فصل في البيع)

۲) وفي البحر: أما المبتدع فهو صاحب البدعة وهي كما في المغرب اسم من ابتدع الأمر إذا ابتدأه وأحدثه كالرفقة من الارتفاق والخلفة من الاختلاف ثم غلبت على ماهو زيادة في الدين أونقصان منه، اه، وعرفها الشمنى بأنها ما أحدث على خلاف الحق المتلقى عن رسول الله ﷺ من علم أوعمل أوحال بنوع شبهة واستحسان وجعل دينا قويماً وصراطاً مستقيماً. (البحر الرائق ۱: ۳۴۹، کتاب الصلوة، باب الإمامة)

ورته ناروا وايي، دې باره کې شرعي حکم څه دی؟ **بينوا توجروا**

المستفتي: سيد محمد صيار خان صابری، ايبټ آباد ... ۱۹۹۰ع/۹/۱۱

**الجواب:** په نکاح او واده کې ډول وغيره غږول روا دي (۱) کله چې د اعلان او تشهير په اراده وي، نه د تماشې جوړولو په اراده (۲)، **وهوالموفق**

## په موجوده وخت کې د دف غږول ناروا دي

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام دې مسئلې باره کې چې دلته په عوامو کې دوه ډلې جوړې شوي دي، د يوې ډلې وينا ده چې په ودونو کې خلاف شرع امور ډول، ګډا، باجې، له سنګار سره په پرقيدونکي لباس کې ښځې او سر عام سندرې د شريعت مطهره خلاف دي، ددې څخه پرهيز ضروري دی، دويمه ډله وايي چې چيرته ليکل شوي دي چې دا منعه دي، لهذا دواړه په مقابله کې راغلي او جوماتونو ته نږدې په زوره زوره ډولونه غږوي ترڅو کوم خلک چې خپل خان په حقه بولي د مقابلې لپاره راووځي وغيره وغيره

(۱) په دې دواړو ډلو کې کومه يوه په حقه ده؟

---

۱) عن عائشة رضي الله تعالى عنهاقالت قال رسول الله ﷺ :أعلنوا هذاالنكاح، واجعلوه في المساجد ،واضربوا عليه بالدفوف.

(جامع الترمذي ۱: ۳۳۴،باب ماجاء في إعلان النكاح)

۲) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى :أن آلة اللهو ليست محرمة لعينها بل لقصد اللهو منها.... وعن الحسن لابأس بالدف في العرس ليشتهر ،وفي السراجية :هذا إذالم يكن له جل جلا ولم يضرب على هيئة التطرب.

(رد المحتار ۵: ۲۴۷، كتاب الحظر والإباحة ،قبيل فصل في اللبس)

(۲) د ګډا او سندرو په شریعت کې جواز شته او که نشته؟

(۳) مونږ له کومې ډلې سره ملګري شو؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي: غلام مصطفی، ایبټ آباد..... ۷۸ ع / ۸ / ۲۳.

**الجواب:** په موجوده وخت کې د دف (دریا) وغیره غږول ناروا دي، هغه د اعلان په اراده سره نه غږول کیږي، بلکې د فخر، سمعت او د لهو په اراده غږول کیږي (۱) لهذا د هغو غږونکي فاسقان او فاجران دي (۲) په داسې ودونو کې برخه اخیستل ناروا دي (۳) **کمافي شرح التنویر: وکره کل**

---

۱) قال العلامة سراج الدین رحمه الله تعالیٰ: لابأس بأن یکون لیلة العرس دف یضرب لإعلان النکاح إذا لم یکن له جلاجل ولایضرب علی هیئة التطریب ویکره اللعب والغناء. (فتاوی سراجیة ۳۳۰، کتاب الکراهیة والاستحسان، باب الولیمة)

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ: أقول هذا یفید أن آلة اللهو لیست محرمة لعینها بل لقصد اللهو منها.

(ردالمحتار ۵: ۲۴۷، کتاب الحظر والإباحة، قبیل فصل في اللبس)

۲) عن ابن عباس رضي الله تعالیٰ عنه قال قال رسول الله ﷺ: ان الله حرّم علی أوحرّم الخمر والمیسروالکوبة.... قال سفیان فسألت عليّ رضي الله عنه عن الکوبة؟ قال: الطبل. (سنن أبي داؤد ۲: ۵۲۰، کتاب الأشربة، باب في الأوعیة)

۳) قال العلامة أبوبکرالجصاص رحمه الله تعالیٰ: قال الله تعالیٰ: وَإِذَا رَأَيْتَ الَّذِينَ يَخُوضُونَ فِي آيَاتِنَا فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ..... لأن النهي عام من مجالسة الظالمین لأن في مجالستهم مختارا مع ترک النکیر دلالة علی الرضا بفعلهم ونظیره قوله تعالیٰ: لُعِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِن بَنِي إِسْرَائِيلَ.

(احکام القرآن للجصاص رحمه الله تعالیٰ ۳: ۲، ۳، سورة الأنعام، باب النهی عن مجالسة الظالمین)

لهو لقوله عليه السلام: لهو المسلم حرام الاثلثة: وفي رد المحتار ۵: ۲۶۱، قوله وكره كل لهو أي كل لعب وعبث والاطلاق شامل لنفس العمل واستماعه كالرقص والسخرية وضرب الأوتار من الطنبور والبربط والقانون والمزمار والصنج والبوق فانها كلها مكروهة لأنها زي الكفار، واستماع الدف والمزمار وغير ذلك حرام، وان سمع بغتة يكون معذوراً ويجب أن يجتهد أن لا يسمع (قهستاني)[1] وهو الموفق.

## په واده کې د دريا غړولو شرطونه او د هغو د نه موجوديت په صورتونو کې د نهی عن المنکر د مخالفت حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د په واده کې سندرې او باجې، د مزاميرو استعمال، د لهو لعب آلات او نور غير شرعي امور ترسره کيږي، آيا دا روا دي؟ که چيرته روا نه وي؛ نو د کومو دلائلو په زور سره؟

(۲) د يو ځای معززو او د دين علماوو ذکر شوي رسمونه منع کړي، ليکن يو شمير دنيا پرستو خلکو دا رسمونه د وقار مسئله جوړه کړه، دا خلک د ديندارو مسلمانانو سره مخالف شول. هغوی يې د لعن طعن نشانه جوړ کړل او تردې چې ويل به يې په کوم واده کې چې ذکر شوي رسمونه نه وي هغه خو واده نه دی، مړک دی، د همدې خلکو د شريعت له مخې څه حکم دی؟ **بينوا توجروا**

المستفتي: محمد قاسم، راولپنډی

**الجواب:** واضحه دې وي چې په واده کې دف (دريا) وغيره غړول رخصت دی،

**لحديث الترمذی:**

---

۱) رد المحتار مع الدر المختار ۵: ۲۷۹، کتاب الحظر والإباحة)

**واضربوا عليه بالدف** (۱) ليکن په دې کې يو شمير شرطونه دي د کومو رعايت چې ضروري دی:

(۱) اعلان به مقصود وي، لهو لعب به مقصود نه وي (۲)

(ب) له جلاجل (گونگرې يا ژغژغې) څخه به خالي وي (۳)

(ج) د بالغانو د آواز پورته کول به نه وي (۴)

چونکه په موجوده وخت کې د همدې شرطونو رعايت مفقود (ورک) دی، لهذا مونږ د فتوی د جواز له ورکولو معذور يو او حديث **(الغناء ينبت النفاق فى القلب كما ينبت الماء الزرع (رواه البيهقي)** (۵) **وحديث أمرني ربي بمحق المعازف والمزامير (رواه أحمد)** (۶) **وحديث نهى عن**

---

۱) في جامع الترمذي :عن عائشة قالت قال رسول الله ﷺ :اعلنوا هذا النكاح واجعلوه في المساجد واضربوا عليه بالدفوف. (جامع الترمذي ۱ : ۳۳۴،باب ماجاء في إعلان النكاح)

۲) قال العلامة محمد طاهر الفتني الكجراتي :الدف هو بالضم والفتح معروف أى الذي يطبل به والمراد في الحديث يضرب الدف على النكاح إعلان النكاح.
(مجمع بحار الأنوار ۲ :۲۸۸،باب الدال مع الفاء)

۳) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى :أقول وهذا يفيد أن آلة اللهو ليست محرمة لعينها بل لقصد اللهو منها......وفي السراجية :هذا إذا لم يكن له جلاجل ولم يضرب على هيئة التطرب (ردالمحتار ۵ :۲۴۷، كتاب الحظر والإباحة ،قبيل فصل في اللبس)

۴) وفي المنهاج :قوله الدف ،وهو جائز اذا لم يكن معه جلاجل كما صرح به ابن الهمام وكذا إذا قصد به الإعلان لا الاجتماع ....وبشرط كون المغنيات غير بالغات لأن رفع الصوت من البالغات مكروه.
(منهاج السنن ۵ :۲۴۸،باب ماجاء في إعلان النكاح ،أبواب النكاح)

۵) (سنن كبرى البيهقي ۱۰ : ۳۷۷،باب الرجل يغنّي يتخذ الغناء صناعة)

۶) مشكوة المصابيح ۳۱۸، كتاب الإمارة ،باب الخمر و وعيد شاربها)

الکوبة (رواه ابوداؤد) (۱) باندې عمل وکړي او کوم خلک چې د ناهین عن المنکر مخالفت کوي؛ نو په دوی باندې د اصحاب السبت په شان د مواخذې خطره ده، (۲) داخلک فساق اوفجاردي اوداستحلال په صورت کې کفاردي (۳) وهو الموفق

## د ډول، دف باجې وغیره په جواز او عدم جواز کې د فقهاوو د عبارتونو په مابین کې تطبیق

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله په واده او اختر کې د ډول او مزامیر په باره کې مستقله رساله لیکلې ده، په کومه کې یې چې د جواز او عدم جواز صورتونه بیان کړي دي، کوم احادیث چې قاضي صاحب نقل کړي دي د نمونې په ډول یو دوه یې لیکل کیږي:

---

۱) عن ابن عباس رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ :ان الله حرم علىّ أوحرّم الخمر والميسر والكوبة....قال سفيان فسألت على رضي الله عنه عن الكوبة؟ قال: الطبل. (سنن أبي داؤد ۲ : ۵۲۰،کتاب الأشربة ،باب في الأوعية)

۲) في تفسير القرطبي :فَجَعَلْنَاهَا نَكَالًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهَا وَمَا خَلْفَهَا وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِينَ. لأمة محمد ﷺ أن ينتهكوا من حرم الله عزوجل مانهاهم عنه ،فيصيبهم ماأصاب أصحاب السبت إذا انتهكوا حرم الله في سبتهم.

(تفسير القرطبي ۱ : ۴۸۲،سورة البقرة آيت : ۶۶)

۳) وفي شرح الفقه الاكبر :(ولانكفّر مسلماًبذنب من الذنوب وان كانت كبيرة إذالم يستحلها لأن من استحل معصية قد ثبتت حرمتها بدليل قطعي فهو كافرٌ.

(شرح الفقه الاكبر : ۷۱)

وفي شرح العقائد :ويجوز العقاب على الصغيرة والعفو عن الكبيرة اذالم تكن عن استحلال ، والاستحلال كفر. (شرح العقائد : ۸۷)

(۱) عن أبي مالك الأشعري رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ليكونن من أمتي يستحلون الخمر والحرير والمعازف، هغه مونږته د حديث درس کې دوه توجيهات وړاندې کړي وو
(۱) څوک يې چې د استحلال قائل دي هغه خو کافر دي چې حلال ته حرام او حرام ته حلال وايي
(۲) ددې ارتکاب خو کوي ليکن عقيده يې د هغه د حلال والي نه وي نو هغه فاسق دی.

**دويم حديث:** ان الله أمرني أن امحوا المزامير والكنازات يعني البرابط والمعازف.

**دريم حديث:** ان الله حرم على الخمر والكوبة والقيان.

**قاضي** صاحب ويلي: چې اول الذکر حديث د بخاري شريف حديث ته ابن حزم ضعيف ويلي دي او موخر الذکر احاديثو ته عبدالرحيم عراقي ضعيف ويلي، بهر حال په رساله کې ذکر شوي احاديث خو د حرمت په استدلال کې وړاندې شوي دي، باقي د حل لپاره چې کوم دويم شق دی که چيرته له تاسو حضرت سره وخت وي نو تفصيلي او تسلي ورکوونکی ځواب راکړی؟ **بينوا توجروا.**

**المستفتي:** محمد اسلم حقاني، پشين کوئټه.... ۶۹ ع/ ۱۲/ ۳۰

**الجواب:** د احنافو په نزد په واده او وغيره کې د دف (درېا) غږول د مشهور حديث په بناء روا دي (۱) کله چې شرطونه موجود وي، يعني کله چې په ښو کې ګونګرې نه وي، ګډا او تطريب نه وي. او د ډير کم وخت لپاره وي،

في رد المحتار والسراجية وشرح النقاية وشرح أبي المكارم هذا اذا لم يكن له جلاجل ولم يضرب على هيئة التطريب، وفي اللمعات: دل الحديث على اباحة مقدار اليسير، وفي مجمع البحار: أقر على قدر اليسير في

---

۱) عن عائشه رضي الله تعالى عنها: قالت قال رسول الله ﷺ: أعلنوا هذا النكاح واجعلوه في المساجد واضربوا عليه بالدفوف.
(جامع الترمذي ۱: ۳۳۴، باب ماجاء في إعلان النكاح)

**العرس والعيد.** او قاضي ثناء الله صاحب ويلي دي چې په دې ځايونو کې د دف خصوصيت نشته، بلکې په نورو باجو سره هم اعلان کېدلی شي. **قال في رسالة السماع.** چون ضرب دف برائی اعلان نکاح حلال يا مستحب باشد، دهول وطنبور ونقاره را از دف چه تفاوت است برائي لهو همه حرام است وبرائی غرض صحيح همه حلال باشد، اعلان از هر يک می شود فرق کردن در دفه وغيره آن امريست غير معقول، انتهی" بحواله بوادر النوادر [۱] او د يوشمير علماوو د تحقيق په بناء، واده او نورو خوشحاليو کې هم د دف وغيره غږول ناروا دي. استدلال يې کړی دی په ځينو عباراتو باندې مثلاً په شرح العقايد کې دي: **أما الاستماع فكاستماع ضرب الدف والمزمار والغناء وغير ذلك حرام، وفي أبي المكارم كره (تحريماً) لهو كضرب الدف والمزمار، وفي ما لابد منه مؤلفه قاضي ثناء الله پانی پتی.** ملاهی ومزامير ودهل ونقاره ودف وغيره باتفاق حرام اند [۲] ليکن راجح دا معلومه شوې چې دا عبارات له واده او وغيره پرته په نورو باندې محمول کړی شي ترڅو تطبيق راشي او د غير مذهب (امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ) څخه د نقل احتمال له منځه ولاړ شي [۳] **وهو الموفق**

## له تبليغ او دنيوي ضروري کارونو پرته د سندرو او باجو په محفل کې کښېنستل ناروا دي

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې که چيرته په کومه خوشحالی کې برابره ده که هغه د واده وي، که د ختنې وي يا د عرس

---

۱) بوادر النوادر، ۱: ۳۲۷، اته څلويښتم حکمت: تحقيق ضرب دف درشادی)

۲) (بوادر النوادر، ۳۲۳، تحقيق ضرب دف شادی)

۳) قال حكيم الأمت رحمه الله تعالى: قال العلامة ابن حجر المكي: القسم الرابع في الدف المعتمد من مذهبنا أنه حلال لاكراهة في عرس وختان وتركه أفضل، وهذا حكمه في غيرها فيكون مباحاً أيضاً على الأصح، وفي المنهاج... (باتي حاشيه په بل مخ)

وي يا كوم بل اجلاس وي او د پورته ذكر شويو خوشحاليو په رقص او سرود سره د ښايسته كولو لپاره ډمانو، ربابونو، رنډيو او سندرو ويونكو او وغيره هم راغوښتې وي، ترڅو محفل په عيش او نشاط سره ښايسته شي. اوس مسئله دا ده چې (۱) آيا يو مسلمان په داسې محفل كې ګډون كولى شي؟

(۲) په داسې محفل كې چې كومه ډوډۍ تياره شوې وي هغه حلاله ده كه حرامه؟

(۳) د همداسې محفلونو په باره كې د الله او د هغه د رسول صلى الله عليه وسلم حكم څه دى؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي: عبدالعزيز، ضلع هزاره... ۱۹۷۱ع/۱/۲۱.

**الجواب:** په داسې محفل كې ګډون كول ناروا دي، **يدل عليه قوله تعالى: وَإِذَا رَأَيْتَ الَّذِيْنَ يَخُوْضُوْنَ فِيْ اٰيٰتِنَا فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ حَتّٰى يَخُوْضُوْا فِيْ حَدِيْثٍ غَيْرِهٖ (أنعام)** (۱).

(۲) د همداسې ډوډۍ اجابت منعه دى. **لحديث نهى عن اجابة طعام الفاسقين (مشكوة)** (۲).

(۳) د تبليغ لپاره تلل صحي بلكې ضروري دي (۳) او د بل ضروري دنيوي امر

---

(د حاشيې پاتې برخه) وغيره مال من أصحابنا أنه في غيرهما حرام ،او حضرت عارف بالله شيخ المشائخ شهاب الدين سهروردي شافعي عليه الرحمة عوارف المعارف كې ليكي : فاما الدف والشابة وإن كان فيهما في مذهب الشافعي فسحة والأولى تر كها والأخذ بالأحوط والخروج من الخلاف.

(بوادر النوادر ،۳۲۳،تحقيق ضرب دف شادى)

۱) سورم الأنعام ،آيت :۶۸)

۲) (مشكوة المصابيح : ۲۷۹، كتاب النكاح ،باب الوليمة)

وفي الهندية :ولا يجيب دعوة الفاسق الملعن ليعلم أنه غير راض بفسقه.

فتاوى هندية ۵:۳۴۳، كتاب الكراهية ،الباب الثاني عشر في الهدايا)

۳) قال العلامة الحصكفي :دعى إلى وليمة وثمه........ (پاتې حاشيه په بل مخ)

لپاره تلل مباح دي **وهوالموفق**.

## د ډولۍ معمول او د هغې صحيح طريقه

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره کې چې په ودونو كې ډولۍ څه ډول راوړل كيدى شي؟ او صحيح طريقه يې بيان كړئ؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: جناب محمد طيب، مدرسه تعليم القرآن،

ضلع وتحصيل بټګرام... ۷۰ع/ ۶/ ۲۳.

**الجواب:** په متفق عليه حديث كې د **(زرالحجلة)** لفظ راغلی دی [۱] د هغه څخه د ډولۍ معمول كيدل ثابت شوي دي، باقي داسې امور په كومو كې چې د دين اعتقاد ونكړى شي او نه له دين سره په ټكر كې وي نو روا دي **وهوالموفق**

---

(د حاشيې پاتې برخه) لعب أوغناء....فإن قدرعلى المنع فعل وإلايقدرصبر .... وإن علم أولا باللعب لايحضر أصلًا....وفي السراج ودلت المسئلة أن الملاهي كلها حرام ويدخل عليهم بلا إذنهم لإنكارالمنكر .(الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى:(قوله فعل) أى فعل المنع وجوبا إزالة للمنكر (قوله صبر) أى مع الإنكار بقلبه قال عليه الصلوة والسلام:من رأى منكم منكراً فليغيره بيده،فإن لم يستطع فبلسانه،فإن لم يستطع فبقلبه،وذلک أضعف الإيمان ....(قوله لايحضر أصلاً) إلا إذاعلم أنهم يتركون ذلک احتراماًله فعليه أن يذهب.

(رد المحتار ۵:۲۴۵، باب الحظر والإباحة)

۱) عن السائب بن يزيد يقول ذهبت بى خالتى إلى رسول الله ﷺ:فقالت يارسول الله ! إن ابن اختى وجع فمسح رسول الله ﷺ رأسي ودعا لي بالبركة....وقمت خلف ظهره فنظرت إلى الخاتم الذي بين كتفيه فإذا هومثل زرّالحجلة.

(شمائل ترمذي ۲:۷۲۲،باب ماجاء في خاتم النبوة)

## د ډول او سندرو باجو والا سره د پریکون (بائیکاټ) حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې زمونږ د کلي ټول خلک د حنفي فقهې مقلد دي، په کلي کې له اوږدې مودې راهيسې په ودونو کې ډولونه وغيره غږول کيږي او زومان سهرې هم استعمالوي، په دې باندې د کلي خلک دوه برخې شوي دي، د يوې ډلې نظر دا دی چې له دوی سره دې مکمل پريکون (بائيکاټ) وکړی شي. د دويمې ډلې نظر دا دی چې ډول او سهره روا دي، ليکن په دا رنگه د تعلق په قطع کولو سره خلک پوهيدلی نشي بلکې د هغو په غم او خوشحالی کې گډون کوي او هغوی پوهول کيږي، ځکه چې د سختې روبې (چلند) په ساتلو سره په همدې کارونو کې شدت راغلی دی او خلکو پخوا هم دا هر څه خپل کړي دي، د قرآن او سنت په رڼا کې حکم وښيي؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي: اهليان پير گران. تحصيل مرى. ضله پنډي ۹۰ع/۹/۱۶

**الجواب:** چونکه عوامو سرود کړی او کوي يې. کله په کورونو کې دننه او کله له کورونو د باندې. لهذا دوی ته له دې گناه څخه د ځان ساتل ضروري دي (۱)، برابره ده که په پريکون سره (۲) او که په وعظ او نصيحت سره وي، په موجوده

---

۱) عن أبي سعيد الخدري رضي الله تعالى عنه عن رسول الله ﷺ.من رأى منكم منكراً فليغيره بيده،فإن لم يستطع فبلسانه،فإن لم يستطع فبقلبه وذلك أضعف الإيمان.

(صحيح مسلم ۱:۵۰،كتاب الإيمان،باب بيان كون النهي عن المنكر من الإيمان.

۲) في المرقاة:قال الخطابي:رخص المسلم أن يغضب على أخيه ثلاث ليال لقلته ولا يجوز فوقها إلا إذاكان الهجران في حق من حقوق الله تعالى فيجوز فوق ذلك.....فإن هجرة أهل الاهواء والبدع واجبة على مر الأوقات مالم يظهر منه التوبة والرجوع إلى الحق.

مرقاة المفاتيح ۹:۲۶۲،كتاب الآداب،باب ماينهى عنه من التهاجر والتقاطع الخ)

وخت كې اول الذكر كامياب اقدام دى او آخر الذكر هم په تبليغي جماعت كې د وخت لګولو په صورت كې كامياب شوي دي. وهوالموفق

## د رقص او سرود روا ګڼل او په ناخبرى كې د رقص حكم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې يو كس د يوه واده په خوشحالي كې مصنوعي ږيره واچول. د ډول او باجې سره ګډيده، يوشمير خلكو هغه له دې كار څخه منعه كولو چې دا د نبوي صلى الله عليه وسلم سنتو توهين دى، وروسته همدغه كس له دې كار څخه منعه شو او وې ويل چې ماته هيڅكله ددې علم نشته. پوښتنه دا ده چې د همدغه كس او د ليدونكو حكم څه دى؟ بينواتوجروا.

المستفتي: محمد اسلم تونسه ډي آئي خان

**الجواب:** رقص او سرود ناروا شيان دي، ديته روا ويل ډير خطرناك دي، البته ناخبره كس په داسې رقص سره نه كافر كيږي، ځكه چې د سنتو د توهين اراده نه لري، فليراجع الى الهندية ۵: ۳۵۲ [۱] والله أعلم بالصواب.

## د رواجي قوالي (سندرو) حكم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې د رواجي قوالي شرعا څه حكم لري؟ بينواتوجروا.

المستفتي: عبدالقدوس، ساهي وال... ۴/ جمادى الاول ۱۳۹۵ هـ

---

۱) في الهندية: السماع والقول والرقص الذي يفعله المتصوفة في زماننا حرام لايجوز القصد إليه والجلوس عليه وهو والغناء والمزامير سواء وجوزه أهل التصوف واحتجوا بفعل المشائخ من قبلهم قال وعندي أن مايفعلونه غير مايفعله هؤلاء.
(فتاوى هندية ۵: ۳۵۲، كتاب الكراهية، الباب السابع عشر في الغناء الخ)

**الجواب:** مروجه (سندرې) قوالي حرامه ده [۱] دا د هندوانو او نصارى وو شعار دى، په دې سره زړه مړ كيږي، تر اخيره پورې د لمانځه او تلاوت خوند (لذت) ختموي [۲] **وهوالموفق**

## له سرود سره او بغير له سروده د سندرو ويل

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې په موجوده وخت كې د ټيپ ريكارډ په واسطه د سندرو په نوم د الله تعالى، د هغه د رسول او د دين د بزرګانو نومونه ځاى ځاى اخيستل كيږي او په ځينو ځايونو كې ټيپ مخته كيښودل شوي رقص هم ورته كيږي. لهذا دا وواييئ چې د باجو او دبلو په آواز باندې د الله د هغه د رسول نومونه اخيستل سندره څنګه ده؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: د اكبر پوره عوام ... ۱۴۰۰هه/ ۲/ ۱۴

---

۱) في الهندية :السماع والقول والرقص الذي يفعله المتصوفة في زماننا حرام لايجوز القصد إليه والجلوس عليه وهو والغناء والمزامير سواء.

(فتاوى هندية ۵:۳۵۲،كتاب الكراهية،الباب السابع عشر في الغناء واللهو)

وقال العلامة الطحاوي رحمه الله تعالى:(قوله وكره كل لهو أى لعب وعبث فالثلاثة بمعنى واحد كما في شرح التأويلات والإطلاق شامل لنفس الفعل واستماعه كالرقص والسخرية والتصفيق وضرب الأوتار....فإنها كلها مكروهة لأنها زيّ الكفار واستماع ضرب الدف والمزمار والغناء وغير ذلك حرام.

(الطحطاوي على الدر المختار ۴:۱۹۸،كتاب الحظر والإباحة،فصل في البيع)

۲) في حاشية شرح الوقاية :لأن الغناء يورث الغفلة ويقل الحياء ويكثر اللهو ويطفي حرارة التقوى ويهيج الطبع إلى الشهوات.

(تكمله عمدة الرعاية على شرح الوقايه ۳:۱۶۳،كتاب الشهادة،باب قبول الشهادة وعدمه)

**الجواب:** د الله او د رسول صفت کول ستر عبادت دی [۱] او سرود کول ستر معصیت دی [۲] پس کومې سندرې چې له سرود او مزامیرو څخه خالي وي هغه ناروا نه دي، برابره ده که په اصل آواز سره وي یا د تیپ په واسطه وي، په کومو سندرو کې چې سرود او مزامیر وي هغه ناروا او قبیح بدعت دی [۳] **وهوالموفق**

## د صحیح اغراضو لپاره ډول غږول

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې استاذان په خپلو مکتبونو کې د طالبانو لپاره ډول له بین باجو پرته استعمالول غواړي په کوم وخت کې تعلیم کوونکي طالبان بدني مشقونه یا د تعلیم په وخت کې ګډ تمرین کوي. په دې موقع د ډول په ذریعه په طالبانو کې نظم ضبط او د جهاد جذبه

---

۱) في المرقاة: (عن سمرة بن جندب رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: أفضل الكلام أربع سبحان الله والحمدلله ولااله الاالله والله اكبر....فالمذكورات من أفضل عبادات أصحاب العقبى فانهازبدة صفات الله وعمدة كلمات الله تعالى.
(مرقاة المفاتيح ۵:۱۰۵،باب ثواب التسبيح والتحميد الخ)

۲) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: دلت المسألة أن الملاهي كلهاحرام ويدخل عليهم بلا إذنهم لإنكار المنكر ،قال ابن مسعود: صوت اللهو والغناء ينبت النفاق في القلب كماينبت الماء النبات.
(الدرالمختار ۵:۲۴۶، كتاب الحظر والإباحة)

۳) وفي الهندية: السماع والقول والرقص الذي يفعله المتصوفة في زماننا حرام لايجوز القصد إليه والجلوس عليه وهو والغناء والمزامير سواء.
(فتاوى هندية ۵:۳۵۲، كتاب الكراهية ،الباب السابع عشر في الغناء واللهو)

پیدا کول مقصود دي نه عیش، په دې باره کې د شریعت حکم څه دی؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي: صادق حسین اٹک شهر..... ۱۴ هه / شوال ۱۴۰۳ هه

**الجواب:** د صحیح اغراضو لپاره ډول غږول روا دي، کله چې له طرب او جوش پیدا کولو څخه پاک وي، **كما أشار اليه العلامة الشامي في رد المحتار ۵: ۳۰۷، في السراجية: هذا اذالم يكن له جلاجل ولم يضرب على هيئة التطرب** (۱).

**نوټ:** موجوده مروجه ډول رقص او ډانس د جهاد په نسبت جګړې ته ډېر نږدې دي. **وهوالموفق.**

## د سرود اورېدل او د سرود په هوټلونو کې د کیناستو حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د سرود په هوټلونو کې کیناستل څنګه دي؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي: عبد الوهاب، متعلم حقانیه.

**الجواب:** د سرود اورېدل حرام دي، په کومو هوټلونو کې چې سرود وي هلته کیناستل هم حرام دي، **كما في الدر المختار على هامش رد المحتار ۵: ۳۰۶، استماع الملاهي معصية والجلوس عليها فسق** (۲). **وهوالموفق.**

---

۱) رد المحتار ۵: ۲۴۷، کتاب الحظر والإباحة وقبيل في اللبس)

وفي المرقاة (يضربن بالدف)..... وفيه دليل على جواز الدف عند النكاح والزفاف للإعلان وألحق بعضهم الختان والعيدين والقدوم من السفر ومجتمع الأحباب للسرور وقال المراد به الدف الذي كان في زمن المتقدمين وأما عليه الجلاجل فينبغي أن يكون مكروهاً بالإتفاق. (مرقاة المفاتيح ۶: ۲۱۰، کتاب النکاح، باب إعلان النكاح)

۲) الدر المختار ۵: ۲۴۶، کتاب الحظر والإباحة).... (باقي حاشيه په بل مخ)

## په اهل مزامیر باندې د جنازې د لمانځه حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یو مولوي صاحب په هغو خلکو ډیره سخته نیوکه کوي کوم خلک چې سندرې غړوي، یا له همدې سندرو غړونکو څخه چې کوم یو مړ شي د هغه جنازه هم کوي، خلک دغه مولوي صاحب ملامته کوي چې یا خو د سندرو غړول روا وبوله یا په همدې خلکو باندې د جنازې لمونځ مه ادا کوه؛ اوس د شریعت له مخې د خلکو لخوا د همدغه مولوي صاحب ملامته کول صحیح دي او که نه؟ او همدغه مولوي صاحب ته د همداسې خلکو د جنازې کول صحیح دي او که نه؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي: راجه محمد بشیر، فلور ملز ببول، براسته گوجر خان. راولپنډی. ۱۹۶۹ع /۸/ ۲۵.

**الجواب:** له مزامیرو انکار یې موجب ثواب دی او په اهل مزامیر باندې جنازه کول هم د ثواب کار دی، په دې شرط چې مزامیر یې حلال نه وي ګڼلي،

**قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: ليكونن من أمتي أقوام يستحلون الخز والحرير والخمر والمعازف** (۱) وقال عليه السلام: **من رأى منكم منكرًا فليغير بيديه** (۲) **الحديث، وقال** عليه السلام: **صلوا على كل بر وفاجر** (۳) **وهو الموفق.**

---

(د حاشیې پاتې برخه) وفي الخلاصة: استماع صوت الملاهي كالضرب وغيره حرام لأنه من الملاهي وقال عليه الصلوة والسلام: استماع الملاهي معصية والجلوس عليها فسق. (خلاصة الفتاوى ۴: ۳۴۵، كتاب الكراهية، الفصل الثالث في ما يتعلق بالمعاصي)

۱) صحيح البخاري ۲: ۸۳۷، كتاب الأشربة، باب ماجاء فيمن يستحل الخمر الخ)

۲) مشكوة المصابيح ۴۳۶، باب الأمر بالمعروف)

۳) طحطاوي على مراقي الفلاح ۵۸۰، أحكام الجنائز، فصل: الصلوة عليه)

وعن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه قال قال..... (پاتې حاشیه په بل مخ)

## سرود په چشتیه سلسله کې داخل نه دی

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د سندرو غږول او د شطرنج لوبه کول اتفاقًا حرام دي، مگر يو شمير خلک د دوی په جواز کې د طريقت چشتيه سلسله وړاندې کوي او وايي چې د سندرو په غږولو کې چې څومره روايتونه راغلي دي هغه ضعيف دي، محدثينو په هغو باندې جرح کړې، براه کرم ددې متعلق وضاحت وکړئ؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: امير خان، خالو، هری پور ۱۳/ ذيقعده ۱۴۰۴ هـ

**الجواب:** د سرود حرمت په قرآن (۱) احاديثو (۲) او د فقهي له عبارتونو څخه په واضحه توګه معلوم شوی دی (۳) لهو هيڅ امام روا کړې نده. په چشتيه سلسله کې هم سرود داخل نه دی. البته

---

(د حاشيې پاتې برخه) رسول الله ﷺ :الجهاد واجب عليكم مع كل أمير براً كان أوفاجراً.... والصلوة واجبة على كل مسلم براً كان أوفاجراً وإن عمل الكبائر.

(سنن أبي داؤد ۳۴۳: ۱كتاب الجهاد ،باب الغزو مع ائمة الجور)

۱) قال الله تبارک وتعالى :وَمِنَ النَّاسِ مَن يَشْتَرِى لَهْوَ الحَدِيثِ لِيُضِلَّ عَن سَبِيلِ اللهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَيَتَّخِذَهَا هُزُوًا أُولَئِكَ لَهُم عَذَابٌ مُهِينٌ. (سورة لقمان آيت: ۶)

وقال الله تبارک وتعالى :وَاسْتَفْزِزْ مَنِ اسْتَطَعْتَ مِنْهُم بِصَوْتِكَ.

(سورة بنى اسرائيل آيت: ۶۴)

۲) قال رسول الله ﷺ :ليكونن من أمتى أقوام يستحلون الخز والحرير والخمر والمعازف. (صحيح البخاري ۲:۸۳۷، كتاب الأشربة)

۳) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى :دلت المسألة الملاهي كلهاحرام ويدخل عليهم بلا إذنهم لإنكارالمنكر،قال ابن مسعود:صوت اللهو والغناء ينبت النفاق في القلب كما ينبت الماء النبات. (الدرالمختار)...... (پاتې حاشيه په بل مخ)

د وثنیه او عیسویه سلسله خلک په دې کې مبتلا دي، ولوثبت صدوره من المشائخ لحمل على العلاج بالمحرم وغيره(۱) وهوالموفق.

## د سورة رحمن پر ځای د نقشبندي اشعارو ویل

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د سورة رحمن پر ځای چې کوم نقشبندي اشعار ویل کیږي هغه ټول اشعار د قرآن او سنت منافي دي. اوس دغه اشعار روا دي که نه دي؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي عثمان الدین

---

(د حاشیې پاتې برخه) وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قال ابن مسعود الخ) رواه في السنن مرفوعاً إلى النبي ﷺ بلفظ، إن الغناء ينبت النفاق في القلب.... وإن كان السماع سماع غناء فهو حرام باجماع العلماء ومن أباحه من الصوفية فلمن تخلى عن اللهو وتحلى بالتقوى واحتاج إلى ذلك احتياج المريض إلى الدواء.

(الدرالمختار مع رد المحتار ۵:۲۴۶، كتاب الحظر والإباحة)

۱) في الهندية: السماع والقول والرقص الذي يفعله المتصوفة في زماننا حرام لايجوز القصد إليه والجلوس عليه وهوالغناء والمزامير سواء وجوزه أهل التصوف واحتجوا بفعل المشائخ من قبلهم، قال وعندي أن مايفعلونه غيرمايفعله هؤلاء فإن في زمانهم توافقه ينشد واحد شعراً فيه معنى يوافق أحوالهم فيوافقه ومن كان له قلب رقيق إذا سمع كلمة توافقه على أمر هو فيه ربمايغشى على عقله فيقوم من غيراختيار وتخرج حركات منه من غير اختيار وذلک مما لايستبعد أن يكون جائزاً ممالايؤخذ به ولايظن في المشائخ أنهم فعلوا مثل مايفعل أهل زماننا من أهل الفسق والذين لاعلم لهم بأحكام الشرع وإنمايتمسک بأفعال أهل الدين.

(فتاوى هندية ۵:۳۵۲، كتاب الكراهية، الباب السابع عشر في الغناء واللهو)

**الجواب:** إعلم أن الاحسان أن تعبد الله كأنك تراه فأن لم تكن تراه، فأنه يراك (۱) كما ثبت فی حديث الصحيحين ويعبر عنه بالاخلاص وهو الروح فی العبادة، ولحصوله طرق كثيرة كتعلم العربية، وهذه الطرق الأربع ألهمت الی المشائخ وكنا جربوها فوجدوها موصلة، فمن أعرض عن هذا فقد فاته الخير الكثير لكن يشترط لطالبها اصلاح الاعتقاد حسب اعتقادات أهل السنة والجماعة، وهو الموفق.

## د خټکو ډانس، اتڼ، رقص، موسيقي او د سرود د آلاتو د استعمال حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې په زياتره اخبارونو کې مونږ دا لوستلي دي چې په فلاني هيواد کې ثقافتي طائفې د خپل فن مظاهره وکړه. يو شمير خلک اعتراض کوي چې د موسيقی اوريدل حرام دي او ګناه ده، په يو شمير خايونو کې رقص مثلا د خټکو ډانس، اتڼ او وغيره کوم چې په ځانګړو محفلونو کې ترسره کيږي په دې سلسله کې وړانديز دا دی چې زمونږ مشکل حل کړی چې آيا مونږ ته د نورو هيوادونو په مقابل کې د سيمه ييز رقص (د سړيو) کوم چې خاص د سړيو په محلف کې کيږي روا دی؟ او هغه موسيقي کومه چې له فحش او خواهشاتو څخه پاکه وي، د طبعيت د تفريح لپاره وي روا ده؟ نن سبا چې کومې سندرې نشر کيدلی شي برابره ده که فلمي وي که قومي، د هغو اوريدل روا دي او که نه؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي: محمد سليم، اماؤنټ ډيپارمنټ رياض،

سعودي عرب. ۲۹/ ذی الحجه ۱۳۹۹ هـ

**الجواب:** د سرود آلات (موسيقي وغيره) استعمال حرام دی لحديث: **أمرني ربي بمحق المعازف والمزامير والأوثان والصُلب، (رواه أحمد)** (۲) **وصرح بمنعها**

---

۱) (صحيح البخاري ۱۲:۱، باب سوال جبرئيل النبي ﷺ عن الايمان والإسلام)

۲) (مشكوة المصابيح ۳۱۸، باب بيان الخمر ووعيد شاربها)

ردالمحتار ۵: ۳۰۵، ۳۴۷)[1] همدارنګه رقص هم ممنوع دی، **كمافي رد المحتار ۵: ۳۴۷**، **(كالرقص والسخرية والتصفيق وضرب الأوتار من الطنبور والبربط والرباب)**[2] همدارنګه غناء (سندرې) هم ممنوع دي. کله چې په صحيح غرض باندې بناء نه وي. **(ردالمحتار ۵: ۳۴۷)**[3] **وهوالموفق.**

## په ډولۍ کې د قرآن اېښودل او شاته يې د رقص کولو حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې زمونږ په سيمه کې د واده په موقع د ډولۍ وړلو په وخت له ناوې سره په ډولۍ کې قرآن مجيد اېښودل کيږي، ډولۍ وړاندې روانه وي او شاته يې ډول، باجې او ګډا ګانې وي، د دوی دا کار څنګه دی او په ګډا کوونکو باندې خو ښځه نه طلاقيږي؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: فضل وهاب، شيخان، پشاور... ۲۹/ رمضان ۱۴۰۰ هـ

**الجواب:** په ډولۍ کې د قرآن اېښودل د تبرک په ډول منع نه دي، البته سرود او

---

۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالىٰ: دلت المسألة أن الملاهي كلهاحرام......وفي البزازية: استماع صوت الملاهي كضرب قصب ونحوه حرام لقوله عليه الصلوٰة والسلام: استماع الملاهي معصية والجلوس عليهافسق والتلذذ بها كفر أي بالنعمة.
(الدرالمختار ۵: ۲۴۶، كتاب الحظر والإباحة، قبيل فصل في اللبس)

۲) ردالمحتار ۵: ۲۷۹، كتاب الحظر والإباحة فصل في البيع)

۳) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: (قوله قال ابن مسعود الخ) رواه في السنن مرفوعاً إلى النبي ﷺ بلفظ: إن الغناء ينبت النفاق في القلب، كما في غاية البيان، وقيل إن تغنّى ليستفيد نظم القوافي ويصير فصيح اللسان لابأس به، وقيل: إن تغنّى وحده لنفسه لدفع الوحشة لابأس به وبه أخذ السرخسي رحمه الله تعالىٰ.
(رد المحتار ۵: ۲۴۶، كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

رقص منع دی صرح به العلامة الشامی فی رد المحتار فی باب الحظر والاباحة (۱) پس ددې په مستحل باندې ښځه حرامیږي (۲) وهوالموفق

## د واده په ورا کې تلل او د هغه د ډوډۍ خوړلو حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د واده په موقع په ورا کې تلل څنګه دي؟ او د هغه د ډوډۍ خوړلو حکم څه دی؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي ظفر. واهګه. لاهور ۹/ ۷/ ۱۴۰۰ هـ

**الجواب:** دا امور د التزام مايلزم او د اهتمام فوق المقام له وجې ناروا او واجب الاجتناب دي (۳) **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: (قوله وكره كل لهو) أى كل لعب وعبث فالثلاثة بمعنى واحد كمافي شرح التأويلات، والإطلاق شامل لنفس الفعل، واستماعه كالرقص والسخرية والتصفيق وضرب الأوتار من الطنبور والبرابط والرباب والقانون والمزمار والصنج والبوق، فإنها كلهامكروهة لأنهازیّ الكفار، واستماع ضرب الدف والمزمار وغير ذلک حرام.

(رد المحتار ۵: ۲۷۹، كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

۲) في الهندية: من اعتقدالحرام حلالًا أوعلى القلب يكفر.... هذا إذاكان حرامًا لعينه و هو يعتقده حلالًا حتى يكون كفرًا، أما إذاكان حرامًالغيره فلا.

(فتاوى هندية ۲: ۲۷۲، الباب التاسع في أحكام المرتدين، ومنهامايتعلق بالحلال والحرام)

۳) في المرقدة: قال النووي: البدعة كل شيئ عمل على غيرمثال سبق وفي الشرع: إحداث مالم يكن في عهد رسول الله ﷺ.

(مرقاة المفاتيح ۲: ۲۱۶، باب المساجد ومواضع الصلوة).... (پاتې حاشيه په بل مخ)

(د حاشيې باتې برخه) وقال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: ولأن ذكرالله إذا قصدبه التخصيص بوقت دون وقت أوبشيئ دون شيئ لم يكن مشروعًا حيث لم يردالشرع به لأنه خلاف المشروع.
(البحرالرائق ۲:۱۵۹، باب العيدين)

الله الله

بسم الله الرحمن الرحيم

قال رسول الله صلى الله عليه وسلم

إذا كذب العبد تباعد عنه

الملك ميلًا من نتن

ما جاء به.

(رواه الترمذی)

# باب الكذب

## د جنګ او جدال ختمولو لپاره د مصلحت په ډول د دروغو ویلو حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د صلح په وخت د جانبينو په مينځ کې د جنګ او جدال ختمولو لپاره که چيرته کوم کس دروغ ووايي ترڅو د هغوی تر منځ ناراضګي ختمه شي او هغوی صلح وکړي، آيا دا ډول دروغ ويل روا دي؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: عبد لرحمن... ۷۶ع/ ۶۵

**الجواب:** د دوه قومونو يا دوه کسانو په مينځ کې د صلح کولو لپاره او د جنګ جدال ختمولو لپاره که چيرته په توريه او مبهمو الفاظو سره کار نه چليده نو دروغ ويل اګر که بنفسه ناروا دي، ليکن د دغه مصلحت دومره ستر ثواب دی چې همدا ګناه کالعدم کوي ګويا چې ګناه ګناه نه پاتې کيږي (۱) **وهوالموفق**

---

(۱) في الهندية: يجب أن يعلم أن استعمال المعاريض للتحرز عن الكذب لا بأس به، جاء عن عمر رضي الله تعالى عنه أنه قال إن في معاريض الكلام لمندوحة عن الكذب أى سعة وفي ذلك طريقان، أحدهما أن يتكلم بكلمة و يريد بها غير ما وضعت له الكلمة من حيث الظاهر إلا أن ما أراده يكون من محتملات لفظه.

(فتاوى هندية ۶: ۴۳۶، كتاب الحيل، الفصل الثامن والعشرون في استعمال المعاريض)

وفي الهندية الكذب محظور إلا في القتال للخدعة وفي الصلح بين اثنين.

(فتاوى هندية ۵: ۳۵۴، كتاب الكراهية، الباب السابع عشر في الغناء واللهو)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: ومهما كان لا يتم مقصود حرب أو إصلاح ذات البين أو استمالة قلب المجنى عليه إلا بالكذب فيباح.

(ردالمحتار ۵: ۳۰۳، كتاب الحظر والإباحة، قبيل كتاب احياء التراث)

## په راشن کارډ کې د کمو کسانو پر ځای د ډیرو کسانو لیکلو حکم

**سوال:** چې مي فرمايد علماء دين درين مسئله که دريک خانه پنج نفر است ودر راشن کارډ ده نفر ذکر کند. چه حکم دارد؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: حاجي سعد الله خان. علی زئي کوهاټ ... ۶ صفر ۱۴۰۳ هـ

**الجواب:** دروغ گوئي وفريب، امور محرمه اند (۱) البته اگر راشن مقرره کم باشد وناکافي باشد پس حيله وتدبير جائز است (۲) **والله اعلم.**

## کمپیوټر ته پرته له تجربې د څلورو کلونو د تجربې سند ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې که چيرته يو ډاکټر کوم کمپيوټر ته پرته له تجربې د څلورو کلونو تجربه وليکي نو ددې څه حکم دی؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: محمد علی. رائيونډ. لاهور ... ۱۹۹۵ع/۶/۳۰

---

۱) عن عبدالله بن مسعود رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: اياكم والكذب فإن الكذب يهدي إلى الفجور وإن الفجور يهدي الى النار، وما يزال الرجل يكذب ويتحرى الكذب حتى يكتب عند الله كذابا.

(مشكوة المصابيح ۴۱۲، باب حفظ اللسان والغيبة والشتم)

وقال الإمام البخاري تعليقاً: قال النبي ﷺ: الخديعة في النار.

(صحيح البخاري ۱: ۲۸۷، باب النجش)

۲) قال العلامة ابن عابدين: أن كل مقصود محمود يمكن التوصل إليه بالتصديق والكذب جميعاً فالكذب فيه حرام، وإن أمكن التوصل إليه بالكذب وحده فمباح إن أبيح تحصيل ذلك المقصود.

(رد المحتار ۵: ۳۰۳، كتاب الحظر والإباحة، قبيل كتاب إحياء الموات)

**الجواب:** داسې تجربه کار ته د تجربې سند ورکول مشروع دي، البته له درواغو څخه د خان ساتلو لپاره توریه استعمالول پکار دي[۱]. **وهوالموفق**

## د ښځې او ماشومانو بل ځای ته د نه بیولو په صورت کې ملازم ته له حکومت څخه د تبادلې خرچه اخیستل

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د حکومت له طرفه چې کله د کوم حکومتي ملازم تبادله وشي او د هغه مصرف نوم ترانسفر گرانټ اور ټي، اې. ډي دی او د هغه مصرف اندازه په دې ډول ده په ضلع کې دننه چې کله تبادله کیږي نو هغه ته نیمايي تنخا د عطیې په ډول ورکول کیږي. د ضلع څخه د باندې په تبادلې سره نوله تنخوا ورکول کیږي، له دې پرته د هر یو ملازم لپاره (۳۰) من سامان په حساب یوه روپی فی میل فی من اخراجاتو پورې هم اجازت دی. له دې پرته ښځې او ماشومانو ته هم په حساب ۱۲ روپی فی بالغ او ۶ روپی فی نابالغ فرد اجازت دی، اوس وضاحت وکړئ چې زما تبدیلي له یوه مکتب څخه بل مکتب ته شوې ده، لیکن زه خپل اهل او عیال په مخکنې

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى :قال في البزازية :وان أدركت بالحيض تختار عند رؤية الدم ، ولو في الليل تختار في تلك الساعة ثم تشهد عندالصبح وتقول رأيت الدم الآن لأنها لوأسندت أفسدت وليس هذا بكذبِ محض بل من قبيل المعاريض المسوغة لإحياء الحق....وحاصله أنهاتعني بقولها بلغت الآن،إنى الآن بالغة لئلايكون كذبًا صريحًا لأنه حيث أمكن إحياء الحق بالتعريض ،وهو أن يريد المتكلم ما هوخلاف المتبار من كلامه كان أولى من الكذب الصريح فافهم.

(رد المحتار ۲:۳۳۶، كتاب النكاح ،باب الولي)

وفي الهندية :يجب أن يعلم أن استعمال المعاريض للتحرز عن الكذب لابأس به.

(فتاوى هندية ۶:۴۳۶، كتاب الحيل ،الفصل الثامن والعشرون في استعمال المعاريض)

خای کې پریږدم په دویم مکتب کې نوکري کول غواړم، آیا دا مصرف اخیستل زما لپاره شرعًا روا دی او که نه؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي عبد الرحم، ضلع دیر... ۱۶/ دسمبر ۱۹۷۴ع

**الجواب:** تاسو ددې مسئول عنه خرڅې غوښتنه څپله مه کوئ ترڅو دروغو ونه ویل شي. (۱) البته په تا باندې پرته له غوښتنې د معهود مصرف واپس کول ضروري نه دي. ځکه ممکنه ده چې حکومت دا روپۍ د مساهله په ډول درکړې، په دې کې فعلیت ته نظر نشي کیدلی. کما أن حکم القصر مبني علی السفر دون المشقة بالفعل (۲). **وهوالموفق**

## په څپله ویزه نور خلک له سرحد څخه اړول او روپۍ پرې اخیستل

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې زموږ خلک د قطر، دوبی او وغیره پاسپورټونه اخلي او د ویزې اخیستلو په وخت کې په ویزه باندې داسې لیکي مثلاً چې زما پنځه زامن دي. بیا له نورو خلکو څخه پنځه زره یا شپږ زره روپۍ واخلي هغوی تر قطر پورې ورسوي او حکومت ته دا وایي چې دا زما زامن دي. آیا دا روا دي؟

---

۱) وفي الكبائر :وفي الصحيحين "أنه عليه الصلوة والسلام قال :آية المنافق ثلاث وإن صلّى وصام وزعم أنه مسلم ،إذاحدث كذب وإذا وعد أخلف وإذا ائتمن خان.
(الكبائر ۱۴۰ ،الكبيرة الثلاثون الكذاب في غالب أقواله)

۲) قال العلامة حسام الدين رحمه الله تعالى :والسفر علة للرخصة اسماً وحكماً لامعنى فان المؤثر هی المشقة لكن السبب أقيم مقامها تيسيراً.
(حسامي ۱۳۱ ،بحث القياس)

دویم یو کس په بل کس باندې خپله ویزه په اته زره باندې خرڅوي او دا شرط لګوي چې کله هغه له سرحده تیر شي او قطر ته ورسیږي نو ویزه به بیرته واپس ورکوي، آیا دا شرط او دا ډول بیع روا ده؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي: بنده علی محمد. بلوچستان ۷۵ھ/۱۱/۱۱

**الجواب:** درواغ ویل او دوکه ورکول ناروا امور دي (۱) او د ویزې خرڅول د خروج حق خرڅول دي او ناروا دي. كما في الأشباه: لايجوز الاعتياض عن الحقوق المجردة كحق الشفعة، هامش رد المحتار ۴: ۱۴ (۲) إلا أن يحمل على النزول عن الوظائف بمال (۳)، وهوالمصوب.

---

۱) عن ابن عمر رضي الله تعالى عنهما قال قال رسول الله ﷺ: إذاكذب العبد تباعد عنه الملک ميلًا من نتن ماجاءبه، رواه الترمذي.

(مشکوة المصابيح ۴۱۳، کتاب الأداب، باب حفظ اللسان والغيبة والشتم)

وقال الإمام البخاري رحمه الله تعالى تعليقًا: قال النبي ﷺ: الخديعة في النار.

(الصحيح لإمام البخاري ۱: ۲۸۷، باب النجش)

۲) ردالمحتار ۴: ۱۵، کتاب البيوع، مطلب في بيع الاستجرار)

۳) وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله وعليه بجواز النزول عن الوظائف بمال) قال العلامة العيني في فتاواه ليس للنزول شيئ يعتمد عليه ولكن العلماء والحكام مشوا ذلک للضرورة.... واستدل بعضهم للجواز بنزول سيدنا الحسن بن علي رضي الله تعالى عنهما عن الخلافة لمعاوية رضي الله تعالى عنه على عرض وهو ظاهرٌ أيضًا وهذا أولى مما قد منا في الوقف عن الخيرية من عدم الجواز.

(رد المحتار ۴: ۱۶، ۱۷، کتاب البيوع، مطلب في النزول عن الوظائف بمال)

## د ملازم په ډاکټر د جعلي نسخې لیکل او په هغې باندې له حکومت څخه د روپیو اخیستل

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې معذورانو ته میډیکل الاونس ورکول کیږي، لومړی په ډاکټر معاینه وکړي نسخه اخلي، له دې وروسته له دواکاندار دوایي خرڅوونکي سره د کیش کاته کیږي او هغه دغه کیش ورانديې کوي او روپۍ ترلاسه کوي، مګر یوشمیر ملازمین د ناروغ له بنودلو پرته ډاکټر ته وایي چې ما په خپل ناروغ باندې دومره مصرف کړی مثلا دوه یا درې سوه روپۍ، ما ته د معاینې برچه جوړه کړه. یعنې د ډاکټر د تعلق په بناء باندې په جعلي نسخه باندې روپۍ راوباسي. نو دا جعلي نسخه ورکول، د کیش ورقه ورکول شرعًا څنګه دي؟ د ډاکټر په حق کې، د دواء رخوونکي په حق کې او د ناروغ په حق کې ددې څه حکم دی؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي ډاکټر عبد الشکور، کمپاونډ هسپتال.
چمله بونیر .... ۱۷/ جمادی الاول ۱۴۰۲هـ.

**الجواب:** که چیرته د پورتنیو افسرانو له طرفه ددې اجازه نه وي نو دا اقدام او دا روپۍ ناروا دي، دغه ملازم، ډاکټر او نسخه فروش د دروغو ویلو او دوکه ورکولو مرتکب دي او دا ناروا کار دی. (۱) **وهوالموفق**

## په دوکه د بل چا په سرټیفیکیټ (سند) باندې داخله کول

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې عمرو د

---

۱) عن سفیان بن أسد الحضرمي رضي الله تعالی عنه قال سمعت رسول الله ﷺ یقول: کبرت خیانة أن تحدث أخاک حدیثًا هولک به مصدق وأنت به کاذب (رواه أبوداؤد. (مشکوة المصابیح ۴۱۳، باب حفظ اللسان والغیبة والشتم)

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: أن کل مقصود یمکن التوصل إلیه بالتصدیق والکذب جمیعاً فالکذب فیه حرام.

(رد المحتار ۵:۳۰۲، کتاب الحظر والإباحة، قبیل کتاب إحیاء الموات)

زید په سرټیفیکیټ (سند) په دوکه باندې داخله وکړه او سند عمرو حواله کړی هم دی. اوس آیا زید ګناه وکړه؟ **بینواتوجروا**

المستفتي: نامعلوم

**الجواب:** دی دې په توبه او استغفار باندې اکتفاء وکړي (۱) دا **أهون البليتين** دی (۲) فقط

## د پاکستاني لپاره د افغان مهاجر په نوم د روپیو او غنمو اخیستلو حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یو افغان مهاجر له یوه ځایي اوسیدونکي سره اوسیږي. د همدغه ځایي اوسیدونکي نوم د افغان مهاجرینو په لیست کې دی. همدا ځایي اوسیدونکی له حکومت څخه غنم یا روپۍ د ځان لپاره د افغان مهاجر په بڼکاره کولو سره اخلي. ایا دا کس د همدې غنمو یا روپیو حقدار دی او که نه دی؟ او آیا دا غنم او روپۍ هغه ته حرامې دي که حلالې؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي: محمد نور سید باجوړي، متعلم حقانیه..۸/ اګست ۱۹۸۳ع

**الجواب:** دروغ ویل حرام دي، (۳) مګر د دروغو ویلو له وجې اجناس حاصل

---

۱) قال الله تبارك وتعالى: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا تُوبُوا إِلَى اللَّهِ تَوْبَةً نَّصُوحًا.
(سورة التحريم: آيت۸)

۲) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: أن من ابتلى ببليتين فإن تساويا خير وإن اختلفا اختار الأخف. (الدر المختار ۱:۳۰۳، باب شروط الصلاة)

۳) قال الله تعالى: إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ كَذَّابٌ"
(سورة الغافر: آيت۲۸)

وفي صحيح البخاري: أنه عليه السلام قال: آية المنافق ثلاث وإن صلّى وصام وزعم أنه مسلم، إذا حدث كذب، وإذا وعد أخلف، وإذا ائتمن خان.
(الكبائر ۱۴۰، الكبيرة الثلاثون: الكذاب في غالب أقواله)

شوي، غنم وغيره (د شراء په ډول يا د بخشش په ډول) حرمت د امر د قواعدو خلاف دي او غير ثابت دي **ونظيره بيع الغرر والنجش** [1]، **وهوالموفق**

---

۱) عن أبي هريرة رضي الله تعالىٰ قال :نهى رسول الله ﷺ بيع الحصاة وبيع الغرر....
عن ابن عمر رضي الله تعالىٰ عنهماقال :نهى عن النجش.

وقال العلامة النووي رحمه الله تعالىٰ :أماالنجش وهو أن يزيد ثمن السلعة لالرغبة فيها بل ليخدع غيره ويغره ليزيد ويشتريها،وهذاحرام بالإجماع والبيع صحيح....إعلم أن التصرية حرام....لأنه غشّ وخداع وبيعهاصحيح مع أنه حرام.
(حاشية النووي على صحيح المسلم ۲،۳ : ۲، كتاب البيوع ،باب بطلان بيع الحصاة)

الله الله

بسم الله الرحمٰن الرحیم

قال رسول الله صلی الله علیه وسلم

سباب المسلم فسوق

وقتاله کفرٌ

(رواه مسلم)

# باب الشتم

## حق علماوو ته کنځل کول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې حق علماء کرامو ته چې څوک کنځل کوي د هغوی څه حکم دی؟ **بينواتوجروا**.

المستفتي: ګل حسن مظلوم، کوهاټ. ۱۲ جمادی الاول ۱۹۹۷ع

**الجواب:** اهل حق علماوو ته کنځل موجب فسق دی [۱] او دغه کس کنځل کوونکی مردود الشهادة دی. [۲] **وهوالموفق**

## په کنځل کوونکي او ور کرخوونکي کې کوم يو زيات مجرم دی؟

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې زمونږ په کلي کې يوه مسئله متنازع فيها وه څو کسانو په کومو کې چې زيد هم وو. يوه مولوي صاحب ته ورغلل چې په دې باره کې شرعي فيصله صادره کړي. مولوي صاحب زيد ته وويل چې ته حرام خور يې او زما د زوم څمکه په زوره خورې.

---

۱) عن عبد الله رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: سباب المسلم فسوق. (صحيح البخاري ۲:۸۹۳، كتاب الأدب، باب ما ينهى عن السباب واللعن)

۲) وفي الاختيار: ولا (تقبل شهادة) من يظهر سبّ السلف لفسقه ولا الشتام للناس والجيران. (الاختيار لتعليل المختار ۲:۱۷۸، كتاب الشهادات، فصل أحكام ردّ الشهادات)

وفي الدر المختار: ولا تقبل شهادة من ...يظهر سبّ السلف لظهور فسقه ...وإنما قيدنا بالسلف تبعاً لكلامهم وإلا فالأولى أن يقال سبّ مسلم لسقوط العدالة بسب المسلم وإن لم يكن من السلف كما في السراج والنهاية.
(الدر المختار ۴:۴۲۶، كتاب الشهادات، باب القبول وعدمه)

ددې خبرې په اوریدو سره زید وویل چې د هغې په باره کې زه څو ځلې تانه راغلی وم چې ته په دې باره کې فتوی صادره کړې او له ما سره چې د هغه کوم حق دی زه به یې هغه ته ورکړم. لیکن تا فتوی صادره نکړه او اوس فضول خبرې کوې، کله چې زید دا خبرې وکړې نو مولوي صاحب په غوسه شو او زید ته یې نهایت فحش کنځل وکړه. زید ډیر ښه مسلمان دی لیکن په جوش راغی هغه مولوي صاحب ته هم کنځل وکړه. بیا مولوي صاحب وویل چې تا زما توهین او بې عزتي کړې. لهذا ته زما پسې لمونځ مه کوه. همدارنګه د مولوي صاحب زوی د جمعې په ورځ په لاسپیکر باندې اعلان وکړو چې ترڅو پورې زید په لاسپیکر باندې د خپلې توبې اعلان ونه کړي زید زما پسې لمونځ نه شي کولی، ځکه چې هغه زما د پلار توهین او بې عزتي کړې ده. د کافرانو او خنزیرانو کار یې کړی دی، اوس د ذکر شوي صورت په نظر کې نیولو سره دا واضحه کړئ:

(۱) مولوي صاحب چې کوم کنځل کړي دي د شریعت له مخې د هغه څه حکم دی؟

(۲) د کنځل ور کړونکو والا کس څومره جرم کړی؟ آیا په رښتیا د مولوي صاحب په اقتداء کې د لمانځه کولو قابل نه دی؟

(۳) آیا د فسق نسبت د زید او مولوي صاحب دواړو طرفته کیږي او که صرف د زید طرفته کیږي؟

(۴) ایا توبه کول او معافي غوښتل په لاسپیکر او عام محضر کې ضروري ده یا که په تنهائي کې صلح وکړي نو هم کافي کیږي؟

(۵) د مولوي صاحب د نائب په باره کې څه حکم دی؟ بهر صورت ټول صورتونه ستاسو په وړاندې دي؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي: عبد المالک، خطیب جامع مسجد کیمل پور

**الجواب:** د مستفتي د صدق په شرط مولوي صاحب فاسق شوی دی، **قال رسول الله صلی الله علیه وسلم سباب المسلم فسوق (مسلم)** (۱).

(۲) مولوي صاحب د زید په نسبت زیات مجرم دی (**لأن البادء أظلم**) لیکن اقتداء صحیح ده اګر که امام راضي نه وي (۲).

(۳) چونکې دوارو کنځل کړي لهذا دواړه د فسق مرتکب شوي دي (۳).

(۴) کله چې ګناه په لاسپیکر کې نه ده شوې نو توبه هم په لاسپیکر کې نشته، **ان سراً فسراً وان جهراً فجهرٌ (هدایه)** (۴).

(۵) په ظاهره تعصب معلومیږي

**نوټ**: د داسې مسائلو حل فتوی بازي نه ده، بلکې د مشرانو خلکو لپاره ضروري ده چې جانبین صلحې ته تیار کړي والسلام **وهوالموفق**

---

۱) (صحيح مسلم ۱:۵۸، كتاب الإيمان، باب قول النبي ﷺ سباب المسلم فسوق)

۲) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالىٰ: والإمام ينوي صلاته فقط ويشترط لصحة الاقتداء نية إمامة المقتدي بل لنيل الثواب عند إقتداء أحد به قبله كمابحثه في الأشباه. (الدر المختار ۱:۳۱۲، مبحث النية، باب شروط الصلاة)

۳) قال العلامة النووي رحمه الله تعالىٰ: فسب المسلم بغيرحق حرام باجماع الأمة وفاعله فاسق. (حاشية النووي على صحيح المسلم ۱:۵۸، كتاب الإيمان، باب بيان قول النبي ﷺ: سباب المسلم فسوق)

۴) قال العلامة المرغيناني رحمه الله تعالىٰ: والتوبة على حسب الجناية فالسر بالسر والإعلان بالإعلان.

(الهداية ۳:۱۷۴، كتاب الرجوع عن الشهادات)

## تپولو علماوو طبیبانو او پولیس والاوو ته د ظالم ویونکي حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یوه کس وبلي چې ټول حکیمان، ټول مولوي صاحبان او ټول پولیس والا ظالمان دي، د دغه کس شرعًا څه حکم دی؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي میا عبد الرشید. ضلع جهلم

**الجواب:** ټپولو علماوو او طبیبانو ته ظالم ویل دروغ او فسق دی. بلکې د عموم مراد کیدو په تقدیر باندې کفر دی[۱]، **قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: سباب المسلم فسوق (رواه مسلم)[۲]، وفي الهندية ۲: ۱۸۹، الأصل في وجوب التعزير أن كل من ارتكب منكرًا أو آذى مسلمًا بغير حق بقوله أو بفعله يجب التعزير[۳]، الخ، قلت: وسبّ جميع العلماء وبعضهم سبّ العلم والدين باللزوم البين، فافهم، وهو الموفق**

## سید ته د کنځل کوونکي حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یوه کس د رمضان ځلورمه روژه نیولې وه د هوش په حالت کې یې یوه سید ته کنځل وکړه، دی په خپلو همدې کنځلو باندې پښیمانه هم نه دی. د شریعت د قانون له مخې په سوال کې د ذکر شوي کس څه حکم دی؟ ایا مسلمان د هغه سره تعلق ساتلی شي؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي: سید زینت حسن شاه بخاري. حویلیان. ۶۹ع/ ۱۲/ ۲۸

---

۱) في الهندية: وفي النصاب: من أبغض عالمًا من غير سبب ظاهر خيف عليه الكفر... ويخاف عليه الكفر إذا شتم عالمًا أو فقيها من غير سبب. (فتاوى هندية ۲: ۲۷۰، الباب التاسع في أحكام المرتدين، منها ما يتعلق بالعلم والعلماء)

۲) (صحيح المسلم ۱: ۵۸ كتاب الإيمان، باب بيان قول النبي صلی الله علیه وسلم سباب المسلم فسوق)

۳) (فتاوى هندية ۲: ۱۶۸، فصل في التعزير)

**الجواب:** چونکه مسلمان ته کنځل کول فسق دی، **قال رسول الله ﷺ: سباب المسلم فسوق.** (۱) او په هغه باندې توبه کول ضروري دي (۲) همدارنګه معافي غوښتل هم ضروري دي او سره له تینګاره (که چیرته مصلحت وو) د هغه سره تعلق ختمول ېکار دی، (۳) لیکن د جومات او په جماعت سره د لمانځه کولو منعه کول حرام او ممنوع دی. **قال الله تعالیٰ: وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ مَنَعَ مَسَاجِدَ اللَّهِ أَنْ يُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُ** (۴) **وهو الموفق**

## میره ته د کنځل کوونکي ښځې حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې یوې ښځې خپل میره ته د ډیرو کسانو پر وړاندې دا الفاظ وویل چې ته کافر یې. ستا پلار دی او همدارنګه نور ناوړه الفاظ یې وویل. نو د همدې ګستاخې ښځې څه حکم دی؟ **بینوا توجروا**

المستفتي: محمد بشیر، ایبټ آباد ۲۶/شوال ۱۴۰۲ هـ.

**الجواب:** د صدق او ثبوت په شرط دا ښځه فاسقه او ګنهګاره ده، **لحدیث: سباب**

---

۱) (صحیح البخاري ۲:۸۹۳ کتاب الأدب ،باب ما ینهی عن السباب واللعن)

۲) قال العلامة العیني رحمه الله تعالیٰ: قال ابن المبارک: حقیقة التوبة لها ست علامات، الندم علی ما مضی، والعزم علی أن لایعود، ویؤدی کل فرض ضیعه، ویؤدی إلی کل ذي حق حقه من المظالم.

(عمدة القاري ۲۲:۲۷۹، کتاب الدعوات ،باب التوبة)

۳) في المرقاة: فإن هجرة أهل الأهواء والبدع واجبة علی مرّ الأوقات مالم یظهر منه التوبة والرجوع إلی الحق.

(مرقاة المفاتیح ۹: ۲۶۲، باب ما ینهی عنه من التهاجر والتقاطع)

۴) (سورة البقرة: آیت نمبر ۱۱۴)

المسلم فسوق،(۱) په دغه ښخه باندې ضروري ده چې د الله تعالی څخه معافي وغواړي او له میړه څخه هم معافي وغواړي (۲) وهوالموفق

## محدثينو ته د فحش کنځل کوونکي کس حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې زيد ويلي چې له مړي سره د اسقاط په وخت کې د قرآن مجيد ايښودل او په دايره کې يې ګرځول په هيڅ قولي، فعلي حديث، صحابي، تابعي، تبع تابعي او د مجتهد په قول سره ثابت نه دي، بلکې بدعت دی او عمرو ويلي چې دا ثابته ده او د ابوالليث سمرقندي څخه روايت وراندې کوي چې عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د يو صحابي او يوې صحابيه په جنازه کې د قرآن مجيد څه برخه ګرځولې وه، همدارنګه په طحاوي کې هم همداسې ليکل شوي دي. زيد ويلي دي چې د سمرقندي ولا روايت بالکل جعلي دی، ټولو محدثينو د دغه منعه کړې او ليکلي يې دي چې دغه روايت کوم رافضي په عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې محض دروغ تړلي دي. همدې وينا سره عمرو محدثينو ته کنځل وکړه، د مفعوليت نسبت يې ورته وکړو او وې ويل که چيرته هغوی دا وخت موجود وای نو ما به له هغوی سره وطي کړې وای، اعاذنا الله من ذلک، نو عرض دا چې د مذکور کس په باره کې کوم شرعي حکم دی هغه راوليږئ؟ په دې خبره باندې ډير زيات خلک شاهدان دي **بينواتوجروا**.

المستفتي: سيد محمد شاه، اډينزئي ۲۳/جون ۱۹۷۵ع

---

۱) (صحيح المسلم ۱:۵۸، کتاب الإيمان، باب بيان قول النبي ﷺ سباب المسلم فسوق)

۲) قال العلامة النووي رحمه الله تعالىٰ: أن لها (التوبة) ثلثة أركان: الإقلاع والندم على فعل تلک المعصية والعزم على أن لا يعود إليها أبداً، فإن كانت المعصية لحق آدمی فلها ركن رابع وهوالتحلل من صاحب ذلک الحق...واتفقوا على أن التوبة من جميع المعاصي واجبة.

(حاشية النووي على صحيح المسلم ۲:۳۵۴، كتاب التوبة)

**الجواب:** داسې جاهلانه کلام ویل خو د وضاعینو متعلق هم منکر او شنیع دی، فضلا عن غیرهم، که چیرته دغه کس توبه کوونکی او پښېمانه نه شي هغه ته تعزیر ورکول ضروري دي. [۱] لږ تر لږه د هغه سره ترک موالاة پکار دی. [۲]

کما في الهندیة: **وقیل ان کان المنسوب من الأشراف کالفقهاء والعلویة یعزر وإن کان من العامة لایعزر، وهذا أحسن، کذافی الهندیة (هندیه ۲: ۱۸۹)** [۳] **وهوالموفق.**

## د تره زوی او خویندو ته د شیطان ویونکي کس حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یو کس خپل د تره زوی او خویندو ته وویل چې تاسو غټ شیطان یاست، ددې کس لپاره شرعي سزا څه ده؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي: نامعلوم

**الجواب:** دا کس ګنهګار دی، په هغه باندې ضروري ده چې له الله تعالی څخه معافي وغواړي او هغه کسان هم راضي کړي [۴]

**قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: سباب المسلم فسوق**

---

۱) وقال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالی: وعزر کل مرتکب منکر أو موذی مسلم بغیر حق بقول أو فعل. (الدر المختار ۳: ۹۹، باب التعزیر)

۲) في المرقاة: فان هجرة أهل الأهواء والبدع واجبة علی مرّ الأوقات مالم یظهر منه التوبة والرجوع إلی الحق. (مرقاة المفاتیح ۹: ۲۶۲، باب ما ینهی عن التهاجر والتقاطع)

۳) (فتاوی هندیة ۲: ۱۶۸، فصل في التعزیر)

۴) في المرقاة: والتوبة في الشرع: ترک الذنب لقبحه، والندم علی ما فرط منه، والعزیمة علی ترک المعاودة، وتدارک ما أمکنه أن یتدارک من الأعمال بالإعادة...

وزاد النووي إن کان الذنب متعلقا ببني آدم فلها شرط آخر وهو ردّ المظلمة إلی صاحبها أو تحصیل البراءة منه.

(مرقاة المفاتیح ۵: ۱۲۲، کتاب الدعوات، باب الاستغفار والتوبة)

(رواه مسلم)[۱] وهوالموفق.

## وروړ ته د کنځل کوونکي حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې يو کس خپل سکني کوچني وروړ ته د عامو خلکو پر وړاندې کنځل وکړه، يعني په دې الفاظو چې ستا د مور سره نکاح کوم او ستا د خور سره نکاح کوم. ددې کس لپاره د شريعت څه حکم دی؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي نامعلوم ۱۹۷۲ع/۱۰/۱۲

**الجواب:** کنځل کوونکی فاسق دی، **لحديث: سباب المسلم فسوق (رواه مسلم)**[۲] د هغه لپاره ضروري ده چې توبه وکړي او له وروړ څخه معافي وغواړي.[۳] **وهوالموفق**

## ميرني مور ته د کنځل کوونکي حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې يو کس محمد دليل خپلې ميرنی مور ته کنځل وکړل او وې ويل چې له تا سره نکاح وکړم. نو په داسې کس باندې په شريعت کې څه تعزير دی؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي نامعلوم ۱۹۷۲ع/۱۱/۱۵

**الجواب:** داکس فاسق او د تعزير لائق دی. **قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: سباب المسلم**

---

۱،۲) (صحيح مسلم۱:۵۸، کتاب الإيمان، باب بيان قول النبي ﷺ سباب المسلم فسوق)

۳) في المرقاة: والتوبة في الشرع: ترک الذنب لقبحه، والندم على ما فرط منه، والعزيمة على ترک المعاودة، وتدارک ما أمكنه أن يتدارک... وزاد النووي وقال: إن كان الذنب متعلقًا ببني آدم فلها شرط آخر وهو ردّ المظلمة إلى صاحبها أو تحصيل البراءة منه. (مرقاة المفاتيح ۵:۱۲۲، کتاب الدعوات، باب الاستغفار والتوبة)

فسوق، (رواه مسلم) (۱) وفي الأشباه: كل معصية ليس فيها حد مقدر ففيه التعزير انتهى.(۲) وهوالموفق.

## يو چا ته د شيطان په ويلو په نكاح باندې اثر نه لويږي

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې پرون له يوه عربي سره زما مجلس وو په كوم كې چې زمونږ په مينځ كې خبرې اترې وشوې. هغه زما حق په زوره اخيستل غوښتل، څه وخت وروسته زما يوه ملګري ټيليفون وكړ، او راته وې ويل ولې خفه يې؟ ما ورته وويل چې اوس يو شيطان راغلى وو، هغه زما دماغ خراب كړه. كله چې هغه ماته ډيرې ناوړه خبرې وكړې. لهذا پوښتنه دا ده چې د همدې الفاظو ويلو څه حكم دى؟ په دې الفاظو سره په نكاح باندې كوم اثر پريوځي او كه نه؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: امين الله، ابوظبي، يو-اى-اى. ۲۱، محرم الحرام ۱۳۰۳هـ

**الجواب:** كه چيرته تا هغه كس ته د شيطان لفظ د هغه د ناوړه صفتونو او ناوړه اخلاقو له وجې ويلي وي؛ نو په دې صورت كې هيڅ حرج نشته. البته اينده د احتياط څخه كار اخله. ځكه چې بلا وجې يو چا ته شيطان ويل صحيح نه دي (۳) او په نكاح باندې هيڅ اثر نه لويږي. **وهوالموفق**

---

۱) (صحيح مسلم ۱: ۵۸ كتاب الإيمان، باب بيان قول النبي ﷺ سباب المسلم فسوق)

۲) (الأشباه والنظائر ۱۸۸، كتاب الحدود والتعزير)

۳) قال الله تبارك وتعالى: وَلَا تَنَابَزُوا بِالْأَلْقَابِ أى لا تداعوا بالألقاب، وهي التي يسوء الشخص بسماعها. (تفسير ابن كثير ۴: ۲۶۸، سورة الحجرات، آيت نمبر ۱۱)

وقال المفتي محمود حسن الجنجوهي: *سوال:* چاته شيطان ويل څه حكم لري؟

الجواب حامداً ومصليا: كه څوک شيطاني كارونه كوي، بيا هم هغه ته شيطان ويل صحيح نه دي، فقط.

(فتاوى محمودية ۱۴: ۱۱۴، باب التعزير)

## د امام توهين او هغه ته د كنځل كوونكي حكم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې يو كس د خپل استاذ او امام سره په ناحقه جګړه وكړه، په عام محضر كې يې هغه ته د دله، ديوث او بې غيرته په شان الفاظ وويل او كنځل يې ورته وكړل او له دې سره له كور او كلي څخه د وباسلو اخطارونه يې هم وركړه. د اټلس كلونو امامت باوجود هغه له امامت څخه منعه كوي. دا په الهي قانون كې څومره عظيمه ګناه كيدلى شي چې د هغه څخه پيش امام ناراضه دى او د هغه د رضا كولو كوشش نه كوي او يو بې علمه او جاهل انسان راولي او په مصلى باندې دروي او هغه هم له دې وجې چې هغه د خان صاحب هم نظرى دى. نو شرعي حكم په دې صورت كې څه دى؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: عبد الله، پشاور ۱۸/ ستمبر ۱۹۷۹ع

**الجواب:** هر مسلمان ته خصوصا د امام توهين او كنځل حرام دي. **لحديث:ولن تحقرأخاك(مشكوة)** [۱]، **لحديث: سباب المسلم فسوق(رواه مسلم)** [۲] پس په دغه كس باندې ضروري ده چې د الله تعالى څخه معافي وغواړي او همدغه امام صاحب راضي كړي [۳] **وهوالموفق.**

---

۱) عن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ:....بحسب امرء من الشر أن يحقر أخاه المسلم. (مشكوة المصابيح ۴۲۲، باب الرحمة على الخلق)

۲)(صحيح المسلم۵۸: ۱كتاب الإيمان ،باب بيان قول النبي ﷺ :سباب المسلم فسوق)

۳) قال العلامة النووي رحمه الله تعالى :أن لها (التوبة) ثلثة أركان، الإقلاع والندم على فعل تلك المعصية والعزم على أن لا يعود إليها أبداً، فإن كانت المعصية لحق آدمي فلها ركن رابع وهوالتحلل من صاحب ذلك الحق...واتفقوا على أن التوبة من جميع المعاصي واجبة. (حاشية النووي على صحيح المسلم ۲:۳۵۴، كتاب التوبة)

## د خسر اینګور وهل او په ناوړه کنځل کولو سره د نکاح ماتېدو مسئله

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې زما خسر ماته ناوړه ناوړه كنځل كوي چې ستا د اندام وينځلو ..... د تناسل آله ..... او زما غاړه يې هم وخنډل، ايا د داسې ناوړه الفاظو په اورېدو باندې زما په خسر باندې كوم حد جاري كيږي او كه نه؟ ايا په دې الفاظو سره زما نكاح نه فاسد يږي؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي نامعلوم

**الجواب:** دغه كس د كنځل كولو له وجې فاسق دى، **قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: سباب المسلم فسوق** (۱) او په هغه باندې توبه كول ضروري دي. (۲) ليكن باوجود ددې نكاح ته هيڅ نقصان نه رسيږي **وهوالموفق**

## خواښې ته د فحش كنځل په كولو سره د نكاح او د ايمان ختميدو مسئله

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې اورنګزيب د خپلې ښځې مور ته په عام مجلس كې داسې وويل چې زه له تا سره د ښځې په شان عمل وكړم او ستا ټول اولاد زما دى نو آيا (۱) دا انسان په محمدي صلى الله عليه وسلم شريعت كې مسلمان پاتې كيدى شي؟

(۲) آيا د داسې كس په ايمان كې فرق نشي راتلى؟

(۳) په محمدي صلى الله عليه وسلم شريعت كې د داسې الفاظو په ويونكي باندې څه حد شته؟

(۴) آيا د هغه ښځه هغه ته حلاله پاتې كېدى شي- يعنې نكاح يې ځنګه ده؟

---

۱) (صحيح البخاري ۲:۸۹۳، كتاب الأدب، باب ما ينهى عن السباب واللعن)

۲) قال الله تبارك تعالى: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا تُوبُوا إِلَى اللَّهِ تَوْبَةً نَّصُوحًا.

(سورة التحريم آيت ۸)

(۵) د همداسې الفاظو ویونکی فاسق دی که ګنهګار، د همدې دوه خبرو په شریعت کې څه حکم دی؟

(۶) ایا د اورنګزیب لپاره مناسبه وه چې هغه خپلې خوابنې ته وویل ستا تول اولاد زما دي، په داسې حال کې چې خوابنې د مور حیثیت لري، نو د کومې لور سره بې چې نکاح شوې ده. د هغې لپاره د داسې الفاظو په ویلو سره بنځه تري فارغیږي او کنه؟ د هرې پوښتنې جلا جلا ځواب ولیکئ؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي محمد اشرف

**الجواب:** (۱) هو مسلمان دی[۱]

(۲) نه پریوځي

(۳) ترک موالاة او تعلقات[۲]

(۴) صحیح ده.

(۵) ترک موالاة او تعلقات[۳]

(۶) قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: سباب المسلم فسوق (رواه مسلم)[۴] د همدې حدیث په بناء دا کس فاسق دی، په هغه باندې توبه کول او د خوابنې رضا کول

---

۱) قال الإمام أبوحنيفة رحمه الله تعالى: ولا نكفر مسلماً بذنب من الذنوب وإن كانت كبيرة إذا لم يستحلها ولانزيل عنه اسم الإيمان.
(الفقه الأكبر ۷۱، الكبيرة لا تخرج المؤمن عن الإيمان)

۲، ۳) وفي المرقاة: قال الخطابي: رخص للمسلم أن يغضب على أخيه ثلاث ليال لقلته ولا يجوز فوقها إلا إذا كان الهجران في حق من حقوق الله تعالى فيجوز ...فإن هجرة أهل الأهواء والبدع واجبة على مرّ الأوقات مالم يظهر منه التوبة والرجوع إلى الحق.
(مرقاة المفاتيح ۹:۲۶۲، باب ما ينهى عن التهاجر والتقاطع)

۴) (صحيح المسلم ۱:۵۸، كتاب الإيمان، باب بيان قول النبي ﷺ: سباب المسلم فسوق وقتاله كفر)

ضروري دي [۱]، ليکن د هغه ايمان او نکاح ته نقصان نه رسيږي يعني دواړه باقي دي. وهوالموفق

## خور ته د کنځل کوونکي او د هغې اولاد ته د حرامي ويونکي حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې مسمی (محمد صابر) خپلې سکنې خور ته ناروا الفاظ په دې ډول وويل چې ته يوه بازاري ښځه يې، ستا ځوانې لونړه هم بازارې دي او باقي ځومره اولاد مو چې دي هغه حراميان دي. بلکې له دې يې هم سخت الفاظ استعمال کړه او څو کسان په دې موقع شاهدان هم دي. لهذا په دې باره کې حکم صادر کړئ؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي نامعلوم ۱۹۷۵ع/۸/۳۰

**الجواب:** د صدق او ثبوت په شرط دا کس (محمد صابر) فاسق دی، **قال رسول الله ﷺ: سباب المسلم فسوق، (رواه مسلم)** [۲] په هغه باندې ضروري ده چې د الله تعالی څخه معافي وغواړي، خور او خفه خپلوان هم راضي کړي. [۳] **وهوالموفق**

---

۱) في المرقاة: والتوبة في الشرع: ترک الذنب لقبحه، والندم على ما فرط منه، والعزيمة على ترک المعاودة، وتدارک ما أمكنه أن يتدارک من الأعمال بالإعادة...وزاد النووي إن كان الذنب متعلقًا ببني آدم فلها شرط آخر وهو ردّ المظلمة إلى صاحبها أو تحصيل البراءة منه. (مرقاة المفاتيح ۵:۱۲۲، كتاب الدعوات، باب الاستغفار والتوبة)

۲) (صحيح المسلم ۱:۵۸ كتاب الإيمان، باب بيان قول النبي ﷺ: سباب المسلم فسوق)

۳) قال العلامة النووي رحمه الله تعالى: قال العلماء: التوبة واجبة من كل ذنب... وإن كانت المعصية تتعلق بآدمي فشروطها أربعة، هذه الثلاثة، وأن يبرأ من حق صاحبها ...وإن كانت حد قذف ونحوه مكنه منه أوطلب عفوه.
(رياض الصالحين ۳۴، باب التوبة)

## د زنا په تهمت باندې د شهادت نه ورانډې کوونکي کس حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو د دې مسئلې په باره کې چې شمس الرحمن خپلې ناسکه خور ته کنځل وکړل. د شريعت له مخې د هغه څه حکم دی؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي عبد الرحمن، چکوټي. آزاد کشمير ۷۷ع/ ۱۰/ ۳۰

**الجواب:** که چيرته له کنځل کولو څخه زنا مراد شي؛ نو د څلورو معتمدو شاهدانو د نه قائمولو وروسته دي مسلمان واکمن هغه ته سزا ورکړي (۱) او عوام الناس او علماء دې د هغه سره بېخي تعلقات ختم کړي (۲) **وهوالموفق**

## خپلې ښځې ته ستا له مور او خور سره عقد وکړم او د نورو کنځلو حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو د دې مسئلې په باره کې چې زيد خپلې منکوحې ته په غصه کې په دې الفاظو سره کنځل وکړل چې زه ستا له مور سره عقد وکړم ستا له خور او وغيره سره. دا الفاظ هغه په ډک مجلس کې وويل. د

---

۱) قال العلامة المرغيناني رحمه الله تعالى :الزنا يثبت بالبينة...فالبينة أن تشهد أربعة من الشهود على رجل أوامرأة بالزناء بقوله تعالى :فَاسْتَشْهِدُوا عَلَيْهِنَّ أَرْبَعَةً مِّنكُمْ، وقال الله تعالى : ثُمَّ لَمْ يَأْتُوا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَآءَ...وإذا وجب الحد وكان الزاني محصناً رجمه بالحجارة حتى يموت. (الهداية ۲:۵۰۹، كتاب الحدود)

قال الله تبارك وتعالى :وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَٰتِ ثُمَّ لَمْ يَأْتُوا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَآءَ فَاجْلِدُوهُمْ ثَمَٰنِينَ جَلْدَةً وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَٰدَةً أَبَدًا وَأُولَٰٓئِكَ هُمُ الْفَٰسِقُونَ.

(سورة النور آيت ۴، پاره نمبر ۱۸)

۲) في المرقاة :فإن هجرة أهل الأهواء والبدع واجبة على مرّ الأوقات مالم يظهر منه التوبة والرجوع الى الحق.

(مرقاة المفاتيح ۹:۲۶۲، باب ما ينهى عنه من التهاجر والتقاطع واتباع العورات)

هغه د ښځې وینا ده چې هر کال په رمضان کې په ما خوراک پخوي او خوري یې او که چیرته انکار وکړم نو کنځل کوي او وهل کوي، شریعت مطهره د هغه لپاره څه حکم کوي؟ د هغه د اسلام او نکاح په باره کې څه وایي؟ مسلمانانو ته له هغه سره راشه درشه ساتل پکار دي او که نه؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي: نامعلوم..۱۹؛ شوال ۱۴۸۵هه

**الجواب:** دا کس فاسق او فاجر دی، (۱) خو کافر نه دی. (۲) د هغه نکاح باقي ده او په هغه باندې د جنازې لمونځ صحیح دی. **لأن الکفر هو تکذیب الضروریات (۳) الخ، وهوالموفق**

## خسر ته د بیهوده او فحش کنځل کوونکي حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یو کس خپله ښځه ووهل او کنځل یې ورته وکړه. هغه تنګه شوه او د خپل پلار کور ته لاړه، څه ورځې وروسته پلار هغه د خپل زوم کور ته راوستل او زوم ته یې وویل چې دا مه وهه او مه یې تنګوه، په دې وخت کې زوم خپل خسر ته ډیر بیهوده او فحش کنځل وکړه کوم چې یو کمزوري انسان ته هم کول پکار نه دي.

---

۱) عن عبد الله بن مسعود رضي الله تعالی عنه قال قال رسول الله ﷺ: سباب المسلم فسوق وقتاله کفر ،متفق علیه.

(مشکوة المصابیح ۴۱۱، باب حفظ اللسان والغیبة والشتم)

۲) في شرح العقائد :والکبیرة لاتخرج العبد المؤمن من الإیمان ولاتدخله في الکفر. (شرح العقائد ۸۲)

۳) في مجموعة قواعد الفقه: الکفر لغة: الستر ویقابله الشکر ،وشرعاً: هو تکذیب النبي ﷺ (نعوذ بالله) في شئ مما جاء به من الدین ضرورة. (مجموعة قواعد الفقه: ۴۴۵)

د دغه کس لپاره شرعًا څه حکم دی؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: مولوي عزيز الرحمن، خطيب جامع مسجد، کوهاله، براسته کوه مري ۱۹۷۰ع /۱۱/ ۵

**الجواب:** دا کس فاسق دی، په ده باندې ضروري ده چې خسر رضا کړي او توبه وباسي(۱) قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: **سباب المسلم فسوق، (رواه مسلم)(۲) وهوالموفق**

## رشته دارو ته د تکليف رسوونکي او کنځل کوونکي حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې يو کس خپل سکني د تره زوی ته وويل چې ته زما نيکه يې، ددې سره سره يې د خپل نيکه ښځې ته هم کنځل وکړه، دا ټوله معامله د شاهدانو په موجودگۍ کې شوې وه، لهذا د همداسې کس لپاره په شرع کې څه حکم دی؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: محمد جاويد، پشاور ۱۹۷۳ع /۵/ ۷

**الجواب:** چونکې مسلمان خصوصا رشته دار ته تکليف رسول او کنځل کول فسق دی، لحديث: **سباب المسلم فسوق وقتاله کفر(۳) وحديث: المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده(۴)** وحديث: **کل المسلم على المسلم حرام دمه وماله وعرضه**

---

۱) في المرقاة: والتوبة في الشرع: ترک الذنب لقبحه، والندم على ما فرط منه، والعزيمة على ترک المعاودة، وتدارک ما أمکنه أن يتدارک...وزاد النووي وقال: إن کان الذنب متعلقًا ببني آدم فلها شرط آخر وهوردّ المظلمة إلى صاحبها أو تحصيل البراءة منه. (مرقاة المفاتيح ۵:۱۲۲، کتاب الدعوات، باب الاستغفار والتوبة)

۲،۳) (صحيح مسلم ۱:۵۸، کتاب الإيمان، باب بيان قول النبي ﷺ سباب المسلم فسوق وقتاله کفر)

۴) (صحيح البخاري ۲ کتاب الرقاق، باب الانتهاء عن المعاصي)

**(رواه مسلم)**(۱)، لهذا په دغه کس باندې ضروري ده چې د الله تعالى څخه معافي وغواړي او له همدې رشته دار څخه هم معافي وغواړي (۲)، **وهوالموفق**

## خوښينې او خسر ته د کنځل کوونکي حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې يو سړي خپلې خوښينې ته وويل چې زه به ستا مور داسې وکړم او ډير فحش کنځل يې ورته وکړل، خسر ته يې هم ډير فحش کنځل وکړل او بې عزتي يې وکړه د دغه لپاره شرعي حکم څه دی؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي: محمد سليمان بمعرفت مولوي عبد اللطيف بزاز ۱۹۷۲ء/۱۲/۶

**الجواب:** د مستفتي د صدق په شرط دا کس فاجر دی، **قال رسول الله صلى الله عليه وسلم**: **سباب المسلم فسوق(۳) المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده(۴) أوكما قال.** لهذا په دغه باندې ضروري دي چې توبه وکړي او له همدې کسانو معافي وغواړي (۵) که نه

---

۱) (صحيح المسلم ۲:۳۱۷، كتاب البر والصلة، باب تحريم ظلم المسلم وخذله)

۲) في المرقاة: والتوبة في الشرع: ترك الذنب لقبحه، والندم على ما فرط منه، والعزيمة على ترك المعاودة، وتدارك ما أمكنه أن يتدارك...وزاد النووي وقال: إن كان الذنب متعلقاً ببني آدم فلها شرط آخر وهورد المظلمة إلى صاحبها أو تحصيل البراءة منه.

(مرقاة المفاتيح ۵:۱۲۲، كتاب الدعوات، باب الاستغفار والتوبة)

۳) (صحيح المسلم ۱:۵۸، كتاب الإيمان، باب بيان قول النبي ﷺ سباب المسلم فسوق)

۴) (صحيح البخاري ۲ كتاب الرقاق، باب الانتهاء عن المعاصى)

۵) قال العلامة النووي رحمه الله تعالى: وإن كانت المعصية تتعلق بآدمي فشروطها أربعة، هذه الثلاثة، وأن يبرأ من حق صاحبها...وإن كانت حد قذف ونحوه مكنه منه أوطلب عفوه...ويجب أن يتوب من جميع الذنوب. (رياض الصالحين ۳۴، باب التوبة)

نو په هر مسلمان باندې ضروري ده چې له ده سره غیر ضروري معاملات پرېږدي (۱) **وهوالموفق**

## خوابنې ته کنځل کوونکي باندې د ښځې حرامېدو مسئله

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یو کس د جګړې په وخت خپلې خوابنې ته دا الفاظ وویل چې (له تا سره مې زنا کړې ده، او ما د نکاح مخکې ستا سره زنا کړې، زما ستا سره ناروا تعلقات وو؟

خسر چې کله په هغه باندې د خپلې لور د حرمت دعوه وکړه نو هغه وویل چې خوابنې ماته دا وویل چې اې زاني؛ تا اوس زنا وکړه او راغلی یې. ته فساد خپروې، ماته په دې باندې غوسه راغله؛ نو په خواب کې ما داسې الفاظ وویل چې ما له تا سره زنا کړې ده او له دې پرته نور الفاظ ما نه دي ویلي. د مدعی دعوه بالکل دروغ ده، آیا په دې الفاظو باندې سره ښځه حرامیږي او که نه؟ امید دی چې د مسئلې وضاحت وکړئ؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي: نامعلوم

**الجواب:** د صدق په شرط په دغه کس باندې خپله ښځه حرامه شوې نه ده، ځکه چې دده له انکاري کېدو پرته دا کلمات د غوسې (سبّ) په ډول استعمال شوي، **في الهندية ۱: ۲۹۲ : لوأقر بحرمة المصاهرة يؤاخذ به ويفرق بينهما وكذلك إذا أضاف ذلك الى ماقبل النكاح بأن قال لامرأته كنت جامعت أمك قبل نكاحك يؤاخذ به ويفرق بينهما، والاصرار على هذا الاقرار ليس بشرط حتى لو رجع عن ذلك وقال كذبت فالقاضى لايصدقه لكن فيمابينه وبين الله تعالى ان كان كاذبافيما أقر**

---

۱) في المرقاة: فإن هجرة أهل الأهواء والبدع واجبة على مرّ الأوقات مالم يظهر منه التوبة والرجوع إلى الحق.

(مرقاة المفاتيح ۹: ۲۶۲، باب ما ينهى عنه من التهاجر والتقاطع)

لاتحرم علیه امرأته،(۱) انتهى باختصار يسير، قلت والأخير هو فريضة المفتي(۲) له دې معلومه شوه چې له اقرار وروسته رجوع دیانةً منظوره ده، (۳) نو د امر له ابتداء څخه انکار کول په طریقه اولی منظور کېدی شي. فقط والسلام

**مسلمان ته د کافرمشرک سيک،او له نيا سره نکاح کوم ددې الفاظو ويونکي حکم**

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې يو مسلمان په عام مجلس کې د امام پر وړاندې وويل چې زه تن له خپلې نيا سره نکاح کوم، نيا يې له همدې سره سره وويل چې زما د تره زوی سيک دی. کافر دی او غير مسلم دی او دا يې هم وويل چې تاسو هم ټول مسلمان نه یاست. کافر مشرک او سيکان یاست. ددې انسان لپاره شرعي حکم څه دی؟ او له هغه سره د تعلقاتو ختمول څنګه دي؟ بينواتوجروا.

المستفتي: نامعلوم. ۶۹ع/۱۰/۱۳

**الجواب:** د صدق په شرط دا کس فاسق او فاجر دی،قال رسول الله ﷺ:

---

۱) (فتاوى هندية ۱:۲۷۸،الباب الثالث في بيان المحرمات)

۲) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى :المراد من قولهم يدين ديانة لا قضاءً أنه إذا استفتى فقيها يجيبه على وفق مانوى، ولكن القاضي يحكم عليه بوفق كلامه ولايلتفت إلى نيته إذا كان فيما نوى تخفيف عليه.

(فتاوى تنقيح الحامدية ۱:۳، قبيل كتاب الطهارة)

۳) ويدل عليه ما في شرح المجلة :لوأقر بالطلاق بناء على إفتاء المفتي ثم تبين عدم الوقوع لم يقع يعنى ديانة، أما بين يدي القاضي فلا يصدق في البناء المذكور.

(شرح المجلة ۴:۶۳۸،المادة نمبر ۱۵۸۸)

سباب المسلم فسوق([1]) بلکې په هغه باندې د کفر او زندیقیت خطر دی. ([2]) لهذا د هغه سره دې تعلقات ختم شي، ترڅو توبه وباسي او پښېمانه شي([3]) وهوالموفق

## مسلمان ته بې وجې د فاسق او فاجر ویونکي حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې که چېرته يو کس بل مسلمان ته له کومې وجې يا بلا وجې فاسق او فاجر ووايي، نو د داسې انسان متعلق څه حکم دی؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي: از دفتر الحق، دارالعلوم حقانيه

**الجواب:** دا کس فاسق او د تعزير لائق دی. قال رسول الله ﷺ سباب المسلم فسوق (رواه مسلم)([4]) وفي الدر المختار: ويقذف مسلم بيا فاسق الا أن يكون

---

۱)(صحيح المسلم۵۸:۱کتاب الإيمان،باب بيان قول النبي ﷺ سباب المسلم فسوق)

۲) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالىٰ :وعزر الشاتم بيا كافر، وهل يكفر إن اعتقد المسلم كافراً؟ نعم! وإلا لا،به يفتى شرح وهبانية.(الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ :وفي الذخيرة :المختار للفتوى أنه إن أراد الشتم ولا يعتقده كفراً لايكفر، وإن اعتقده كفراً فخاطبه بهذا بناء على اعتقاده أنه كافر يكفر لأنه لما اعتقد المسلم كافراً فقد اعتقد دين الإسلام كفراً.

(رد المحتار ۳:۲۱۰، باب التعزير)

۳) قال الملا علي قاري رحمه الله تعالىٰ :قال الخطابي : رخص للمسلم أن يغضب على أخيه ثلاث ليال لقلته ولا يجوز فوقها إلا إذا كان الهجران في حق من حقوق الله تعالى فيجوز...فإن هجرة أهل الأهواء والبدع واجبة على مرّ الأوقات مالم يظهر منه التوبة والرجوع إلى الحق.

(مرقاة المفاتيح ۹:۲۶۲، باب ما ينهى عن التهاجر والتقاطع)

۴)صحيح المسلم۵۸:۱کتاب الإيمان،باب بيان قول النبي ﷺ سباب المسلم فسوق)

معلوم الفسق كمكاس مثلا أو علم القاضي بفسقه لأن الشين قد ألحقه هو بنفسه قبل قول القاتل (فتح)[1] ليكن واضحه دې وي چې په موجوده وخت كې زياتره مسلمانان ږيره تراش كوي كوم چې بلا شک او شبه فاسقان دي.[2] لهذا داسې كسانو ته فاسق ويل موجب فسق او موجب تعزير نه دي[3] فقط

## بې څه وجې امام ته د مور او خور كنځل كول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې يو كس خپل امام ته د خلكو پر وړاندې د مور او خور كنځل وكړي، حالانكې د جومات په امام كې هيڅ شرعي قصور نه و. په شريعت مطهره كې د داسې كس څه حكم دى؟ **بينواتوجروا.**

**المستفتي:** قاري عبدالمالک، خطيب جامع مسجد، مظفر اباد. ۱۴/رجب ۱۳۹۰ھ

**الجواب:** قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: **سباب المسلم فسوق**[4] د همدې حديث په بناء دا كس فاسق دى، د هغه لپاره ضروري ده چې توبه وكړي او له امام څخه معافي هم وغواړي[5] فقط

---

۱) (الدر المختار ۳:۲۰۰، باب التعزير)

۲) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: إن الأخذ من اللحية وهي دون القبضة كما يفعله بعض المغاربة ومخنثة الرجال لم يبحه أحد وأخذ كلها فعل يهود الهنود ومجوس الأعاجم، فحيث أدمن على فعل هذا المحرم يفسق.
(فتاوى تنقيح الحامدية ۱:۳۵۱، كتاب الشهادة)

۳) في التاتارخانية: وإذا قال لفاسق يا فاسق أوقال للص يا لص فلاشيئ عليه.
(فتاوى تاتارخانية ۶:۴۱۰، كتاب الحدود، الفصل الثامن في التعزير)

۴) (صحيح البخاري ۲:۸۹۳، كتاب الأدب، باب ما ينهى عن السباب واللعن)

۵) في شرح الفقه الأكبر: التوبة في الشريعة: هي الندم على معصية...وإن كانت عما فرط فيه من حقوق الله تعالى كصلاة وصيام..... (باقي حاشيه په بل مخ)

## مسلمان ته کنځل کوونکي کس ته د تعزیر ورکولو مسئله

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې مسمی رضاء الرحمن کوم چې زما کوچنی سکنی ورور دی، زما ښځې ته يې داسې ناوړه کنځل وکړه د کومو د ليکلو چې تهذيب اجازه نه کوي. د همدې لپاره استدعاء ده چې براه کرم د يوه داسې عاقل بالغ مسلمان لپاره په اسلامي شريعت کې څه تعزير دی؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: نامعلوم

**الجواب:** مسلمان ته کنځل کول فسق دی، **لحديث: سباب المسلم فسوق** (رواه مسلم)(۱) پس په کنځل کوونکي باندې ضروري ده چې د الله تعالی څخه معافي وغواړي او ستاسو ښځه هم رضا کړي (۲) **وهوالموفق**

## د چا له مينې سره د غير فطري عمل کوونکي کنځل کوونکي حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې زما په فصل

---

(د حاشيې پاتې برخه) .... وزكاة فتوبته أن يندم على تفريطه...وإن كانت عما يتعلق بالعباد... فإن كانت المظالم في الأعراض كالقذف والغيبة فيجب في التوبة فيها مع ما قد مناه في حقوق الله تعالى أن يخبر أصحابها بما قال من ذلك ويتحلل منهم... فإذا حللوه سقط عنه ما وجب عليه لهم من الحق.

(شرح الفقه الأكبر ۱۵۷ ،بحث التوبة)

۱)(صحيح المسلم ۱:۵۸ كتاب الإيمان ،باب بيان قول النبي ﷺ سباب المسلم فسوق)

۲) في حاشية صحيح البخاري :التوبة :وهي في الشرع : ترك الذنب لقبحه، والندم على ما فرط منه، والعزم على ترك المعاودة، وتدارك ما أمكنه أن يتدارك من الأعمال بالإعادة، وردّ المظلمات لذويها أوتحصيل البراءة منهم.

(حاشية صحيح البخاري ۲:۹۳۳، كتاب الدعوات ،باب التوبة)

کې د زيد بزې نسوتلي وې، ما منعه کړې نو هغه کنځل وکړل او زما له ميښې سره يې د غير فطري عمل کول تکرار کړی، د داسې کس څه حکم دی؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي: عزيز، مظفر آباد، مری

**الجواب:** دا کس د همدې کنځلو او فحش ويلو له وجې مجرم او ګنهګار دی. **قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: سباب المسلم فسوق (رواه مسلم)**[1] په هغه باندې ضروري ده چې د الله تعالى څخه او له همدې مسلمان څخه معافي وغواړي[2] **وهوالموفق**

## په کنځل کولو سره له ميراثه محرومه کېدل يا د نفقې او د جنازې لمانځه اهليت نشې باطل کېدی

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې

۱: تقريبا له لسو کلونو راهيسې زما ميرمن نافرمانه ده. د نصيحت باوجود منعه نشو د او هر وخت کنځل کوي. آيا په هغې باندې ميره مصرف وکړي؟ او د ميره په دې کې هيڅ قصور هم نشته او آيا د هغې حج کېدلی شي؟

۲: زما زوی واده کړی دی. هغه ماته کنځل کړي دي او د وهلو قصد يې هم کړی دی. داسې زوی د پلار د جايداد مستحق کېدلی شي او که نه؟ تردې پورې يې ويلي چې زما پلار ته د خوراک څښاک لپاره کوم شی مه ورکوئ

---

۱) (صحيح المسلم ۵۸:۱ کتاب الإيمان، باب بيان قول النبي ﷺ سباب المسلم فسوق)

۲) قال النووي رحمه الله تعالى: والمراد بالتوبة هنا الرجوع عن الذنب وقد سبق في كتاب الإيمان أن لها ثلثة أركان، الإقلاع والندم على فعل تلك المعصية والعزم أن لايعود إليها أبداً، فإن كانت المعصية لحق آدمي فلها ركن رابع وهوالتحلل من صاحب ذلك الحق... واتفقوا أن التوبة من جميع المعاصي واجبة وأنها واجبة على الفور.

(حاشية النووي على صحيح المسلم ۲:۳۵۴، كتاب التوبة)

۳: دویم هلک دی هغه موجود نه دی، لیکن د هغه ښځه زما سره بده ژبه چلوي، د هغې څه حکم دی؟ زه وایم چې هغه زوی دې زما په جنازه کې هم ګډون نه کوي، نو آیا دی زما په جایداد کې شریک کېدلی شي او که نه؟ او زما په هغه باندې حق شته او که نه؟ **بینوا توجروا**

المستفتي: قاری عبد الجلیل... ۱۴۰۱ع/۷/۲۶.

**الجواب**: د صدق او ثبوت په شرط دا ښځه فاسقه ده، **لحدیث: سباب المسلم فسوق (رواه مسلم)**[1] البته د عدم نشوز له وجې د نفقې مستحقه ده. [2] او د عدم کفر له وجې د هغې لمونځ، حج او روژه قبولې دي [3]

(ب) کنځل کول د فسق موجب دي، [4] لیکن په دې سره حرمان میراث او د جنازې لمانځه عدم اهلیت نه لازمیږي. **وهوالموفق**

## د عالم لځوا یو چا ته مرتد ویل او د هغه پسې د لمانځه کولو مسئله

**سوال**: څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې (۱) که چېرته

---

۱) (صحیح المسلم ۱:۵۸ کتاب الإیمان، باب بیان قول النبي ﷺ سباب المسلم فسوق)

۲) وفي الهندیة: تجب على الرجل نفقة امرأته المسلمة والذمیة...وإن نشزت فلا نفقة لها حتّى تعود إلى منزله.

(فتاوی هندیة ۱:۵۴۴، کتاب النکاح، الباب السابع عشر في النفقات)

۳) وفي شرح الفقه الأکبر: إن الله لایضیع أجر المؤمنین بل یقبلها منه أی بفضله وکرمه. (الفقه الأکبر: ۷۸، الطاعات بشروطها مقبولة)

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالى: لأن الکبیرة لا تزیل الطاعة.

(رد المحتار ۳:۳۳۱، باب المرتد، مطلب لو تاب المرتد هل تعود حسناته)

۴) عن عبد الله رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: سباب المسلم فسوق وقتاله کفر. (صحیح البخاري ۲:۸۹۳، کتاب الأدب، باب ما ینهى عن السباب واللعن)

يو عالم کوم مسلمان ته مرتد ووايي، نو په شريعت کې دا عالم څه حکم لري؟

(۲) او آيا د همدغه عالم پسې لمونځ کيږي؟ او له هغه سره د خلکو چلند څه ډول پکار دی؟ له هغه سره خبرې اترې راشه درشه ساتل پکار دي او که نه؟ بينواتوجروا.

المستفتي: محمد اجمل، ضلع اټک. ۲۸/رمضان ۱۴۱۰هـ

**الجواب:** (۱) که چيرته په دغه کس کې کفريات يا شرکيات موجود نه وي؛ نو هغه ته مرتد ويل کبيره ګناه ده (۱)

(۲) که چيرته په دغه کس کې کفريات او شرکيات موجود وي؛ نو په دغه کس باندې توبه ضروري ده (۲) او د تېنګار په وخت کې له هغه سره په غم او ښادی کې پريکون ضروري دی (۳) او که چيرته معامله برعکس وه؛ نو په دغه عالم باندې وايسي ضروري ده او د تېنګار په وخت کې ورسره پريکون ضروري دی (۴)، ليکن د هغه پسې اقتداء صحيح دی. **وهوالموفق.**

---

۱) عن أبي ذر رضي الله تعالى عنه أنه سمع النبي ﷺ يقول: لا يرمي رجل رجلًا بالفسوق ولا يرميه بالكفر إلّا ارتدت عليه إن لم يكن صاحبه كذلک.

(صحيح البخاري ۲:۸۹۳، کتاب الأدب، باب ما ينهي عنه من السباب واللعن)

۲) قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالى: واعلم کل مسلم ارتد فإنه يقتل إن لم يتب ...ما يکون کفر اتفاقًا يبطل العمل...وما فيه خلاف يؤمر بالاستغفار والتوبة وتجديد النکاح. (الدر المختار ۳:۲۲۶ باب المرتد)

۳) قال الملاعلي قاري رحمه الله تعالى: قال الخطابي: رخص للمسلم أن يغضب على أخيه ثلاث ليال لقلته ولايجوز فوقها إلّا إذا کان الهجران في حق من حقوق الله تعالى فيجوز فوق ذلک...فإن هجرة أهل الأهواء والبدع واجبة على مرّالأوقات مالم يظهر منه التوبة والرجوع إلى الحق.

(مرقاة المفاتيح ۹:۲۶۲، باب ما ينهى عنه من التهاجر والتقاطع)

## د کنځلمار توبه نه ویستلو سره د ترک موالات مسئله

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو د دې مسئلې په باره کې چې زه د جامع جومات امام يم. مستري محمد عارف په شيطاني چال چلند کې مشکوک ومونډل شو. عزتمند و خلکو ماته راووست. هغه خپله غلطي ومنل پر سمه لار د پابندی اقرار يې وکړو. بيا ما هغه ته وويل چې ته د چا په اشاره باندې چليږې، هغه د څو کسانو نومونه واخيستل. ما د هغو له چال چلند او د هغوی په خبرو باندې له عمل کولو منعه کړې. بيا هماغه څو کسان له ما څخه سخت ناراضه شول. زما خلاف يې پرپاګند شروع کړو او بېهوده خبرې يې وکړې. کومې چې د ليکلو وړ نه دي. زما پسې يې لمونځ او جنازه پرېښودل. د داسې کسانو په باره کې د قرآن او احاديثو په رڼا کې څه حکم دی؟ له هغوی سره ترک موالات څنګه دی؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي: فضل حق. بيرک

**الجواب: قال رسول الله ﷺ: سباب المسلم فسوق وقتاله كفر**(١) د همدې حديث په بناء دغه کسان کوم چې کنځل کوونکي دي خصوصاً امام عالم ته د کنځل کولو په وجه فاسقان دي، په عامو مسلمانانو باندې ضروري ده چې له دوی سره ترک موالات وکړي، ترڅو توبه وباسي او پښېمانه شي (٢) **وهوالموفق**

---

١) (صحيح المسلم ١:٥٨، كتاب الإيمان، باب بيان قول النبي ﷺ سباب المسلم فسوق)

٢) في المرقاة: قال الخطابي: رخص للمسلم أن يغضب على أخيه ثلاث ليال لقلته ولا يجوز فوقها إلا إذا كان الهجران في حق من حقوق الله تعالى فيجوز فوق ذلك... فإن هجرة أهل الأهواء والبدع واجبة على مرّ الأوقات مالم يظهر منه التوبة والرجوع إلى الحق. (مرقاة المفاتيح ٩:٢٦٢، باب ما ينهى عنه من التهاجر والتقاطع واتباع العورات)

## نیکه ته کنځل کوونکي، د امام الحی توهین کوونکي او په دروغو د قسم خوړونکو حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یو تعلیم یافته کس د هوش په حالت کې خپل نیکه ته کنځل وکړهل. په شریعت کې د دغه کس څه حکم دی؟

(۲) دویم کس د جومات د امام توهین کوي. د دغه کس لمونځ په دغه امام پسې کیږي او که نه؟

(۳) یو کس د شاهدانو پر وړاندې له بل کس روپۍ واخیستلې. بیا په خپل مینځ کې ناراضه شول له روپیو څخه یې انکار وکړو، په عدالت کې یې په دروغو قسم وکړو. بیا په خپل منځ کې د رضا وروسته روپۍ واپس ورکړې. له دې معلومه شوه چې ده په دروغو قسم خوړلی و. د دغه کس څه حکم دی؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي: مولوي اسحق، ضلع هزاره. ۱۵ شوال ۱۳۹۵هـ

**الجواب:** کوم کس چې نیکه ته کنځل کوي [۱] یا د امام الحی توهین کوي [۲] یا په دروغو قسم کوي [۳] نو په دغه باندې د فاسق احکام جاري کیږي. په

---

۱) عن عبد الله بن مسعود رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: سباب المسلم فسوق وقتاله كفر.
(صحيح البخاري ۲:۸۹۳، كتاب الأدب، باب ما ينهى من السباب اللعن)

۲) عن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: ... بحسب امرء من الشر أن يحقر أخاه المسلم، كل المسلم على المسلم حرام دمه وماله وعرضه.
(مشكوة المصابيح ۴۲۲، باب الشفقة والرحمة على الخلق)

۳) قال العلامة الذهبي رحمه الله تعالى: الكبيرة الخامسة والعشرون: اليمين الغموس، قال الله تعالى: إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلًا أُولَٰئِكَ لَا خَلَاقَ لَهُمْ فِي الْآخِرَةِ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللهُ وَلَا يَنظُرُ إِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ.
(الكبائر للإمام الذهبي رحمه الله تعالى ۱۱۴، الكبيرة الخامسة والعشرون)

هغه باندې ضروري ده چې توبه وکړي او نیکه او وغیره راضي کړي. (۱) باقي لمونځ د هغه صحیح دی، برابره خبره ده که انفرادي وي او که د همدغه خاص امام پسې وي. **وهوالموفق**

## د ماما بې عزتي او کنځل کوونکي حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یو کس خپل ماما ته په عام محضر کې کنځل وکړه او د بې عزتی مرتکب شو، د هغهٔ حکم دی؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي: محمد یوسف، مکن کلان. ۱۸/ ذی القعده ۱۳۹۵هـ

**الجواب:** د صدق او ثبوت په شرط دغه خوربی فاسق او فاجر دی، لقوله عَلَيْهِ السَّلَامُ: **سباب المسلم فسوق (مسلم)** (۲) په هغه باندې ضروري ده چې توبه وکړي له ماما څخه معافي وغواړي. (۳) **وهوالموفق**

---

۱) في شرح الفقه الأكبر :التوبة في الشريعة : هي الندم على معصية ...وإن كانت عما فرط فيه من حقوق الله تعالى كصلاة وصيام وزكاة فتوبته أن يندم على تفريطه...وإن كانت عما يتعلق بالعباد... فإن كانت المظالم في الأعراض كالقذف والغيبة فيجب في التوبة فيها مع ما قد مناه في حقوق الله تعالى أن يخبر أصحابها بما قال من ذلك ويتحلل منهم...فإذا حللوه سقط عنه ما وجب عليه لهم من الحق.
(شرح الفقه الأكبر ۱۵۷ ،بحث التوبة)

۲)(صحيح مسلم ۵۸:۱ كتاب الإيمان ،باب بيان قول النبي ﷺ سباب المسلم فسوق)

۳) قال العلامة النووي رحمه الله تعالى :قال العلماء : التوبة واجبة من كل ذنب...وإن كانت المعصية تتعلق بآدمي فشروطها أربعة، هذه الثلاثة، وأن يبرأ من حق صاحبها ... وإن كانت حد قذف ونحوه مكنه أوطلب عفوه.
(رياض الصالحين ۳۴، باب التوبة)

## خپل ورور ته د خلکو پر وړاندې د سپک بچیه ویونکي حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره کې چې زيد خپل سکني ورور بکر ته د دوه کسانو په وړاندې وويل چې ته د سپک زوی يې او درې څله يې همداسې الفاظ وويل. د دغه کس لپاره په محمدي ﷺ شريعت کې څه حکم دی؟ **بينوا توجروا**

المستفتي: عجب خان، کوهاله، براسته مری ۱۴۰۰ هـ/ ۱۳/۳

**الجواب:** داسې کس فاسق او فاجر دی، (۱)په هغه باندې ضروري ده چې د الله تعالی څخه معافي وغواړي او ورور راضي کړي (۲)،**وهوالموفق**

....

---

۱) عن عبد الله بن مسعود رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ :سباب المسلم فسوق وقتاله كفر.

(صحيح المسلم ۵۸: ۱كتاب الإيمان ،باب بيان قول النبي ﷺ سباب المسلم فسوق)

۲) قال العلامة النووي رحمه الله تعالى: فإن كانت المعصية بين العبد وبين الله تعالى لاتتعلق بحق آدمي فلها ثلاثة شروط :أحدها :أن يقلع عن المعصية ،والثاني :أن يندم على فعلها، والثالث: أن يعزم أن لايعود إليها أبداً......و إن كانت المعصية تتعلق بآدمي فشروطها أربعة :هذه الثلاثة وأن يبرأمن حق صاحبها ......وإن كانت حدّ قذف ونحوه مكّنه منه أو طلب عفوه.

(رياض الصالحين :۳۳ ،باب التوبه)

# باب الوعد

## د وعدې پوره کول واجب دي که سنت؟

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو د دې مسئلې په باره کې چې له وعدې څخه ګرځېدل او نوې وعده کول څنګه دي؟ بينوا توجروا

المستفتي مولوي عبدالغفور. راولپنډي ۲۷ ذي القعده ۱۳۹۴هـ

**الجواب:** وعده پوره کول واجب نه دي. البته مروت او سنت دي، **كما في الأشباه والنظائر** ۳۰۸: **وفي القنية: وعده أن يأتيه فلم يأته لايأثم ولايلزم الوعد إلا إذا كان معلقًا**(١) **وهو الموفق**.

## له مجبورۍ پرته وعده خلافي کول ګناه او معصيت دی

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو د دې مسئلې په باره کې چې زيد د يو کس سره وعده وکړه چې کله تحصيلدار راشي نو فلاني خمکه به ستا نوم ته نقل کړم. زما او ستا په مينځ کې قرآن ضامن دی.

---

١) (الأشباه والنظائر ٢٨٨، كتاب الحظر والإباحة)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: سئل فيما إذا وعد زيد عمروا أن يعطيه غلال أرضه الفلانية فاستعملها وامتنع من أن يعطيه من الغلة شيئا فهل يلزم زيدا شيئ بمجرد الوعد المزبور؟

*الجواب:* لايلزم الوفاء بوعده شرعًا وإن وفي فبها ونعمت، والله سبحانه الموفق.

(فتاوى تنقيح الحامدية ٢:٣٥٢، مسائل وفوائد شتى من الحظر والإباحة)

د لسو کلونو راهیسي هغه وعده نه پوره کوي، د هغه څه حکم دی؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي: فیض محمد، متهیان، مری. ۲۵/ جولائي ۱۹۷۹ع

**الجواب:** که چیرته دغه کس مجبور نه و؛ نو د وعده خلافی له وجې ګنهګار دی، لحدیث: اذا وعد أخلف(۱) **وهو الموفق.**

## له قصد او ارادې پرته وعده خلافي کول

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یو امام له مقتدیانو سره وعده وکړه چې زه به تر یو کال پورې امامت کوم، باقي ترڅو پورې چې حکومتي وظیفه نه وي پیدا شوې د امامت فرائض به ترسره کوم. امام صاحب ته په یوه کال کې دننه حکومتي وظیفه پیدا شوه. اوس هغه امامت پریږدي او وعده خلافي کوي. د هغه لپاره د شریعت څه حکم دی؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي: اهلیان بری کوټ شریف. ۷۶ع/ ۶/۶.

**الجواب:** که چیرته یې د همدې تحریر په وخت کې د وعده خلافی قصد او اراده نه درلوده؛ نو وروسته خلاف وعده کول خلاف اولی شول نه دا چې ګناه او معصیت دی. (۲) **لحدیث عائشة رضي الله عنها، رواه**

---

۱) (مشکوة المصابیح ۱۷، باب الکبائر وعلامات النفاق)

وفي مجمع بحار الأنوار: لادین لمن لاعهد له أی من لایفي بعهده بأن یغدر بغیر عذر شرعي. (مجمع بحار الأنوار ۷۱۴، باب العین مع الهاء)

وقال العلامة العیني رحمه الله تعالیٰ: لأن خلف الوعد لا یقدح إلا إذا عزم علیه مقارناً بوعده، أما إذا کان عازماً ثم عرض له مانع أو بدا له رأی فهذا لم توجد فیه صفة النفاق. (عمدة القاري ۱: ۲۲۱، کتاب الإیمان، باب علامات المنافق)

۲) قال العلامة ابن نجیم رحمه الله تعالیٰ: وعده أن یأتیه فلم یأته لا یأثم. (الأشباه والنظائر ۲۸۸، کتاب الحظر والإباحة)

الطبرانی(١)نعم! ایفاء العهد فرض، وکم فرق بین العهد والوعد(٢)وحدیث آیة المنافق محمولة علی ما اذا قصد الإخلاف عند الوعد(٣)فافهم، وللتفصیل مقام آخر، وهو الموفق.

---

١) قال الحافظ ابن حجر رحمه الله تعالیٰ :لأن خلف الوعد لایقدح إلا إذا کان العزم علیه مقارنًا للوعد،أما لو کان عازمًا ثم عرض له مانع أو بدا له رأی فهذا لم توجد منه صورة النفاق،قال الغزالي في الإحیاء وفي الطبراني في حدیث طویل ما یشهد له،ففیه من حدیث سلمان،إذا وعد وهو یحدث نفسه أنه یخلف.

(فتح الباری ١:٩٠،کتاب الإیمان،باب علامات المنافق)

وعن زید بن أرقم رضي الله تعالیٰ عنه عن النبي ﷺ : إذا وعد الرجل أخاه ومن نیته أن یفي فلم یف ولم یجئ للمیعاد فلا إثم علیه.

(سنن أبي داؤد ٢:٦٨٢،کتاب الأدب،باب في العدة)

٢) قال العلامة العیني رحمه الله تعالیٰ : .الوعد في الاصطلاح الإخبار بإیصال الخیر في المستقبل ... قوله عاهد :من المعاهدة وهي المحالفة والمواثقة.

(عمدة القاري ١:٢٢٠،کتاب الإیمان،باب علامات المنافق)

٣) قال العلامة القاري رحمه الله تعالیٰ :(وإذا وعد أخلف)ولیس فیه ما یدل علی وجوب الوفاء بالوعد لأن ذم الإخلاف انما هو من حیث تضمینه الکذب المذموم، إن عزم علی الإخلاف حال الوعد لا أن طرأ له.

(مرقاة المفاتیح ١:١٢٦، کتاب الإیمان،باب الکبائر وعلامات النفاق)

وقال العلامة العیني رحمه الله تعالیٰ :لأن خلف الوعد لا یقدح إلا إذا عزم علیه مقارنًا بوعده أما إذا کان عازمًا ثم عرض له مانع أوبدا له رأی فهذا لم توجد فیه صفة النفاق. (عمدة القاري ١:٢٢١،کتاب الإیمان،باب علامات المنافق)

## وعده خلافي کول د منافقينو نښه ده

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې کوم سړی وعده وکړي او ليکل هم وکړي او بيا له هغې وعدې مخالفت وکړي؛ نو د هغه څه حکم دی؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي نامعلوم ۹ جمادی الاولی ۱۴۰۳هـ

**الجواب:** د صدق او ثبوت په شرط دغه کس د خلاف مروّت مرتکب دی، کوم چې د منافقينو له نښانو څخه شمار شوی دی، **لحديث: إذا وعد أخلف** (بخاري)[۱] او د دغه کس حکم د نورو فاسقانو په شان شو [۲]، **والله أعلم.**

## په وعده خلافۍ باندې په دنيا کې کومه مواخذه نشته

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې يو کس د مرکې (جرګې) پر وړاندې ووېل چې زه نن د خپلې لور نکاح له خپل سکني وراره سره کوم. د خلکو پر وړاندې له دغه اقرار وروسته دغه کس د خپلې لور نکاح له بل چا سره وکړه. له شرعي حکم څخه مو خبر کړئ؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي حاجی محمد يوسف، پنډی. ۲۱ جولائی ۱۹۸۶ع

---

۱) (صحيح البخاري ۱:۱۰، کتاب الإيمان، باب علامات المنافق)

۲) أن عبد الله بن كعب قال سمعت كعب بن مالك يحدث حديثه حين تخلف عن رسول الله ﷺ في غزوة تبوك...ونهى رسول الله ﷺ المسلمين عن كلامنا أيها الثلاثة من بين من تخلف عنه قال فاجتنبنا الناس.

قال العلامة النووي رحمه الله تعالى: .وفي هذا هجران أهل البدع والمعاصي.

(صحيح المسلم ۲:۳۶۱، كتاب التوبة، باب حديث توبة كعب بن مالك وصاحبيه)

**الجواب:** د شرعي عذر پرته وعده خلافي کول او په دې کې مرسته کول منافقانه رویه ده. (۱) داسې کسانو ته الله تعالی په آخرت کې سزا ورکوي. (۲) په دنیا کې حکومت دوی ته شي نیولی. (۳) **وهوالموفق**

## په عهد او وعده کې فرق او له دستخط وروسته د عهد نامې مخالفت کول

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یو کس په عهد نامه باندې د عمل کولو دستخط کړی دی او بیا دوه څلور میاشتې وروسته یې له عمل کولو انکار کړی دی. هغه ته څه سزا ورکول پکار دي؟ خلکو ته د هغه سره کومه رویه غوره کول پکار دي؟ عهد نامه دا ده:

(۱) زه دهوش په حالت کې له جبراو زوره پرته اقرار کوم چې دخپلې محلې دجوماتونو لپاره هر وخت، په هر ځای کې په یوازې تن له قرباني څخه به دریغ نه کوم

(۲) زه به پنځه روپۍ ماهانه زکوة، عشر او نور صدقات د سیرت کیمټۍ په

---

۱) عن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: آية المنافق ثلث، إذا حدث كذب، وإذا وعد أخلف و إذا ائتمن خان.
(مشكوة المصابيح ۱۷، باب الكبائر وعلامات النفاق)

۲) عن ابن عمر رضي الله تعالى عنهما أن رسول الله ﷺ قال: إن الغادر ينصب له لواء يوم القيمة فيقال هذه غدرة فلان بن فلان.
(سنن أبي داؤد ۲: ۳۷۹، باب في الوفاء بالعهد، كتاب الجهاد)

۳) قال العلامة ابن عابدين: سئل فيما إذا وعد زيد عمروا أن يعطيه غلال أرضه الفلانية فاستعملها وامتنع من أن يعطيه من الغلة شيئاً فهل يلزم زيدا شئ بمجرد الوعد المزبور؟

الجواب: لا يلزمه الوفاء بوعده شرعًا، وإن وفي فبها ونعمت.
(تنقيح الحامدية ۲: ۳۵۲، مسائل وفوائد شتّى من الحظر والإباحة)

بیت المال کې جمع کوم

(۳) د جومات امام به په پابندی سره د پنځو لمنځونو له آداء کولو سره سره ماشومانو ته درس هم ورکوي

(۴) د سیرت کیمټی به د ټولو اسلامي شرطونو پابنده وي

(۵) دسیرت کمیټی به دمحلې دمستحقو افرادو دمرستې اوکفالت ذمه واره وي

(۶) زه به حتی الامکان د غم او خوشحالی په وخت په اسلامي روایاتو باندې عمل کوم

کوم کس چې عملا ددې شرطونو ځخه سرغړونه وکړي هغه د شرعي قانون مطابق د مواخذې قابل دی او که نه؟ بینوا توجروا.

المستفتي غلام عرفان، ازدفترسیرت کمیټی، بیروت... ۳۰ ربیع الاول ۱۳۹۰ھ

**الجواب:** په عهد او وعده کې فرق دی، **العهد هوالمواثقة بین الاثنین والوعد هوالاخبار عن ایثال الخیر فی المستقبل**(۱) او د عهد پوره کول فرض دي او د وعدې پوره کول مستحب دي او وعده خلافي کول مکروه دي، کله چې د لومړي سره د مخالفت کولو قصد او اراده وي او کله چې ابتداء د ایفا اراده وي نو په اینده کې مخالفت کول مکروه نه دي، په مذکوره صورت کې عهد نه دی، دا په ایجاب او قبول باندې موقوف نه دي، بلکې دا وعده ده او له قرائنو ځخه معلومه شوې چې له ابتداء ځخه د ایفا قصد او اراده موجوده وه لهذا به هغې کې کومه خاصه ګناه نشته، **ذهب الجمهور منهم أبوحنیفة والشافعی الی أنه یستحب الوفاء بالوعد استحباباً مؤکدًا ویکره خلافه کراهة تنزیه لاتحریم**(۲) **ویحمل الحدیث**

---

۱) قال العلامة العیني :الوعد في الاصطلاح الإخبار بإیصال الخیر في المستقبل ...قوله عاهد من المعاهدة وهي المحالفة والمواثقة.

(عمدة القاري ۱:۲۲۰، کتاب الإیمان ،باب علامات المنافق)

۲) (عمدة القاري ۱:۲۲۱، کتاب الإیمان ،باب علامات المنافق)

عندهم على العزم على الخلاف حال الوعد فانه لاشك في حرمته(۱) قال العيني في شرح البخاري: ويشهد لذلك ما رواه الطبراني اني باسناد لا بأس به في حديث طويل من حديث سلمان: اذا وعد وهو يحدث نفسه أنه يخلف (۲) الخ وبمعناه في الأشباه والنظائر ۳۰۸ (۳) وهو الموفق.

## معاهده ماتول حرام دي

**سوال:** نستفتيكم في هذه المسئلة: أن القوم تعاهدوا على أمر خير واكدوا العهد بالايمان، هَلْ يجوز نقض هذا العهد أم لا مع أن في نقضه غالبًا فتح باب الفساد؟ بينوا توجروا.

المستفتي نامعلوم ۲۷/ جمادي الثاني ۱۴۰۴هـ

**الجواب:** الخلاف منه حرام لقوله تعالى: أَوْفُوْا بِالْعُقُوْدِ(۴) وهو الموفق

---

۱) قال الحافظ ابن حجر رحمه الله تعالى: لأن خلف الوعد لايقدح إلا إذا كان العزم عليه مقارنًا للوعد، أما لو كان عازمًا ثم عرض له مانع أو بدا له رأى فهذا لم توجد منه صورة النفاق. (فتح الباري ۱: ۹۰، كتاب الإيمان، باب علامات المنافق)

۲) (عمدة القاري ۱: ۲۲۱، كتاب الإيمان، باب علامات المنافق)

وعن زيد بن أرقم رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ: إذا وعد الر-

وينوي أن يفي به فلم يف به فلا جناح عليه.

(سنن ترمذي ۲: ۲۵۰، أبواب الإيمان، باب ما جاء في علامة المناف

۳) قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: وفي القنية: وعده

(البحر الرائق: ۲۸۸، كتاب الحظر والإباحة)

۴) (سورة المائدة: آيت نمبر ۱)......(باني حا

## له ناوړه رسمونو څخه د منعه کولو وعده کول بيا وعده خلافي کول او له همدې خلکو سره مخالفت کول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې موږ تقريبا ۱۵ يا ۲۰ د قوم مشرانو وعده وکړه چې زموږ د قوم اجتماعي ناوړه رسمونه کوم چې شرعًا او رواجًا په مکروه او اسراف کې داخل دي، موږ د قوم ټولو خلکو ته ددې هدايت کوو چې که چيرته عوام زموږ سره په دغه کار باندې اتفاق ونه کړي: نو موږ به د قوم له موجوده معتبرو خلکو سره ترک موالات کوو. دا عهد او وعده په جوماتو کې واخيستل شوه. اوس که چيرته په همدې نمايندګانو او معتبرانو کې يو څوک همدا عهد مات کړي. له عوامو سره په همدې ناوړه مراسمو کې ګډون وکړي او د وعدې څخه مخالفت وکړي نو د هغه څه حکم دی؟ **بينوا توجروا**

المستفتي سائين خان. باړيان کيمپ هزاره

**الجواب:** له وعدې څخه مخالفت مکروه دی او خصوصًا په دغه حالت کې په مخالطت باندې د الهي مواخذې خطر شته، قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: آية المنافق ثلاث: اذا حدث كذب واذا وعد أخلف واذا أئتمن خان، متفق عليه (١) وقال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لما وقعت بنو اسرائيل فى المعاصى فنهاهم علماؤهم فلم ينتهوا فجالسوهم فى مجالسهم وواكلوهم وشاربوهم فضرب الله قلوبهم بعضهم ببعض فلعنهم على لسان داؤد عَلَيْهِ السَّلَامُ، الحديث رواه الترمذى (٢)

---

(د حاشيې پاتې برخه) وقال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى :الخلف في الوعد حرام كذا في أضحية الذخيرة. (الأشباه والنظائر ۲۸۷، كتاب الحظر والإباحة)

۱) (مشكوة المصابيح : ۱۷، كتاب الايمان ،باب الكبائر وعلامات النفاق)

۲) (سنن ترمذي ۲:۳۶۵، أبواب تفسير القرآن ،باب : ومن سورة المائدة)

وابوداؤد[1] لهذا همداسي کسانو ته واپس کيدل پکار دي. کنه نو له دوی سره هم د تعلق قطع کول روا دي [2] وهوالموفق

## "که چيرته زه وعده خلافي وکړم نو ټولې حلالې په ما باندې حرام" له ويلو وروسته د وعده خلافی حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې يوه کس ليکلي دي که چيرته زه وعده خلافي وکړم نو په ما باندې ټولې حلالې حرام دي، بيا که چيرته همدغه کس وعده خلافي وکړي نو دغه ليکل نه مني. په شريعت کې د دغه کس څه حکم دی؟ بينوا توجروا

المستفتي محمد آزاد کشمير

**الجواب:** که چېرته دغه کس واده نه وي کړی نو د يمين کفاره دې ورکړي او که چېرته واده يې کړی وي نو د حرمت جماع نيت يې هم کړی وي؛ نو نکاح دې تازه کړي او د يمين کفاره دې هم ورکړي او که چيرته د جماع له حرمت څخه خالي الذهن وي نو صرف د يمين کفاره دې ورکړي، لمافی ردالمحتار ۳: ۸۹، والحاصل أن المعتبر انصراف هذه الألفاظ عربية أو فارسية الى معنى بلانية التعارف فيه فان لم يتعارف سئل عن نيته؟[3] وهوالموفق.

---

۱) (سنن أبي داؤد ۲:۵۹٦، كتاب الملاحم ،باب الأمر والنهي)

۲) قال العلامة السهار نفوري رحمه الله تعالى: .قال السيوطي والمراد حرمة الهجران إذا كان الباعث عليه وقوع تقصير في حقوق الصحبة والاخوة وآداب العشرة كاغتياب وترک نصيحة وأما ما كان من جهة الدين والمذهب فهجران أهل البدع والأهواء واجب إلى وقت ظهور التوبة.
(بذل المجهود ۵:۲٦۱، كتاب الأدب ،باب في هجرة الرجل أخاه)

۳) (شامی ۳:۷۱، كتاب الإيمان ،مطلب تعارفوا الحرام يلزمنی) (باتي حاشيه په بل مخ)

## د مهاجر او حکومت ترمنځ د فیصله شویو شیانو مخالفت روا نه دی

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې شرقي، پنجاب مهاجرو لاندې جايداد ونه پريښي او راغلي: کاټل جنګ فابريکې، سره د اوسيدو له خونو، عمارتونو د شيدو له مرکزونو. بلډنګونو ۵۰، ۶۰ د شيدو والاغوانګاني اوميښې، د پنير او کوچو مشينونه سره له نورسامان، دوالد په حق کې دي. مکانونه، دکانونه، ستر بورډنګ هاوس او په دې کې ېې ټول حقوق د نقد معاوضې پرته ذکرشويو شيانو کې هيڅ شی نه دي ورکړي، نه مکان ورکړل شوی او نه هم ځمکه.

(۱) اوس ايا حکومت د ټولو حقوقو ذمه وار نه دی؟

(ب) آيا حکومت ته اجازه شته چې د ټول حق څخه څه برخه منفي کړي؟

(ج) آيا حکومت ته د حق روپۍ، له منفي کېدو پرته نورې ورکول نه دي پکار. کله چې حق په هغه ماليت باندې منظور شوی وي کوم جايداد چې په (۱۹۴۶ع) کې وو، او که چيرته دغه مهاجر ته د حق په عوض کې ځمکې ورکول شي نو په دې سره خو د هغه مهاجر د هغه حق ادائيګي يو ډول وشوه چې دغه مهاجر له ټرانسفر شده جايداد څخه منافع حاصل کړي؟

(د) د موجوده مهاجر او هغه مهاجر په مينځ کې ډير زيات فرق دی. آيا په دې صورت کې موجوده مهاجر په رښتيا د خپل حق نقد معاوضه پرته له کوم کمي او نفي د اخيستلو حقدار نه دی؟

حکومت په اصل کې د موجوده مهاجرو قرضدار دی. آيا قرضدار په خپله په قرض کې کمی کولی شي؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: خواجه خورشيد الرحمن، نئی انار کلی لاهور. ۵ رجب ۱۴۰۲ھ

---

(د حاشيې پاتې برخه) .... وفي الخلاصة: ولوقال کل حلال عليّ حرام أو هرچه مراحلال است برمن حرام، فقال في الفتاوی الصغری: لابد من النية، قال في المحيط: فان نوی اليمين أولم ينوشيئا کان يمينا... ولا تدخل فيه امرأته إلا بالنية استحساناً، هکذا قال محمّد رحمه الله تعالٰی.

(خلاصة الفتاوی ۲:۹۵، کتاب الطلاق، الفصل الثاني في الکنايات)

**الجواب:** د دغه مهاجر او حکومت په مینځ کې کوم امور چې د معاوضې متعلق فیصله شوي دي له هغو څخه هیڅ جانب د مخالفت کولو اجازه نه لري. لحدیث: المسلمون علی شروطهم(۱) وهوالموفق.

**دامام په زوره له جومات څخه وباسل او دهغه له اجازې پرته دبل امام مقررکول.**

**له هغه څخه د عطیې په ډول د ورکړې شوې ځمکې بیرته اخیستل د عهد ماتول**

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د مظهر نیکه مرحوم د سیکانو په زمانه کې د یوه جومات امامت له شپیتو کلونو راهیسې کړی دی، والد صاحب مرحوم هم همدومره موده خدمت کړی دی. له هغه وروسته مظهر دوه څلویښت کاله د جومات خدمت کړی دی، دې خلکو ماته د عطیې په ډول ځمکه راکړې ده او مالیه مو هم آداء کړې ده او د روپیو هم کوم قید نه دی لګول شوی چې د ضرورت په وخت کې به له نا واپس اخیستل کیږي او برناحقه موجوده خلکو امام ووهلو او له جومات څخه یې وباسلو، دغه جومات ته یې له تلو راتلو هم منعه کړو او د لمانځه ادا کولو څخه یې منع کړو او په جبري ډول یې دویم امام مقرر کړی دی

آیا د اول امام له اجازې پرته دویم امام د هغه ځای ناستی کیدلی شي؟ دا د (۱۹۷۰ء) کال واقعه ده. اوس له دې وروسته قوم پریکړه وکړه چې مخکنی امام هم موږ، خلک نه محرومه کوو، هغه ته قوم بالاتفاق د دوارو اخترونو په موقع شپیته روپۍ او دوه جوړې جامې ورکړي دي او ویلي یې دي چې د عشر له غلې څخه څوک یې چې په خوشحالۍ درکړي د کمیټۍ پرې هیڅ اعتراض نشته، دوه کاله یې خپل دغه عهد پوره کړو، بیا منکر شول، په محمدي ﷺ شریعت کې د عهد ماتوونکو حکم څه دی؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي: نامعلوم ۱۲/۳/۱۹۷۴ع

---

۱) (صحیح البخاري ۳۰۳:۱، کتاب الإجارة، باب أجر السمسرة)

وقال العلامة القرطبي: (أوفوا بالعقود)...(د حاشیې پاتې برخه

**الجواب:** د امام اهانت حرام دی. کله چې بلا وجه وي او که چیرته دغه ځمکه د عطیې په ډول ورکول شوي وي نو هغه هیڅوک واپس نشي اخیستلی. همدارنګه وعده خلافي کول ناروا کار دی، **أما الأول فلتعامل الأمة على تعظيم الامام وأما الثاني فلأن الصدقة لايرجع فيها، والهبة لايصح الرجوع فيها بعد الموت كما صرحوا به(١) وأما الثالث فلحديث: اذا وعد أخلف(٢) وهوالموفق.**

## امام ته کنځل کول او له هغه سره د شوي عهد ماتولو حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یو کس د خپل پیش امام سره عهد وکړو چې فلانی شی به په فلانی ورځ درکړم. په دغه صورت کې پیش امام دغه کس ته ورغلو. هغه کس منکر شو. عهد یې مات کړ او خپل پیش امام ته یې د بې ایمانه وغیره الفاظ استعمال کړه او کنځل یې ورته وکړه. د داسې کس لپاره شرعي حکم څه دی؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي: مولوي محمد سعید. علي آباد. ۱۳/ ذی الحجه ۱۴۰۰هه

---

(د حاشیې باتې برخه) معناه بما أحل وبما حرم وبما فرض وبما حد في جميع الأشياء ...قال عليه الصلوة والسلام: المؤمنون عند شروطهم.

(الجامع لأحكام القرآن للقرطبی ۶:۳۲، سورة المائدة آیت نمبر ۱)

۱) وفي الفتاوى الخانية: ولوخرجت الهبة عن ملك الموهوب له إلى غيره وهلكت لايرجع الواهب وكذا لو هلك الواهب أوالموهوب له.

(فتاوى خانية على هامش الهندية ۳:۲۷۲، فصل في الرجوع في الهبة)

۲) عن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: آية المنافق ثلث، زادمسلم وإن صام وصلّى وزعم أنه مسلم، ثم اتفقا إذا حدّث كذب وإذا وعد أخلف و إذا ائتمن خان.

(مشكوة المصابيح: ۱۷، باب الكبائر وعلامات النفاق)

**الجواب:** له عهد او وعدې څخه انحراف منافقانه رویه ده، **لحدیث: (اذا عاهد غدر) واذا وعد أخلف واذا عاهد غدر (بخاری شریف ۱: ۴۵۱)**(١) همدارنګه مسلمان خصوصا امام ته کنځل کول فسق دی، **لحدیث: سباب المسلم فسوق (رواه مسلم)**(٢) لهذا د هغه حکم د نورو فاسقانو په شان دی. **وهوالموفق**

## په عهد ماتولو سره په نکاح باندې اثر نه پریوځي

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء، کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یو کس په عام اجلاس کې په لیکل شوي بڼه دا بیان وکړو چې له فلانی انجلی سره زما تعلقات له دې وجې وو چې زه له هغې سره واده وکړم. لیکن ما مخکې هم واده کړی دی. له همدې وجې د جرګې د پریکړې مطابق ما له نن څخه قطع تعلق وکړو. زه هغه انجلی سکنی خور ګڼم، په اینده کې داسې حرکات نه کوم. لیکن له دې وروسته یې عهد مات کړ. د هماغه انجلی سره یې واده وکړو، آیا په دې باندې په شریعت کې کومه سزا شته او د هغه په مخکینی ښځه باندې کوم اثر پریوځي؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي: افراهیم حسین، پنډی. ۱۴۰۰/۶/۳هـ

**الجواب:** په ظاهره ددې عهد ماتول په نکاح باندې کوم اثر نه پریوځي، **لعدم وجود اضافة الطلاق الى الملك، ویرجع إلى رد المحتار ۲: ۶۸۰**(٣) **وهوالموفق.**

---

١) (صحیح البخاري ۱: ۱۰، کتاب الإیمان، باب علامات المافق)

٢) (صحیح المسلم ۱: ۵۸، کتاب الإیمان، باب قول النبي ﷺ: سباب المسلم فسوق)

٣) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: لوقال إن خرجت يقع الطلاق أو لاتخرجي إلابإذني فإني حلفت بالطلاق فخرجت لم يقع لتركه الإضافة إليها (درمختار)

وقال العلامة ابن عابدين (قوله لتركه الإضافة)..... (د حاشيې پاتې برخه)

(د حاشيې باتې برخه) أى المعنوية فإنها الشرط والخطاب من الإضافة المعنوية وكذا الإشارة نحو هذه طالق ، وكذا نحو امرأتي طالق وزينب طالق .

(ردالمحتار ۴۶۶:۲، كتاب الطلاق ،مطلب من الصريح الألفاظ المصحفة)

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالىٰ :شرطه الملک حقيقة أوحكماً أو الإضافة إليه أى الملک الحقيقي عاماً أوخاصاً ... كإن نكحت امرأة لو إن نكحتک فأنت طالق و كذا كل امرأة.

(الدر المختار ۵۳۶:۲، كتاب الطلاق ،باب التعليق)

اللہ اللہ

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

قال اللہ تبارک وتعالیٰ:......

وَقَضَى رَبُّكَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا

إِمَّا يَبْلُغَنَّ عِندَكَ الْكِبَرَ أَحَدُهُمَا أَوْ كِلَاهُمَا فَلَا تَقُل

لَّهُمَا أُفٍّ وَلَا تَنْهَرْهُمَا وَقُل لَّهُمَا قَوْلًا كَرِيمًا {۲۳}

(سورۃ بنی اسرائیل)

# باب حقوق الوالدين وعقوقهما

## د عاق تعريف او د هغه حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې (۱) د عاق تعريف څه دی؟

(۲) آيا د عاق لپاره دوزخ دی او هغه له کافرانو سره برابر دی؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي سيد عبدالوهاب. لنډی کوتل،

خيبر ايجنسی. ۲۵/ رجب المرجب ۱۳۹۷ هـ

**الجواب:** (۱) کوم کس چې له شرعي جواز پرته والدين يا استاذ ته په قصدي ډول تکليف ورسوي هغه ته عاق ويل کيږي [۱] او عاق فاسق وي کافر نه وي [۲]

(۲) عاق به بالاخر جنت ته ځي، هميشه به په دوزخ کې نه وي، **لکونه مسلمًا** [۳] **وهوالموفق.**

## د استاذ او والدينو په حکم کې د کوم حکم ړاندې دی؟

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې کله د يو کار

---

۱) وفي مجمع بحار الأنوار :نهي عن عقوق الأمهات ،من عق والده إذا آذاه وعصاه ، من العق : الشق . (مجمع بحار الأنوار ۳:۶۴۷ ،باب العين مع القاف)

قال العلامة فيروزالدين رحمه الله تعالىٰ :عاق کول، اولاد د نافرمانی له وجې د بجيانو د حقوقو څخه ويستل او د هغه سره اړيکه پرې کول.

(فيروزاللغات ۸۸۸ ،باب العين مع الألف)

۲) وفي شرح العقائد :والكبيرة لا تخرج العبد المؤمن من الإيمان ولا تدخله في الكفر... إن مرتكب الكبيرة فاسق .(شرح العقائد ۸۲)

۳) قال العلامة الملا علي قاري رحمه الله تعالىٰ :ولا نقول إن المؤمن المذنب يخلد فيها وإن كان فاسقًا آى بارتكاب الكبائر جميعها .(الفقه الأكبر ۷۷)

لپاره استاذ حکم وکړي، خسرګنی او والدین هم حکم وکړي. نو په دوی کې د
چا حکم منل اولی دي؟ د کتابونو له حوالې سره يې وليکئ؟ **بينوا توجروا**.
المستفتي محمد خليل الله حقاني ...٩ ربيع الثانی ١٣٩٥هـ

**الجواب:** ناروا حکم به د هيچا نه منل کيږي. **قال رسول الله** ﷺ **لاطاعة لمخلوق فی معصية الخالق**[١] او روا حکم چې کله د استاذ او والدينو له طرفه وي؛ نو د عدم تصادم په صورت کې د هر يوه امر منل ضروري دي او د تصادم په صورت کې د والد حق مقدم دی. کله چې په هغه کې د تعظيم او احترام مراعتول وي او د والدې حکم مقدم کولی شي کله چې په هغه کې د خدمت او انعام مراعتول وي، **کما فی الهندية** ٥: ٤٠١[٢]. ظاهراً د استاذ حق په نسبت سره والدينو ته کم دی، لعدم کونه منصوصًا عليه. **وهوالموفق**.

## د عاق د کافر کېدو، د هغه د ذبيحه حراميدو، د لمانځه، روژې، حج او د زکوة نه قبلېدو مسئله

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې ما په تذکره غوثيه، **عجب الاخبار، منهاج العابدين، الممهد واغرائب، المهرينيه النجدی فی حقارة العلماء الزهيره** په شان معتبرو کتابونو کې سره له حوالې د عاق کيدو مسئله ليدلې ده، هغه داسې چې د استاذ لخوا د عاق شوي شاګرد لمونځ، روژه، حج او

---

١) (مشکوة المصابيح ٣٢١، کتاب الإمارة والقضاء ،الفصل الثانی)

٢) وفي الهندية :إذا تعذرعليه جمع مراعاة حق الوالدين بأن يتأذى أحدهما بمراعاة الآخر يرجع حق الأب فيها يرجع إلى التعظيم والاحترام، وحق الأم فيما يرجع إلى الخدمة والإنعام :(فتاوى هنديه ٥:٣٦٥، كتاب الكراهية ،الباب السادس والعشرون)
وفي نفع المفتي والسائل :الاستبشار :إذا تعذر عليه مراعاة جمع حقوق الوالدين رجح جانب الأب فيما يرجع إلى التعظيم والاحترام، وحق الأم فيما يرجع إلى الخدمة والإنعام. (فتاوى اللكهنوي المسماة بنفع المفتي والسائل ٤٢٢ ،مايتعلق بإطاعة الوالدين)

زکوة وغیره د خدای تعالی په دربار کې نه قبلیږي، آن تردې چې د هغه شهادت، د هغه قول او د هغه ذبیحه هم قبوله نه وي، د هغه ذبیحه د کافر د ذبیحې په شان ده او هغه بالاتفاق کافر دی، اوس ددې په لیدلو سره په زړه کې تشویش پیدا شوی چې دغه قولونه صحیح او معتبر دي او که ضعیف دي؟ له همدې وجې مې خیال راغلو چې خط ولیکم او له تاسو څخه فتوی وغواړم، څکه چې زما په ذاتي ډول او د خلکو په عام ډول په تاسو باندې تسلي شوې ده، تاسو صاحبان د هغو د صحیح کېدو یا ضعیف کېدو سند راوباسی کتاب او صفحه ولیکی زما تنده پرې ماته کړئ او دا هم واضحه کړئ چې د کومو خبرو په نه منلو سره د عاق څنځیر په غاړه کې غورځېدلی شي؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي: مولوي عبد الرزاق، شیخان (باړه)، ۱۹/جون ۱۹۷۵م.

**الجواب:** د تول اهل السنت والجماعة دا اجتماعي عقیده ده چې په ګناه سره یو انسان نه له اسلام څخه خارج کېدلی شي او نه کافر کېدلی شي، البته فاسق کېدی شي، **کما فی شرح العقائد**(۱) **وشرح المقاصد وغیره**(۲) لهذا په عاق باندې د فاسق احکام جاري کېدی شي او دا تغلیظات کوم چې په غیر معتبرو او غیر متداول کتابونه کې مسطور دي او بلا حواله هم دي لهذا هغه مقبول کېدلی نشي، بلکې مردود کېدی شي(۳) **وهوالموفق**

---

۱) وفي شرح العقائد :لا تخرج العبد المؤمن من الإيمان لبقاء التصديق الذي هو حقيقة الإيمان ...ولا تدخله أى العبد المؤمن في الكفر. (شرح العقائد: ۸۲)

۲) وفي الفقه الأكبر :ولا نكفرمسلماً بذنب من الذنوب وإن كانت كبيرة إذا لم يستحلها ولانزيل عنه اسم الإيمان ونسميه مؤمناً حقيقتاً.
(شرح الفقه الأكبر: ۷۱،الكبيرة لا تخرج المؤمن عن الإيمان)

۳) په کومو روایتونو کې چې د عاق جنت ته نه داخلېدل ذکر دي، هغه په تغلیظ او سختی باندې حمل دی او یا په ابتدایي دخول باندې حمل دی...(دحاشیې پاتې برخه

## د عاق له میراث څخه محرومه کول او له هغه سره د ترک موالات حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې که چیرته پلار څوک عاق کړي نو آیا په همدې عاق کېدو سره هغه له میراث محروم شوی دی؟

(۲) له همداسې عاق شوي ورور سره څه ډول معامله کول پکار دي؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي: قاضي عبدالمنان، متعلم حقانيه. ۷۸ع/ ۱۰/ ۱۸

**الجواب:** چونکې عاق شوی انسان فاسق دی (۱) او کافر نه دی (۲) لهذا دغه عاق شوی زوی باقاعده وارث دی **لعدم المانع.** (۳)

(۲) له فاسق ورور سره د نورو فاسقانو په شان معامله ده. یعني د استطاعت په اندازه ترک موالات روا دی (۱) **وهوالموفق**

---

(د حاشیې پاتې برخه)......وعن عبدالله بن عمرو رضي الله تعالٰی عنه قال قال رسول الله ﷺ: لايدخل الجنة منان ولا عاق أی عاص بأحد والديه ولامدمن خمر.

وفي المرقاة: قال التوربشتي: محمل هذا أنه لا يدخل مع الفائزين أو لا يدخل حتى يعاقب بما اجترحه من الإثم بكل واحد من الأعمال الثلاثة.

(مرقاة الماتيح ۹:۲۰۲، باب البرّ والصلة)

۱) قال عبد الله بن عمرو رضي الله عنه جاء أعرابي فقال: يا رسول الله! ما الكبائر؟ قال الإشراک بالله، قال ثم ما ذا؟ قال: ثم عقوق الوالدين.

(الكبائر ۵۰، الكبيرة الثامنة: عقوق الوالدين)

۲) قال العلامة الملا علىّ القاري رحمه الله تعالٰی: ولا نكفر مسلماً بذنب من الذنوب وإن كانت كبيرة إذا لم يستحلها.

(الفقه الأكبر ۷۱، الكبيرة لا تخرج المؤمن عن الإيمان)

۳) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالٰی: موانعه أربعة: الرق والقتل واختلاف الدين واختلاف الدارين. (الدر المختار ۵:۵۴۱، كتاب الفرائض)

## د والدينو خدمت نان نفقه نه ورکول او هغوی ته د کنځلو حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلي په باره کې چې زيد د خپلو والدينو قصدا او عمدا خدمت نه کوي اودهغه نان نفقه نه ورکوي، بلکې برعکس هغوی ته کنځل کوي او زوروي يې، نو دده لپاره په شريعت کې څه سزا ده؟

الله تعالی د مور پلار د حقوقو او د هغو د نافرمانی کولو او هغو ته د تکليف او رنځ رسولو په باره کې په قرآن کې فرمايلي دي:

وَقَضَى رَبُّكَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا، او دا چې له مور پلار سره نيکي وکړئ. حق تعالی جَلَّ جَلَالُهُ خپل عبادت له مور پلار سره له احسان کولو سره يو ځای ذکر کړی، ځکه چې مور پلار د اولاد د پيدا کيدو او تربيت کولو ظاهري سبب دی او دا يې هم فرمايلي:

إِمَّا يَبْلُغَنَّ عِنْدَكَ الْكِبَرَ أَحَدُهُمَا أَوْ كِلَاهُمَا فَلَا تَقُلْ لَهُمَا أُفٍّ وَلَا تَنْهَرْهُمَا وَقُلْ لَهُمَا قَوْلًا كَرِيمًا، وَاخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ مِنَ الرَّحْمَةِ وَقُلْ رَبِّ ارْحَمْهُمَا كَمَا رَبَّيَانِي صَغِيرًا،

---

۱) أن عبدالله بن كعب قال سمعت كعب بن مالك يحدث حديثه حين تخلف عن رسول الله ﷺ في غزوة تبوك...ونهى رسول الله ﷺ المسلمين عن كلامنا أيها الثلاثة من بين من تخلف عنه قال فاجتنبنا الناس. (صحيح المسلم)

وقال العلامة النووي رحمه الله تعالى :وفي هذا هجران أهل البدع والمعاصي.

(صحيح المسلم ۲:۳۶۱، كتاب التوبة، باب حديث توبة كعب بن مالك وصاحبيه)

که چیرته دا حکم صحیح وي نو له تسلیمیدو وروسته دې بیرته راولیږل شي؟
**بینوا توجروا**

المستفتي: عبد القدوس، هزاره، ایبټ آباد ۱۶/۳/۱۹۶۹ء.

**الجواب:** د صدق په شرط دا کس فاسق او د کبیره مرتکب دی، (۱) په هغه باندې توبه کول او د والدینو څخه معافي غوښتل ضروري دي، (۲) د اصل خواب سره زمونږ اتفاق دی او صحیح دی **وهوالموفق**

## مطلقه مور ته د روپیو په ورکولو سره د پلار ناراضه کېدل

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د زید پلار خپلې ښځې (یعنې د زید مور ته) طلاق ورکړی دی. اوس زید او دده ورور عمرو د خپل پلار سره او د زید مور او خور د زید له ماماګانو سره اوسیږي، زید ۱۰۰ روپۍ ماهانه ګټي او د زید پلار هیڅ ډول دنیوي کار نه کوي. د زید مور د فقر او فاقې په حالت کې له زید څخه د څه شي غوښتلو ته مجبوره شوې ده. لیکن که چیرته زید د خپلې میاشتنۍ تنخواه څخه مور ته څه ورکړي نو دده پلار پرې خفه کیږي. اوس ده ته څه کول پکار دي؟ آیا دی او ورور یې عمرو دخپلې مور سره اوسېدلی شي؟ کله چې د زید د تعلیم ذریعه دده پلار جوړه کړې ده؟ **بینوا توجروا**

**المستفتي:** مطیع الله، طالب العلم دارالعلوم حقانیه، اکوړه خټک ۲۳/۴/۱۹۷۰ء

---

۱) عن أبي بكرة رضي الله تعالى عنه قال قال النبي ﷺ: ألا أنبئكم بأكبر الكبائر ثلاثاً؟ قالوا بلى يا رسول الله! قال: الإشراك بالله وعقوق الوالدين الخ.
(صحيح البخاري ۱: ۲۵۹، كتاب الشهادات، باب ما قيل في شهادة الزور)

۲) قال العلامة النووي رحمه الله تعالى: قال العلماء: التوبة واجبة من كل ذنب... وإن كانت المعصية تتعلق بآدمي فشروطها أربعة، هذه الثلاثة، وأن يبرأ من حق صاحبها... وإن كانت حد قذف ونحوه مكنه منه أوطلب عفوه.
(رياض الصالحين ۳۴، باب التوبة)

**الجواب:** د زيد لپاره ضروري ده چې د پلار حكم ونه مني، ځكه چې دا ناروا حكم دی. قال رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لاطاعة لمخلوق فی معصية الخالق (۱) او په دې صورت كې زوی عاق كېدی نه شي، بلكې پلار په غلطه دی، قلت يارسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! من أبر؟ قال أمك، قلت: ثم من؟ قال أمك، قلت: ثم من؟ قال أمك (الحديث) رواه الترمذی وابوداؤد (۲) وفی الهندية ۱: ۵۸۳، قال ويجبر الولد الموسر علی نفقة الأبوين المعسرين (۳) فقط.

## د مور وهونكی اوهغې ته د بد معاش اوكنجرې ويونكی كس فاسق دی

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلي په باره كې چې كوم كس خپلې مور ته ناروا الفاظ ووايي بلكې وهلو ته يې آماده شي او مور ته د بد معاش او كنجرې پورې الفاظ ووايي، په شريعت كې ددغه كس څه حكم دی؟ بينواتوجروا.

المستفتي: نامعلوم ۲/ محرم ۱۳۹۵ھ

**الجواب:** دا كس د كنخل او عقوق له وجې فاسق دی. دهغه لپاره ضروري ده چې د الله تعالی څخه معافي وغواړي او والدين راضي كړي (۴) الحديث: سباب المسلم

---

۱) (مشكوة المصابيح ۳۲۱، كتاب الإمارة والقضاء، الفصل الثانی)

۲) (مشكوة المصابيح ۴۲۰ باب البر والصلة)

۳) (فتاوى هندية ۱: ۵۶۴، الباب السابع عشر في النفقات: الفصل الخامس في نفقة ذوي الأرحام)

۴) في حاشية صحيح البخاري: التوبة...وهي في الشرع ترك الذنب لقبحه والندم على ما فرط منه والعزم على ترك المعاودة وتدارك ما أمكنه أن يتدارك من الأعمال بالإعادة و ردّ المظلمات لذويها أوتحصيل البراءة منهم.
(حاشية صحيح البخاري ۱: ۹۳۳، كتاب الدعوات، باب التوبة)

فسوق، رواه مسلم(۱)ولحديث : الكبائر الاشراك بالله وعقوق الوالدين (رواه الشيخان)(۲)وهوالموفق.

## د مال برباد كوونكي فضول خرچه او د نافرمان زوی له میراث څخه محرومه کول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء، کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د زيد زوی بکر واده کړی دی، زيد د خپل زوی څخه روزانه د بې عزتي. کنځلو او جګړو څخه تنګ شوی. آيا هغه بکر له جايداد څخه محروم کولی شي؟**بينواتوجروا**

المستفتي مرزا ايوب. بمقام شاه پور. تحصيل وضلع اټک

**الجواب:** دا هلک (بکر) فاسق او فاجر دی، **لأن العقوق من الكبائر والموبقات لحديث صحيح** (۳) په هغه باندې توبه کول او د والدينو خوشحاله کول ضروري دي(۴) او چونکې پلار مالک دی: نو هغه زوی محروم کولی شي. په دې شرط

---

۱) (صحيح المسلم ۱:۵۸ كتاب الإيمان ،باب بيان قول النبي ﷺ: سباب المسلم فسوق)

۲) (مشكوة المصابيح ۱۷ ،باب الكبائر وعلامات النفاق ،الفصل الأول)

۳) عن أبي بكرة رضي الله تعالى عنه قال قال النبي ﷺ: ألا أنبئكم بأكبر الكبائر ثلاثاً؟ قالوا بلى يا رسول الله ، قال الإشراك بالله وعقوق الوالدين ، وجلس و كان متكئاً فقال :ألا وقول الزور ،فما زال يكررها حتى قلنا ليته سكت.

(صحيح البخاري ۱:۳۶۲ كتاب الشهادات ، باب ما قيل في شهادة الزور)

۴) قال العلامة العيني رحمه الله تعالى: قال ابن المبارک حقيقة التوبة لها ست علامات: الندم على ما مضى، والعزم على أن لا يعود، ويؤدى كل فرض ضيعه، ويؤدى إلى كل ذى حق حقه من المظالم.

(عمدة القاري ۲۲:۲۷۹، كتاب الدعوات ، باب التوبة)

چې دغه زوی فضول خرچه د مال بربادونکی او ضائع کونکی وي، که نه نو د هغه محروم کول خلاف مصلحت دي (۱) وهوالموفق

## پلار ته کنځل کول او هغه ته چې (په تا به ګولی یخه کړم) د الفاظو ویونکي کس حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې مسمی محمد رحمن زما پلار ته د شاهدانو پر وړاندې کنځل کړي دي او نصیحت کوونکو منعه کړی چې د والدینو په حق کې داسې قبیح الفاظ ویل کفر دی، په دې باندې نور غوسه شو وې ویل چې اوس زه په هغه باندې ګولی یخوم، لازیات رد بد او کنځل یې وکړه، په ډېر زیات شمیر کې شاهدان موجود دي. لهذا د شرعي جرم حد د حقوقو مطابق د وبالوالدین احسانا لاندې ذکر کړي؟ **بینواتوجروا.**

السمتفتي: نامعلوم ۱۸/۶/۷۲

**الجواب:** دا کس عاق دی، (۲) په هغه باندې ضروري ده چې پلار راضي کړي او د الله تعالی څخه معافي وغواړي (۳) که نه نو په ټولو مسلمانانو باندې

---

۱) في الخلاصة: ولو أعطى بعض ولده شيئا دون البعض لزيادة رشده لابأس به وإن كانا سواء لا ينبغي أن يفضل، ولو كان ولده فاسقًا فأراد أن يصرف ماله إلى وجوه الخير ويحرمه عن الميراث هذا خيرمن تركه لأن فيه إعانة على المعصية.
(خلاصة الفتاوى ۴۰۰:۴، كتاب الهبة)

۲) عن عبدالله بن عمرو رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: الكبائر الإشراك بالله وعقوق الوالدين وقتل النفس واليمين الغموس.
(مشكوة المصابيح ۱۷، باب الكبائر وعلامات النفاق، الفصل الأول)

۳) في المرقاة: والتوبة في الشرع ترک الذنب لقبحه ... (د حاشیې پاتې برخه)

ضروري ده چې له هغه سره سلام کلام پرېږدي (۱) **وهوالموفق**

## پلار ته کافر، او مور ته د کنجرې او فحش الفاظو ويونکي زوی حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې يو کس په عام مجلس کې پلار ته کافر او دجال او مور ته د کنجرې او ډېر زيات فحش الفاظ ووېل، د داسې کس لپاره په محمدي ﷺ شريعت کې څه حکم دی؟ د کرم له مخې يې په تفصيل سره بيان کړې؟ **بينواتوجروا**

المستفتي مولوي عزيز الرحمن. خطيب مرى ۲۹/۷/۷۲ع

**الجواب:** قال رسول الله ﷺ : **وعقوق الوالدين**(۲) **وقال عليه السلام: سباب المسلم فسوق**(۳) د همدې احاديثو په بناء، باندې دا کس فاسق او فاجر شوی دی.

---

(د حاشيې پاتې برخه) والندم على ما فرط منه والعزيمة على ترک المعاودة وتدارک ما أمكنه من الأعمال بالإعادة...وزاد النووي إن كان الذنب متعلقاً ببني آدم فلها شرط آخر وهو ردّ المظلمة إلى صاحبها أو تحصيل البراءة منه.

(مرقاة المفاتيح ۵:۱۲۲، كتاب الدعوات، باب الاستغفار والتوبة)

۱) أن عبدالله بن كعب قال سمعت كعب بن مالک يحدث حديثه حين تخلف عن رسول الله ﷺ في غزوة تبوک...ونهى رسول الله ﷺ المسلمين عن كلامنا أيها الثلاثة من بين من تخلف عنه قال فاجتنبنا الناس.

وقال العلامة النووي رحمه الله تعالى :وفي هذا هجران أهل البدع والمعاصي.

(صحيح مسلم ۲:۳۶۱ كتاب التوبة، باب حديث توبة كعب بن مالک وصاحبيه)

۲) وفي المشكوة :عن عبد الله بن عمرو رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: الكبائر الإشراک بالله وعقوق الوالدين وقتل النفس واليمين الغموس، رواه البخاري.

(مشكوة المصابيح ۱۷، باب الكبائر وعلامات النفاق، الفصل الأول)

۳) (صحيح مسلم ۱:۵۸ كتاب الإيمان، باب بيان قول النبي ﷺ :سباب المسلم فسوق)

په هغه باندې ضروري ده چې توبه وکړي والدين او وغيره راضي کړي. (۱) که نه نو د ګنهګار په صورت کې په عامو مسلمانانو باندې ضروري ده چې له ده سره غير ضروري تعلقات قطع کړي او سلام کلام ورسره بند کړي (۲) وهوالموفق

## پلار ته د کافر، ظالم او سپک ويونکي کس حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې که چېرته يو کس خپل پلار په دې الفاظو ويلو سره مخاطب کړي او ورته ووايي چې ته کافر يې، ته ظالم يې. ته سپک يې او پلار هغه عاق کړي. نو د دغه کس څه حکم دی؟ **بينوا توجروا**

المستفتي: محبوب حسين، هزاره

**الجواب:** د صدق او ثبوت په شرط دا زوی عاق او فاسق دی. (۳) په هغه باندې ضروري ده چې توبه وکړي او له پلار څخه معافي وغواړي (۴) او د ګنهګار په

---

۱) قال العلامة النووي رحمه الله تعالى: أن لها (التوبة) ثلثة أركان: الإقلاع والندم على فعل تلک المعصية والعزم على أن لا يعود إليها أبداً، فإن كانت المعصية لحق آدمي فلها ركن رابع وهوالتحليل من صاحب ذلک الحق...واتفقوا على أنّ التوبة من جميع المعاصي واجبة. (حاشية النووي على صحيح المسلم ۲:۳۵۴، كتاب التوبة)

۲) وفي المرقاة: فإن هجرة أهل الأهواء والبدع واجبة على مرّ الأوقات مالم يظهر منه التوبة والرجوع إلى الحق.
(مرقاة المفاتيح ۹:۲۶۲، باب ما ينهي عنه من التهاجر والتقاطع)

۳) عن عبدالله بن عمرو رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: الكبائر الإشراک بالله وعقوق الوالدين وقتل النفس واليمين الغموس.
(مشكوة المصابيح ۱۷، باب الكبائر وعلامات النفاق، الفصل الأول)

۴) في المرقاة: والتوبة في الشرع ترک الذنب لقبحه والندم على ما فرط منه والعزيمة على ترک المعاودة و تدارک ما أمكنه من الأعمال بالإعادة ...وزاد النووي إن كان الذنب متعلقاً ببني آدم فلها شرط آخر وهو ردّ المظلمة إلى صاحبها أو تحصيل البراءة منه. (مرقاة المفاتيح ۵:۱۲۲، كتاب الدعوات، باب الاستغفار و التوبة)

صورت کې دي اهل اسلام له ده سره پرېکون وکړي (۱) وهوالموفق

## د پلار وهونکي او زه تا له شېږ ويشتو کلونو راهيسې خنزير بولم د داسي الفاظو ويونکي زوی حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې زوی پلار له غاړې ونيولو او په څمکه يې وغورځولو. که چيرته يو شمېر خلک موجود نه وای نو پلار به يې مړ کولو، همدغه زوی پلار ته ووېل چې زه تا ته له ۳۶ کلونو راهيسې خنزير وايم، اوس د داسې بيکاره زوی څه سزا ده؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: جناب منګا خان، راولپنډي ډ۱۹۷۶ع/ ۸/ ۲۷

**الجواب:** په داسې موذي زوی باندې ضروري ده چې له الله تعالى څخه معافي وغواړي او پلار راضي کړي (۲) او د ګناهګار په وخت کې په ټولو مسلمانانو باندې ضروري ده چې له هغه سره ترک موالات (پرېکون) ترک سلام او کلام وکړي (۳) **کما**

---

۱) أن عبدالله بن كعب قال سمعت كعب بن مالك يحدث حديثه حين تخلف عن رسول الله ﷺ في غزوة تبوك...ونهى رسول الله ﷺ المسلمين عن كلامنا أيها الثلاثة من بين من تخلف عنه قال فاجتنبنا الناس. (صحيح المسلم)

قال العلامة النووي رحمه الله تعالى: وفي هذا هجران أهل البدع والمعاصي. (صحيح المسلم ۲:۳۶۱ كتاب التوبة، باب حديث توبة كعب بن مالك وصاحبيه)

۲) قال العلامة النووي رحمه الله تعالى: قال العلماء: التوبة واجبة من كل ذنب... وإن كانت المعصية تتعلق بآدمي فشروطها أربعة، هذه الثلاثة، وأن يبرأ من حق صاحبها...وإن كانت حد قذف ونحوه مكنه منه أوطلب عفوه.
(رياض الصالحين ۳۴، باب التوبة)

۳) وفي المرقاة: فإن هجرة أهل الأهواء والبدع واجبة على مرّ الأوقات مالم يظهر منه التوبة والرجوع إلى الحق.
(مرقاة المفاتيح ۹:۲۶۲، باب ما ينهي عنه من التهاجر والتقاطع)

قال بالثلثة الذين خلفوا، وكما فعله ابن عمر بابنه رواه ابن ماجه()وهوالموفق.

## د مور وهونکي کس سره پریکون کول

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یوه بد ذاته خپل مور ووهله، شرعي حکم يې څه دی؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي مولوي محمد سعید، مظفر آباد کشمیر

**الجواب:** دا کس فاسق دی، قال الله تعالی **فَلَا تَقُل لَّهُمَا أُفٍّ()** وقال رسول الله ﷺ: **اجتنبوا السبع الموبقات وذكر فيهن عقوق الوالدين()،()** دا کس دي

---

۱) عن ابن عمر رضي الله تعالى عنهما أن رسول الله ﷺ قال: لاتمنعوا إماء الله أن يصلين في المسجد فقال ابن له: إنا لنمنعهن فقال فغضب غضباً شديدا و قال أحدثك عن رسول الله ﷺ وتقول إنا لنمنعهن.

(سنن ابن ماجة ۳، باب تعظيم حديث رسول الله ﷺ والتغليظ على من عارضه)

۲) (سورة بني اسرائیل آیت ۲۳ ،پاره نمبر ۱۵)

۳) عن أبي بكرة رضي الله تعالى عنه قال قال النبي ﷺ: ألا أنبئكم بأكبر الكبائر ثلاثا؟ قالوا بلى يا رسول الله ، قال: الإشراک بالله وعقوق الوالدين، وجلس وكان متكئاً فقال: ألا وقول الزور ، فما زال يكررها حتى قلنا ليته سكت.

(صحيح البخاري ۱:۳۶۲، كتاب الشهادات، باب ما قيل في شهادة الزور)

۴) ماته په سبع المعلقات کې د عقوق الوالدين ذکر کولو حواله ملاؤ نه شوه. امام بخاری رحمه الله تعالی په صحیح بخاری۱:۳۸۸ کتاب الوصایا کې او ۲:۱۰۱۳، کتاب المحاربين کې او امام مسلم په صحيح المسلم ۱:۶۴ کتاب الایمان کې ، او امام ابوداؤد په ابوداؤد ۲:۳۹۷ کتاب الوصایا کې، او امام نسائی په نسائی ۲: ۱۳۴، کتاب الوصایا وغیره کې دا حدیث داسې نقل کړي دي :......... (د حاشیې پاتې برخه)

د الله تعالی څخه معافي وغواړي او مور دي راضي کړي، (١) که نه نو اهل اسلام دې له هغه سره پریکون وکړي (٢) **وهوالموفق**

## د عاق امامت او له هغه سره د دوستانه تعلقاتو ساتلو حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې زما سکنی زوی زما سخت نافرمان دی او هغه ماته په ضرر رسولو کې هیڅ وخت سرفه نه کړي، څورول او ډېر فحش مغلظات یې زما لپاره ترسره کړي دي، له همدې وجهې په ما باندې زما ژوند تنګ شوی دی چې له امله یې زه د مرګ او ژوند په کشمکش کې مبتلا یم. د کرم له مخې د قرآن او احادیثو په رڼا کې د داسې سختړین نافرمان زوی په لپاره تفصیلا او استدلالاحکم صادر کړی، همدارنګه

---

(د حاشیې پاتې برخه)..... عن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه أن رسول الله ﷺ قال: اجتنبوا السبع الموبقات، قيل يا رسول الله ! ماهي؟ قال: الشرک بالله والسحر وقتل النفس التى حرم الله إلا بالحق وأكل الربوا و أكل مال اليتيم والتولى يوم الزحف وقذف المحصنات الغافلات المؤمنات.

١) قال العلامة النووي رحمه الله تعالىٰ: أن لها(التوبة)ثلثة أركان: الإقلاع والندم على فعل تلك المعصية والعزم على أن لا يعود إليها أبداً، فإن كانت المعصية لحق آدمى فلها ركن رابع وهوالتحليل من صاحب ذلک الحق...واتفقوا على أن التوبة من جميع المعاصى واجبة. (حاشية النووي على صحيح المسلم ٢:٣٥۴، كتاب التوبة)

٢) في المرقاة: قال الخطابي: رخص للمسلم أن يغضب على أخيه ثلاث ليال لقلته ولا يجوز فوقها إلا إذا كان الهجران في حق من حقوق الله تعالىٰ فيجوز فوق ذلک...فإن هجرة أهل الأهواء والبدع واجبة على مرّالأوقات مالم يظهر منه التوبة والرجوع إلى الحق.

(مرقاة المفاتيح ٩:٢۶٢، باب ما ينهي عنه من التهاجر والتقاطع واتباع العورات)

د هغه د ملګريو لپاره شرعي حکم څه دی؟ او له داسې کس سره تعلقات ساتل څنګه دي؟ بينوا توجروا.

المستفتي: محفوظ الرحمن، هري پور، هزاره. ۱۹۷۰ع/۴/۵

**الجواب:** د صدق په شرط دا زوی د عاق کېدو له وجهې فاسق شوی دی. په هغه پسې شاته اقتداء، مکروه تحريمي ده(۱) او که چيرته کېدلی شي نو له هغه سره د تعلقاتو ختمول په هر مسلمان بانديې ضروري دي ترڅو چې توبه کوونکی او پښيمانه شي(۲) قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الکبائر الاشراك بالله وعقوق الوالدين(۳) فقط، وهو الموفق.

## پلار ته د کنځل کوونکي او بې وجې تنګوونکي حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې يو کس خپل پلار ته کنځل کوي او هغه بلا وجه تنګوي، شرعاً د هغه څه حکم دی؟ بينوا توجروا.

المستفتي: قاضي جاويد ارشد، بکوټ، براسته مری، کهوټه. ۷۰ع/۳/۲۴

**الجواب:** دا کس د کبيره ګناه مرتکب شوی دی، د والدينو عقوق کبيره ګناه ده، د مشکوة شريف په ۱۷ صفحه کې دي:

الکبائر الاشراك بالله وعقوق الوالدين(۴) الخ، په قرآن مجيد کې دي وَلَا تَقُلْ

---

۱) وفي الاختيار: ويكره إمامة العبد والأعرابي والأعمى والفاسق والمبتدع. (كتاب الاختيار ۱:۸۰، كتاب الصلوة، فصل أحكام صلوة الجماعة)

۲) وفي المرقاة: قال الخطابي: رخص للمسلم أن يغضب على أخيه ثلاث ليال لقلته ولا يجوز فوقها إلا إذا كان الهجران في حق من حقوق الله فيجوز فوق ذلك... فإن هجرة أهل الأهواء والبدع واجبة على مرّ الأوقات مالم يظهر منه التوبة والرجوع إلى الحق. (مرقاة المفاتيح ۹:۲۶۲، باب ما ينهي عنه التهاجر و التقاطع و اتباع العورات)

۳) (مشكوة المصابيح ۱۷، باب الكبائر وعلامات النفاق، الفصل الأول)

لَهُمَآ أُفٍّ(١) بهر حال دا کس به له پلار څخه معافي غواړي او توبه به کوي(٢) پلار اګر که مشرک هم وي بیا هم اسلام له هغه سره د غوره چلند کولو حکم کړی دی.(٣) **وهوالموفق**

## دوالدينو بې عزتي کوونکي زوی عاق کېدل له جايداد څخه محرومه کېدل

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې زيد د زوی تعليم او تربيت تر خواني پورې وکړ. اوس ځوان شوی د والدينو د عزت خيال نه ساتي، بلکې هر وخت د دوی بې عزتي کوي. آيا والدين يې عاق کولی شي. د تول مال او دولت څخه يې محروم کولی شي او که نه؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي دور خان پشاور

**الجواب:** د صدق او ثبوت په شرط مذکور اولاد عاق او فاسق دی.(٤) بهر حال

---

١) (سورة بني اسرائيل آيت ٢٣، پاره نمبر ١٥)

٢) قال العلامة النووي رحمه الله تعالى: قال العلماء: التوبة واجبة من كل ذنب... وإن كانت المعصية تتعلق بآدمى فشروطها أربعة، هذه الثلاثة، وأن يبرأ من حق صاحبها ... وإن كانت حد قذف ونحوه مكنه منه أو طلب عفوه.
(رياض الصالحين ٣٤، باب التوبة)

٣) قال الله تبارك و تعالى: وَإِن جَاهَدَاكَ عَلَىٰٓ أَن تُشْرِكَ بِى مَا لَيْسَ لَكَ بِهِۦ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَا ۖ وَصَاحِبْهُمَا فِى ٱلدُّنْيَا مَعْرُوفًا.

قال العلامة القرطبي رحمه الله تعالى: والآية دليل على صلة الأبوين الكافرين بما أمكن من المال إن كانا فقيرين، وإلانة القول والدعاء إلى الإسلام برفق.
(تفسير القرطبي ١٤:٦١، سورة لقمن، آيت نمبر ١٥)

٤) عن أنس رضي الله تعالى عنه قال سئل النبي ﷺ عن الكبائر؟ فقال: الإشراك بالله وعقوق الوالدين وقتل النفس وشهادة الزور.

دی مالک دی، هغه د تملیک غیر څخه محروم کولی شي. کما فی الهندیة ۴ : ۳۹۴، ولوکان ولد فاسقًا وأراد أن یصرف ماله الی وجوه الخیر ویحرمه عن المیراث هذا خیر من ترکه، کذافی الخلاصة()
البته که چېرته فساد مثلا له ده یا موجب له سره د قتل او قتال قوي ویره وي: نو د أهون البلیتین طرفته دي میلان وکړی شي. (۲) وهوالموفق

**مورپلار ته کنځل کوونکي، وهونکي اود ناوړه الفاظو ویونکي کس حکم**

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یو کس عاقل او هوښیار خپلو والدینو ته کنځل کوي. بلکې په ناوړه الفاظو سره زړغ ورته کوي او وهلو ته یې آماده کیږي، ګاونډیان یې مداخله وکړي والدین له وهلو بچ کړي، شرعًا د داسې کس څه حکم دی؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي : نامعولم. ۸۷ع/ ۳/ ۱۱

**الجواب:** د صدق او ثبوت په شرط دا زوی عاق دی، (۳) په داسې زوی باندې ضروري ده چې والدین راضي کړي او د الله تعالی څخه معافي وغواړي، (۴) لکه

---

(صحیح البخاري ۱:۳۶۲، کتاب الشهادات، باب ما قیل في شهادة الزور)

۱) (فتاوی هندیة ۴:۳۹۱ کتاب الهبة، الباب السادس في الهبة للصغیر)

۲) قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالیٰ : والضابط أن من ابتلی ببلیتین فإن تساویا خیر وإن اختلفا اختار الأخف.
(الدرالمختار ۱:۳۰۳، باب شروط الصلاة)

۳) عن أنس رضي الله تعالی عنه قال سئل النبي ﷺ عن الکبائر فقال : الإشراک بالله وعقوق الوالدین وقتل النفس وشهادة الزور.
(صحیح البخاري ۱:۳۶۲، کتاب الشهادات، باب ما قیل في شهادة الزور)

۴) في المرقاة : والتوبة في الشرع ترک الذنب لقبحه،.....(د حاشیې پاتې برخه)

ځرنګه چې په والدینو باندې ضروري ده چې د زوی له اسلامي تعلیم ځخه د محروم ساتلو جرم معافي له الله تعالی ځخه وغواړي (۱) والله اعلم بالصواب

## د والدینو د اجازې پرته د علم حاصلولو مسئله

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې زه یو غریب طالب العلم یم، د علم حاصلولو لپاره له خپل هیواد ځخه پاکستان ته راغلی یم، لیکن د قسمت خبره ده چې پلار مي زما د علم په حاصلولو باندې خوښ نه دی او وایي چې له ما سره دنیوي کار وبار وکړه، اګر که هغه د غریبي طبقې سړی دی، لیکن هغه ته د شپې او د ورځې ډوډۍ رسیږي، د هغه پنځه اوښان دي او یو یې مشر ورور دی، د کوم چې دا وخت ۳۰۰ روپۍ تنخا ده، درې یې خویندې دي کومې چې د کور کارونه کوي، والده وفات شوې ده او زه په دې وخت کې صرف میر یادوم، کنز او قدوري وایم، اوس تاسو موږ پوه کړئ چې زه علم پریږدم د والد خدمت وکړم او که د علم په حاصلولو کې بوخت شم او د والد خبره ونه منم؟ ماته ډیره زیاته پریشاني ده؟ **بینوا توجروا**

المستفتي: تاجر شکارپور ۲۴/ مارچ ۱۹۷۸ع

**الجواب:** د غیر محتاج والدینو له اجازې پرته د علم حاصلولو لپاره وتل روا دي، کله چې د فرض عین مقدار حاصلولو لپاره وي او په قرب جوار کې یې حصول مشکل وي، همدارنګه دغه طالب العلم صبیح الوجه نه وي، ددې ځخه

---

(د حاشيې پاتې برخه) والندم على ما فرط منه، والعزيمة على ترك المعاودة وتدارك ما أمكنه من الأعمال بالإعادة...وزاد النووي إن كان الذنب متعلقاً ببني آدم فلها شرط آخر وهو ردّ المظلمة إلى صاحبها أو تحصيل البراءة منه.

(مرقاة المفاتيح ۵:۱۲۲، كتاب الدعوات، باب الاستغفار والتوبة)

۱) قال الله تبارك وتعالى: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا تُوبُوا إِلَى اللَّهِ تَوْبَةً نَصُوحًا.

(سورة التحريم آيت ۸)

د زيات مقدار د حصول لپاره وتل مختلف فيه دي، كما في فتح الملهم من شرح الاحياء: كل ما لاتأمن من الهلاك مع جهله فطلب علمه فرض عين لايسوغ له تركه وان منعك أبواك عن طلبه، وأما ماسوى ذلك من العلوم فقيل لايجوز له الخروج لطلبه الا باذنهما، وقيل لا بأس بالسفر على قصد التعلم اذا كان الطريق آمنا وان كره الوالدان أو أحدهما، لأن الغالب فيه السلامة، والحزن على الغيبة يقطع بالطمع على الرجوع بخلاف الجهاد، آه بحذف ٢ : ٢٥٣() او راجح جواز دى كله چې دغه طالب العلم صبيح الوجه نه وي، همدارنگه په قرب او جوار كې تعليم مشكل وي. يدل عليه ما في الهندية ٥ : ٤٠١، وقال محمد رحمه الله في السير الكبير: اذا أراد الرجل أن يسافر الى غير الجهاد وكره ذلك أبواه (الى أن قال) وان كان لايخاف الضيعة عليهما بأن كانا موسرين ولم تكن نفقتهما عليه ان كان سفرًا لايخاف على الولد الهلاك فيه كان له أن يخرج بغير اذنهما، كذا في الذخيرة، وكذا الجواب فيما إذا خرج للتفقه إلى بلدة أخرى، كذا في المحيط، وفي قاضي خان : هذا اذا كان ملتحيًا، فان كان أمرد صبيح الوجه فلأبيه أن يمنعه() انتهى، قلت: والغالب أن الباعث على المنع عدم الاعتناء بشأن العلم والاعتناء بحصول المال فلا يعتنى بالمنع من مثل هذا الولد، وهو الموفق.

---

١) (فتح الملهم ٢:١٠٥، كتاب الإيمان ،باب الكبائر وأكبرها)

٢) (فتاوى هندية ٥:٣٦٥ ،كتاب الكراهية ،الباب السادس والعشرون في الرجل يخرج إلى السفر ويمنعه أبواه)

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى :وله الخروج لطلب العلم الشرعي بلا إذن والديه لو ملتحيا، وتمامه في الدرر. (الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى :(قوله وتمامه في الدرر) قال فيها: وإن كان أمرد فلأبيه أن يمنعه، ومرادهم بالعلم العلم الشرعي وما ينتفع به فيه.

(ردالمحتار ٦:٢٨٩، كتاب الحظر والإباحة ،فصل في البيع)

## د مور په وهلو او کنځل کولو سره په نکاح باندې اثر نه پریوځي

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یو کس خپلې مور ته فحش کنځل وکړه او وې وهل، دغه کس واده هم کړی دی، ددې سره حکم څه دی؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي: زاهد حسین عباسي، مری.. یکم ذی الحجه ۱۴۹۹هه

**الجواب:** مور ته کنځل کول [۱] یا یې وهل ټکول حرام دي، [۲] همدارنګه ددې مرتکب دي د مور څخه معافي وغواړي. [۳] البته په نکاح باندې کوم اثر نه پریوځي. **وهوالموفق**

---

۱) عن عبدالله بن مسعود رضي الله تعالیٰ عنه قال قال رسول الله ﷺ: سباب المسلم فسوق و قتاله کفر.

(صحیح المسلم ۱:۵۸، کتاب الإیمان ،باب بیان قول النبي ﷺ: سباب المسلم فسوق)

۲) عن أنس بن مالک رضي الله تعالیٰ عنه قال: ذکر رسول الله ﷺ الکبائر أو سئل عن الکبائر ؟فقال :الشرک بالله وقتل النفس وعقوق الوالدین.

(صحیح المسلم ۱:۶۴، کتاب الإیمان ،باب الکبائر وأکبرها).

۳) قال العلامة محمود أحمدالآلوسي رحمه الله تعالیٰ :وفي شرح المقاصد :قالوا إن کانت المعصیة في خالص حق الله تعالیٰ فقدیکفي الندم،...وإن تعلقت بحقوق العباد لزم مع الندم والعزم إیصال حق العبد أو بدله إلیه....والاعتبار إلیه إن کان ایذاءً کمافي الغیبة.

(روح المعاني ۲۸:۱۵۸،۱۵۹، سورة التحریم آیت :۸)

وفي شرح الفقه الأکبر :وأما إن کانت المظالم في الأعراض کالقذف والغیبة فیجب في التوبة فیهامع ماقدمناه في حقوق الله تعالیٰ أن یخبر أصحابها بماقال من ذلک ویتحلل منهم.

(شرح الفقه الأکبر ۱۵۹ ،بحث التوبة)

## له پلار سره په ناوړه چلند کنځل کولو او غیره سره زوی له میراث څخه محرومه کېدی نه شي

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې زما زامن ګل خطاب او محمد افضل له ما سره ناوړه چلند او زما نافرماني كوي او زما خبره نه مني او كنځل هم راته كوي، چې په هر ډول يې پوهوم نه يې مني. علماوو او ګاونډيانو هم پوه كړي دي، آيا دغه نافرمان اولاد د مور او پلار د ميراث حق لري؟ په شريعت كې د دوى څه حكم دى؟ **بينواتوجروا.**

**المستفتي:** ګلدارخان ،هزاره... ۱۴/ محرم الحرام ۱۴۰۷ ه

**الجواب:** د والدينو نافرماني او ګستاخي كوونكي حكم د نورو فاسقانو په شان دى، ځكه چې د والدينو عزت او احترام په اولاد باندې ضروري دى[۱] باقي د ميراث په حق كې پلار خپل هيڅ زوى له مرګ وروسته له ميراث څخه محرومه كولى نه شي، ځكه چې د ميراث حق يو اضطراري حق دى، كوم چې والد يا كوم بل مورث ساقطولى نه شي، [۲] البته كه چېرته والد د ژوند په حالت كې خپل ټول

---

۱) عن عبدالله بن عمرو رضي الله تعالى عنه جاء أعرابي فقال يارسول الله ! ما الكبائر؟ قال :الإشراک بالله ،قال ثم ماذا قال :ثم عقوق الوالدين.
(الكبائر ۵۰ ،الكبيرة الثامنة ،عقوق الوالدين)

وفي التفسير القرطبي :وَقَضَىٰ رَبُّكَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا.....
الثالثة : من البر بهما والإحسان إليهما ألايتعرض لسبهما ولايعقهمافإن ذلک من الكبائر بلاخلاف.
(تفسير القرطبي ۱۰:۲۰۸ ،آيت ۲۳ ،سورة الإسراء)

۲) في تكملة ردالمحتار :الإرث جبري لايسقط بالاسقاط.
(تكملة ردالمحتار ۱:۳۹۱ ،كتاب الدعوى ،مطلب واقعة الفتوى)

جایداد چاته بخشش کړي یا د ژوند په وخت کې یو څوک د هغه مالک جوړ کړي نو د مرګ وروسته دهغه په جایداد کې حق نه لري «ماخوذ ازعالمګیري»[۱] فقط

## دوالدینو له اجازې پرته تبلیغ ته د تلو مسئله

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې زما ورور په میډیکل کالج کوئټه کې د ایم بي بي ایس طالب العلم دی. هغه په رخصتیو کې تل «همیشه» یوه نیمه میاشت په تبلیغ کې لګوي. مګر والدین ددې اجازه نه ورکوي او هغه چې کور ته راشي په کلیو کې د تبلیغ خبره ورته کوي. ورور مې وایي چې په تبلیغ باندې باعث دا دی چې زمونږ سره په کالج کې هندو. سیک. شیعه او هر قسم زده کوونکي دي؛ نو که چیرته زه د والدینو سره کښینم نو زما حالت به څه ډول شي؟

آیا تبلیغ ته تلل د مور پلار د اجازې پرته روا دي؟ هغه په خپله وایي چې مولانا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللهُ لیکلي دي په بهشتي زیور کې چې د دین د طلب لپاره د والدینو له اجازې پرته تلل روا دي. آیا تبلیغ په هغه کې شامل دی او که نه؟ بینوا توجروا.

المستفتي عبدالرحیم بلوچستاني ۱۴۰۰ھ/۶/۱۱

**الجواب:** چونکې د تبلیغ په سفر کې هلاکت نادر او سلامتیا غالبه ده. لهذا د علم د سفر په شان دا سفر هم د غیر محتاج والدینو له اجازې پرته روا دی.**لمافي الهندیة ۵: ۴۰۱، وان کان لایخاف الضیعة علیهما بأن کان موسرین ولم تکن نفقتهما علیه**

---

۱) وفي الهنداية: رجل وهب في صحته كل المال للولد جاز في القضاء ويكون آثماً فيما صنع..... رجل دفع إلى ابنه في صحته مالاً يتصرف فيه ففعل وكثر ذلك فمات الأب؛ إن أعطاه هبة فالكل له وإن دفع إليه لأن يعمل فيه للأب فهو ميراث.

(فتاوى هندية ۴: ۳۹۳، ۳۹۲، كتاب الهبة، الفصل السادس في هبة الصغير)

إن كان سفراً لايخاف على الولد الهلاك فيه كان له أن يخرج بغير إذنهما الخ(١).

**نوټ:** که چېرته د ځلورو میاشتو څخه زیات وخت لګوي؛ نو بیا د ښځې څخه اجازه اخیستل ضروري ده (٢) **وهوالموفق**

## د والدینو لپاره د اولاد د ګټې څخه د خوړلو مسئله

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې زید بال بچه دار دی او اولاد یې غټ شوي. بالغان دي. د بالغ اولاد د ګټې حقدار دوی خپله دي او که والدین هم حقدار کېدلی شي؟ **بينوا توجروا**

المستفتي ګل هاشم ۱۹۷۵ع ۲۵/۳

**الجواب:** که چیرته والدین محتاج وي؛ نو د اولاد له ګټې څخه یې خوړلی شي (٣) **وهو محمل أنت**

---

١) فتاوى هندية ٥:٣٦٥كتاب الكراهية ،الباب السادس والعشرون)

٢) قال العلامة الحصكفي :ولايبلغ مدة الإيلاء برضاها. (الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى :قال في الفتح....ويجب أن لايبلغ به مدة الإيلاء إلا برضاها وطيب نفسها به. (قوله ولايبلغ مدة الإيلاء)تقدم عن الفتح التعبير بقوله ويجب أن لايبلغ الخ وظاهره أنه منقول....وهو أربعة أشهر... ويؤيد ذلك أن عمر رضي الله تعالى عنه لماسمع في الليل امرأة يقول....فسأل بنته حفصة: كم تصبر امرأة عن الرجل؟ فقالت أربعة أشهر ،فأمر أمراء الأجناد أن لايتخلف المتزوّج عن أهله اكثر منها. (ردالمحتار ٢:٤٣٢، كتاب النكاح،باب القسم)

٣) عن عائشة رضي الله تعالى عنها قالت قال النبي ﷺ:إن أطيب ما اكلتم من كسبكم وان أولادكم من كسبكم) أى من جملته لأنهم حصلوا بواسطة تزوّجكم فيجوز لكم أن تأكلوا من كسب أولادكم اذا كنتم محتاجين وإلا فلا إلا أن طابت به أنفسكم، هكذا قرره علماءنا،وقال الطيبي رحمه الله تعالى نفقة الوالدين على الولد واجبة إذا كانا محتاجين عاجزين عن السعي...روى ابن ماجة عن جابر بسند...(دحاشيې باتې برخه)

ومالك لأبيك(١) وهوالموفق.

## د طالب العلم له واده څخه په انکار کولو کې هیڅ حق تلفي نشته

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې كه چيرته والدين طالب العلم ته واده كول غواړي او هغه انكار كوي؛ نو په دې صورت كې د والدينو حق تلفي شته او كه نه؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: شفيق الرحمن، پشاور يونيورستي.. ١٥/ اګشت ١٩٧٩ع

**الجواب:** په دې كې د والدينو هيڅ حق تلفي نشته.(٢)**وهوالموفق**

---

(د حاشيې پاتې برخه) صحيح أن رجلًا قال يارسول الله !ان لي مالًا وأبي يريد أن يجتاح مالي قال أنت ومالك لأبيك.

(مرقاة المفاتيح ٦:٤١، كتاب البيوع ،باب الكسب وطلب الحلال)

١) (مسندالإمام اعظم٢٠٨كتاب الأدب)

وفي هامش المسند :وفيه تنبيه على أن للأب أن يأخذ من مال ابنه بغيبته بلا رضاه لصيانة نفسه.

(هامش مسندلإمام اعظم٢٠٩، كتاب الأدب)

٢) قال حكيم الأمت التهانوي رحمه الله تعالى : كوم امر چې شرعاً نه واجب وي او نه ممنوع وي بلكې مباح وى، اګر كه مستحب وي او مور پلار دهغې د كولو يا نه كولو ووايي نو په هغې كې تفصيل دى، كتل پكار دي چې ددې امر دغه سړي ته داسې ضرورت دى چې ددې نه بغيربه ورته تكليف وي.....يا ددې كار په كولوكې به څه خطره او ويره وي ...كه ددې دواړو خبر و نه يوه خبره هم نه وي، يعني نه ددې كار يا سفر كې هغه ته نه خطره وه او نه بل څه ظاهري مشقت او تكليف څه احتمال وي؛ نو بې ضرورته هم دغه كار يا سفر باوجود د دوى د ممانعت جائز دى، اګر چې مستحب هم داده چې دغه وخت هم اطاعت وكړي.

(بوادر النوادر ٤٨٧،رساله تعديل حقوق والدين)

## د علم حاصلولو یا د تبلیغ لپاره له پلار څخه په غلا د روپیو اخیستل

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې زه د تبلیغ لپاره ځم که چیرته روپۍ نه وي؛ نو د پلار څخه يې په غلا اخیستلی شم. زما دا خیال وي چې وروسته به يې هغه ته ورکړم، آیا داسې صحیح ده؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي: جناب صالح خان. لکی مروت نزد تاون کمپنی.

**الجواب:** که چیرته په همدې طریقه کې د پلار ناراضګي یقیني یا شکي وي: نو له داسې طریقو څخه پرهیز کول ضروري دي. (۱) **لأن الوارد هو أنت ومالك لأبيك**(۲) **لا أنت ومالك لولدك.** بهر حال په دې طریقه له اخیستلو څخه دا بهتره ده چې له چا قرض واخیستل شي. البته د دیني طالب العلم لپاره د نفقې په اندازه اخیستل مرخص دي (۳)**وهوالموفق**

---

۱) وفي الهندية :الابن البالغ يعمل عملًا لاضرر فيه دينًا ولادنيًا بوالديه وهما يكرهانه فلا بدّمن الاستئذان به إذا كان له منه بدّ.
(فتاوى هندية ۵: ۳۶۵، كتاب الكراهية ،الباب السادس والعشرون)

۲) عن جابر رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: أنت ومالک لأبيک.
(مسند الإمام اعظم: ۲۰۸، كتاب الأدب)

۳) قال العلامة الزيعلي رحمه الله تعالى :وإن كان (الابن) كبيراً لاتجب عليه نفقته إلا إذا كان (الأب) موسراً والابن فقير زمن ونحوه.....أوطالب علم لايتفرغ لذالک.
(تبيين الحقائق ۶۴: ۲باب النفقه ،قبيل كتاب الإعتاق)

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى :وكذا تجب لولده الكبيرالعاجز عن الكسب.... أو طالب العلم لايتفرغ لذلک ،كذا في الزيلعي والعيني.
(الدرالمختار ۲: ۷۳۰، كتاب الطلاق ،باب النفقة)

## د حديث (أنت ومالك لأبيك) له مخې پلار د ضرورت په وخت کې د زوی مال مصرفولی شي

**سوال:** ماتقول العلماء الكرام في المسئلة الآتية: ماحكم هذا الحديث (أنت ومالك لأبيك) أهذا الحكم في حالة الصغر أم في حالة الكبر أم في كليهما؟ بينوا توجروا.

السمتفتي: نامعلوم...۱۶/ ربيع الثاني ۱۴۰۵هـ

**الجواب:** حكم هذا الحديث لايختص بحال من الأحوال لكونه مطلقاً(١) وأن الفقهاء لم يقيدوه بها(٢) فالأب عند الضرورة ينفق مال الابن(٣) وكذا

---

١) عن جابر رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: أنت ومالک لأبيک. (مسند الإمام اعظم: ۲۰۸، كتاب الأدب)

٢) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وتجب على موسر ولو صغيراً النفقة لأصوله الفقراء. (الدر المختار مختصراً)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: لو كان للفقير ابنان أحدهما فائق في الغنى والأخر يملک نصاباً فهي عليهما سوية....هذا لو تفاوتا في اليسار تفاوتا يسيراً فلو فاحشاً يجب التفاوت فيها، بحر.

(ردالمحتار ۲:۷۳۵.۷۳۶، باب النفقة، مطلب ضابط في حصر أحكام نفقة الأصول والفروع)

٣) في هامش المسند: أنّ رجلاً اتى النبي ﷺ فقال يارسول الله! إن لي مالا ووالدا وانّ والدي يحتاج إلى مال فقال: أنت ومالک لوالدک، انّ أولادكم من أطيب كسبكم فكلوا من كسب أولادكم....فيه تنبيه على أنّ للأب أن يأخذ من مال ابنه بغيبته بلا رضاه لصيانة نفسه. (هامش مسند الإمام اعظم: ۲۰۹، كتاب الأدب)

يستخدمه بلا وجوب الضمان والأجرة(۱) وهو الموفق.

---

(۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: لا يجوز للابن أن يستأخر أباه للخدمة. (در المختار ۲: ۳۶۳، كتاب النكاح، باب الظهر)

# باب حقوق الأستاذ

## په شاګرد باندې د استاذ حقوق

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې په شاګرد باندې د استاذ کوم کوم حقوق دي؟ بينوا توجروا.

المستفتي: قاري فداء الرحمن، دار القرآن، ګارډن ټاون لاهور

**الجواب:** د استاذ حقوق کوم چې له قرآن او حديث څخه مستنبط دي دا دي:

**أن لايفتح الكلام قبله ولايجلس مكانه وان غاب ولايرد عليه كلامه ولايتقدم عليه فى مشيه كذا فى ردالمحتار ۵: ۶۶۱(١) قلت: وكذا القيام إليه(٢) وتعظيمه، ومن لم يشكر الناس لم يشكر الله(٣) وهوالموفق.**

---

١) (ردالمحتار ۵:۵۳۳،قبيل كتاب الفرائض)
(ومثله في الفتاوى الهندية ۵:۳۷۳،كتاب الكراهية،الباب الثلاثون في المتفرقات)

٢) وعن أبي سعيد الخدري رضي الله تعالى عنه قال: لما نزلت بنو قريظة على حكم سعد بن معاذ بعث رسول الله ﷺ، فجاء على حمار، فلما دنا قال رسول الله ﷺ: قوموا إلى سيدكم. (مشكوة المصابيح)

وفي المرقاة: قال النووي: فيه إكرام أهل الفضل وتلقيهم والقيام لهم إذا أقبلوا واحتج به الجمهور، وقال القاضي عياض ليس هذا من القيام المنهي عنه.
(مرقاة المفاتيح ۸:۴،كتاب الجهاد،باب حكم الإسراء)

٣) عن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه عن النبي ﷺ قال: لايشكر الله من لا يشكر الناس. (سنن أبي داؤد ۲:۶۶۲،كتاب الأدب،باب في شكر المعروف)

**داستاذ تعريف اوپه مسائلوکې دهغه مخالفت په کوموصورتونو کې روادی؟**

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره کې چې زيد د تعليم لپاره بهرني هيواد ته تللی، په پوهنتون کې هغه ځينې د عيسويانو او ځينې د نورو مذهبونو والاڅخه لوست زده کوي، (مثلا مالکي او وغيره) اوس زيد د هغو مخالفت کوي په مذهبي شيانو کې يا په غير مذهبي شيانو کې، نو آيا زيد له هماغه استاذونو څخه عاق کېدلی شي او که نه؟ همدارنګه د استاذ جوړيدو معيار څه دی؟ په کوم شي باندې د يو بل استاذ جوړېدلی شي؟ آيا صرف نفس د کوم شي په ورزده کولو سره استاذ جوړېدلی شي او که نه؟ او که نور شرطونه د استاذ جوړيدو لپاره شته؟ **بينواتوجروا.**

**المستفتي:** شيربهادر ،ډهيروی، متعلم دار العلوم حقانيه اکوړه خټک ..۸۶ م/۲/ ۱۰

**الجواب:** د علم دين ښوونکی شرعي استاذ دی، د نورو علومو ور زده کوونکی حقدار دی، ليکن شرعي استاذ نه دی، عرفي استاذ دی او په کومو مسئلو کې چې رأيې لره دخل وي په هغو کې د استاذ څخه باقاعده مخالفت نه عقوق دی او نه فسوق دی (۱) **وهوالموفق**

**د استاذ نافرمان شاګرد د والدينو د نافرمان زوی په شان فاسق دی**

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره کې يو داسې شاګرد

---

۱) د استاذ سره په اجتهادي مسئلو کې اختلاف د سلف او خلف د تعامل نه نقل دی، لکه څنګه چې د صاحبينو اختلاف دخپل استاذ امام ابوحنيفه رحمه الله تعالى سره په سوونو مسئلو کې ثابت دی او دې طرف ته په حديث : إختلاف أمتي رحمة،، کې هم اشاره ده، وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى :وعلم بأن الاختلاف من آثار الرحمة فمهما كان الاختلاف اكثر كانت الرحمة أوفر .(درمختار)

وقال العلامة ابن عابدين :قال مالک بن أنس :إن اختلاف العلماء رحمة من الله تعالى على هذه الأمة :،كل يتبع ماصح عنده،وكلهم على هدًى،وكل يريدالله تعالى. (رد المحتار ۱ :۵،مطلب في حديث اختلاف أمتى رحمة)

دی چې هغه له استاذ سره د قرآن څه برخه لوستلې ده، هغه د خپل استاذ سره غیر اخلاقي خبرې وکړې، آیا داسې کس عاق کېدلی شي او که نه؟ که چېرته عاق کېدلی شي د هغه څه حکم دی؟ **بینوا توجروا**

المستفتي عبدالرشید، یارحسین، صوابی ...۱۲/ ذی القعده

**الجواب:** واضحه دې وي چې د والدینو عقوق د حدیث د تصریح په بناء کبیره ګناه ده، **وهو ما رواه البخاري**(۱) **ومسلم عن عبدالله بن عمرو مرفوعًا**(۲) مګر د استاذ د عقوق متعلق کومه واضح تصریح موجوده نه ده. البته د دلالة النص له وجې او د علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د اثر له وجې استاذ د والد څخه کم نه دی. (۳) بهرحال د استاذ عاق شوی هم فاسق دی، د هغه پسې لمونځ کول مکروه تحریمي

---

۱) عن أنس رضي الله تعالى عنه قال سئل النبي ﷺ عن الكبائر؟ فقال: الإشراك بالله وعقوق الوالدين وقتل النفس وشهادة الزور.

(صحيح البخاري ۱:۳۶۲، كتاب الشهادات، باب ما قيل في شهادة الزور)

۲) عن عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله تعالى عنه أن رسول الله ﷺ قال: من الكبائر شتم الرجل والديه، قالوا يا رسول الله! وهل يشتم الرجل والديه؟ قال نعم! يسبّ أبا الرجل فيسبّ أباه ويسبّ أمه فيسبّ أمه.

(صحيح المسلم ۱: ۶۴، كتاب الإيمان، باب الكبائر وأكبرها)

۳) قال الإمام برهان الإسلام الزرنوجي رحمه الله تعالى: قال عليّ كرم الله وجهه: أنا عبد من علمنى حرفًا واحداً، إن شاء باع، وإن شاء أعتق، و إن شاء استرق، وقد انشدت في ذلک شعراً: رأيت أحقّ الحقّ حقّ المعلّم :وأوجبه حفظًا على كل مسلم: لقد حقّ أن يهدي إليه كرامة: لتعليم حرف واحد ألف درهم. فإن من علمک حرفًا مما تحتاج إليه في الدين فهو أبوک في الدين.

(تعليم المتعلم طريق التعلم ۲۱، فصل في تعظيم العلم وأهله)

وفي الهندية: ويقدم حق معلمه على حق أبويه .....(د حاشيې باتې برخه)

دي، (۱) ولايلتفت الى ما في بعض الفتاوى الضعيفة من التغليظات التي لا أصل لها في الأصول ولا في الفروع، والله أعلم.

## استاذ ته د كافر ويونكي حكم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلي په باره کې چې څېل استاذ ته کوم چې ټول قرآن مجيد د هغه څخه ويل شوی وي، هغه ته د كافر ويونكي شاگرد څه حكم دی؟ بينوا توجروا.

**المستفتي:** حافظ احسان الحق صاحب.پبی ستيشن ... ۱۱ رجب المرجب ۱۳۹۷ء

**الجواب:** مسلمان استاذ ته كافر ويل موجب گناه موجب تعزير دی او موجب عقوق دی، أما الأول فلما في صحيح البخاري: لايرمي رجلا بالفسوق ولايرميه بالكفر الا ارتدت عليه ان لم يكن صاحبه كذلك(۲) وأما الثاني: فلما في شرح التنوير: وعزر الشاتم بيا كافر وهل يكفر ان اعتقد المسلم كافراً؟ نعم! والالا به يفتى (۳) أما الثالث: فواضح.

**نوټ:** د فاسق شاته د صالحانو اقتداء مكروه تحريمي ده، (۴) البته له انفراد څخه اقتداء افضله ده،

---

(د حاشيې پاتې برخه)...وسائر المسلمين...وقد قال عليّ رضي الله تعالى عنه لابنه الحسن رضي الله تعالى عنه: قم بين يدى مولاک عني أستاذه.

(فتاوى هندية ۵:۳۷۸ كتاب الكراهية ، الباب الثلاثون في المتفرقات)

۱) في الاختيار: ويكره إمامة العبد والأعرابي والأعمى والفاسق وولد الزنا.

(كتاب الاختيار ۱:۸۰، كتاب الصلوة، فصل أحكام الصلوة)

۲) (صحيح البخاري ۲:۸۹۳، كتاب الأدب ،باب ماينهى عن السباب واللعن)

۳) الدر المختار ۳:۲۰۱، باب التعزيز)

۴) قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى :وينبغي.......(دحاشيې پاتې برخه)

،كما في سائر كتب الفتاوى (۱) وهو الموفق

## سيده معلمې ته د كنځل كوونكي حكم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې مسمى اسلم بلا وجه د سيد لور ته پر لاره د تلو په وخت كې فحش كنځل وكړل، حالانكې مذكوره بي بي له اهل بيت رسول الله ﷺ څخه ده او د مذكور اسلم معلمه هم ده، مذكور اسلم او دده پلار د همدې ښځې په ميړه پسې شا ته لمونځ هم كوي كوم چې د همدې خلكو بچيانو ته د دين تعليم او قرآن ور زده كوي، د داسې كس لپاره څه حكم دى؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي: اصغر شاه كاظمي، راولپنډى

**الجواب:** د مستفتي د صدق په شرط اسلم د عقوق او فسق مرتكب شوى دى، **قال رسول الله ﷺ: سباب المسلم فسوق (رواه مسلم)** (۲) په هغه باندې

---

(د حاشيې پاتې برخه)... أيكون محل كراهة الاقتداء بهم عندوجود غيرهم وإلا فلا كراهة كما لايخفى. (البحر الرائق ۱: ۳۴۹، باب الإمامة)

وقال العلامة الحلبي رحمه الله تعالى: كذا في فتاوى الحجة وفيه إشارة إلى أنهم إن قدموا فاسقًا يأثمون بناء على أن كراهة تقديمه كراهة تحريم.

(الشرح الكبير ۴۷۵، فصل في الإمامة)

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: فإن أمكن الصلاة خلف غيرهم فهو أفضل وإلا فالإقتداء أولى من الإنفراد.

(ردالمحتار ۱: ۴۱۳، قبيل مطلب الساعة البدعة خمسة أقسام، باب الأمامة)

۲) صحيح المسلم ۱: ۵۸، كتاب الإيمان، باب بيان قول النبي ﷺ، سباب المسلم فسوق وقتاله كفر)

ضروري ده چې توبه وکړي او د معلمې څخه معافي وغواړي، (١) کنه نو دا کس د تعزیر لائق ګرځي (٢)، وهوالموفق

## استاذ او امام ته د سود خور او حرام خور ویونکي حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یو کس خپل استاذ او د جومات امام ته سود خور او حرام خور ویلي دي، د هغه شرعي حکم څه دی؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي: هدایت الله. پشاور...١٩٧٦ع ٢/١١

**الجواب:** د صدق او ثبوت په شرط دا کس د عقوق له وجې فاسق دی، (٣) لهذا

---

١) في شرح الفقه الأكبر :وليس شيئاًيكون سبباًلغفران جميع الذنوب إلاالتوبة.... التوبة في الشريعة :هى الندم على معصية من حيث هي معصية مع عزم أن لايعود إليها إذا قدر عليها ..... وإن كانت عما فرط فيه من حقوق الله تعالىٰ كصلاة وصيام وزكاة فتوبته أن يندم على تفريطه....وإن كانت عما يتعلق بالعباد....فإن كانت المظالم في الأعراض كالقذف والغيبة فيجيب في التوبة فيها مع ما قدمناه في حقوق الله تعالىٰ : أن يخبر أصحابها بماقال من ذلك ويتحلل منهم.....فإذا حللوه سقط عنه ما وجب عليه لهم من الحق.
(شرح الفقه الأكبر ١٥٧،بحث التوبة)

٢) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالىٰ :وعزر كل مرتكب منكر أومؤذى مسلم بغير حق بقول أو فعل....فيعزر....بقذف كافر وكل من ليس بمحصن بزنا.
(الدرالمختار ٣: ١٩٩،باب التعزير)

٣) عن عبدالله بن عمرو رضي الله تعالىٰ عنه قال قال رسول الله ﷺ :الكبائر الإشراک بالله وعقوق الوالدين وقتل النفس واليمين الغموس.
(مشكوة المصابيح ١٧ ،باب الكبائر وعلامات النفاق ،الفصل الأول)

ددې کس لپاره د خپل استاذ څخه معافي غوښتل لازمي دي او د الله تعالی په دربار کې ورته توبه کول ضروري ده (۱) فقط

## خپل شاګرد ته د قرآن په اورولو سره استاذي او شاګردي نشي ثابتيدلی

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې يو استاذ حافظ قرآن خپل شاګرد ته د خپل شک ليرې کولو له امله قرآن پاک اورولی دی، ايا په دغه استاذ باندې د شاګرد حقوق وغيره د استاذ په مثل لازمېدی شي، که چيرته استاذ د دغه شاګرد ادب کوي؛ نو د دغه شاګرد تعليمي حالت خرابيږي له وهلو پرته ګوزاره نه کيږي؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: قاري محمد خان، اچهړيان. ۱۰ دسمبر ۱۹۷۵ع

**الجواب:** دهمداسې نوعيت په اورولوسره شاګردي او استاذي نه شي ثابتېدلی، كما في مراجعة جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ مع النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ في رمضان (۲) **وهوالموفق.**

## د شاګرد د استاذ لخوا د غره له ونو څخه په منع کولو باندې د عاق کيدو مسئله

**سوال:** جناب مفتي صاحب: د لاندې ذکر شوې مسئلې په ځواب سره مو ونازوی چې انور زيد ته تعليم ورکړی دی. اوس انور وايي چې ما زيد عاق کړی دی.

---

۱) قال العلامة النووي رحمه الله تعالى: قال العلماء: التوبة واجبة من كل ذنب ...وإن كانت المعصية تتعلق بآدمي فشروطها أربعة، هذه الثلاثة، وأن يبرأمن حق صاحبها...وإن كانت حد قذف ونحوه مكنه منه أوطلب عفوه.

(رياض الصالحين ۳۴، باب التوبة)

۲) عن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه قال: كان يعرض على النبي ﷺ القرآن كل عام مرة فعرض عليه مرتين في العام الذي قبض.

(مشكوة المصابيح ۱۸۳، باب الاعتكاف)

هغه داسې چې د زيد غر وو او انور له هغه ځخه لرګي پرې کول او په همدې لرګيو باندې حکومت پابندي لګولې وه. نو ځکه هغه وايي چې ما ته عاق کړی یې. له دې پرته انور بل څوک راپورته کړي دي چې ته د زيد په جايداد باندې دعوه وکړه، هغه بل کس په هغه باندې دعوه وکړه نو قاضي صاحب د مصلحت په ډول له زيد څخه څلور سوه روپۍ واخيستې او مدعي ته يې ورکړې. اوس دغه مالي نقصان کوم چې بلا وجه زيد ته ورسيده محض د انور په شرارت سره. نو آيا زيد په دې خبره باندې چې دی له خپل حق څخه نورو منع کړی دی عاق شوی دی او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: ميان جي ملا صاحب. تيمر ګره. دير ستيټ ۶۹ع/۸/۱

**الجواب:** د غره ونې غير مملوک دي له هغو څخه د هيچا منع کول روا نه دي، برابره ده که استاذ وي که شاګرد وي، يدل عليه ما في الهندية ۱: ۱۹۷، **وما يجمع من ثمار الأشجار التى ليست بمملوكة كأشجار الجبال يجب فيها العشر كذا فى الظهيرية()وهوالموفق**

## د عاق طالب پسې د لمانځه حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې يو کس علوم زده کول ليکن يو شمير استاذان له ده څخه ناراضه شوي وو او دی يې عاق کړی و، د دغه کس پسې د لمانځه څه حکم دی او د عاق څه حکم دی؟ بينواتوجروا

المستفتي: مولوي عيد محمد. دارالعلوم عربيه تل، کوهاټ

---

۱) (فتاوى هندية ۱۸۶: ۱، الباب السادس في زكاة الزرع والثمار)

وفي شرح المجلة: الأشجار التي تنبت بلا غرس في الجبال المباحة يعني غير المملوكة مباحة.

(شرح المجلة ۱۸۲: ۴، المادة نمبر ۱۲۴۳)

**الجواب:** عاق فاسق دی، لکون العقوق کبیرة، کما فی الحدیث(۱) د هغه پسې اقتداء کول مکروه تحریمي ده، لکه څرنګه چې د نورو فاسقانو هم همدا حکم دی،[۲] الا أن یکون أصلح القوم فلا کراهة کما فی إمامة البحر(۳) وهوالموفق.

## د طالب العلم له خپل استاذ سره په سبق کې بحث مباحثه کول

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې که چیرته یو طالب العلم د خپل استاذ سره په سبق کې کوم بحث وکړي نو دا روا دی او که نه؟ بینواتوجروا

المستفتي: عالم زیب، چارسده ۱۹۶۹ء ۱۴۱

**الجواب:** د خپل ځان پوهولو یا د حق ثابتولو لپاره بحث کول روا دی وهو الموفق

---

۱) عن عبدالله بن عمرو رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: الکبائر الإشراک بالله وعقوق الوالدین وقتل النفس والیمین الغموس.
(صحیح المسلم ۱: ۶۴، کتاب الإیمان، باب الکبائر واکبرها)

۲) قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالى: قوله ویکره إمامة عبد.....وفاسق)من الفسق وهوالخروج عن الاستقامة ولعل المراد به من یرتکب الکبائر.
(ردالمحتار ۱: ۴۱۴، قبیل مطلب البدعة خمسة اقسام)

۳) قال العلامة ابن نجیم رحمه الله تعالى: وینبغی أن یکون محل کراهة الاقتداء بهم عند وجود غیرهم وإلا فلا کراهة کما لایخفی!
(البحر الرائق ۱: ۳۴۹، باب الإمامة)

# باب توهين الامام والعلماء

## د جومات د امام توهين او په هغه باندي د دروغو الزام لګول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د جومات امام د توهين کوونکي څه حکم دی؟ **بينواتوجروا**

المستفتي: خليل الرحمن، پشاور

**الجواب:** د مسلمان توهين او په هغه باندې د دروغو الزام لګول منصوصاً حرام دي، (۱) د صدق او ثبوت په شرط په دغه کس باندې ضروري ده چې له امام څخه معافي وغواړي او توبه وکړي، (۲) کنه نو نور مسلمانان دي د هغه سره په پريکون کولو باندې مجبور شي (۳) **وهوالموفق**

---

۱) وفي المشكوة: عن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: المسلم أخو المسلم لايظلمه ولايخذله ولايحقره، التقوى ههناويشير إلى صدره ثلث مرار، بحسب امرئ من الشر أن يحقرر أخاه المسلم، كل المسلم على المسلم حرام دمه وماله وعرضه. (مشكوة المصابيح: ۴۲۲، باب الشفقة والرحمة على الخلق، الفصل الأول)

۲) قال العلامة النووي رحمه الله تعالى: وإن كانت المعصية تتعلق بآدمي فشروطها أربعة، هذه الثلاثة وأن يبرأ من حق صاحبها، فإن كانت مالًا أونحوه ردّه إليه، وإن كانت حد قذف ونحوه مكنه منه أوطلب عفوه وإن كانت غيبة استحلّه منها.
(رياض الصالحين ۳۳، باب التوبة)

۳) وفي المرقدة: فإن هجرة أهل الأهواء والبدع واجبة على مرّ الأوقات مالم يظهرمنه التوبة والرجوع إلى الحق.
(مرقاة المفاتيح ۹: ۲۶۲، باب ما ينهى عنه من التهاجر والتقاطع)

## امام او مقتداء ته کنځل کول او بې عزتي کول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې يو بالغ انسان خپل امام او مقتداء ته کنځل وکړه او د هغه بې عزتي يې وکړه. د هغه څه حکم دی؟ **بينوا توجروا**.

المستفتي: عبدالمجيد، ايبټ آباد ....۷۸ع/۱۱/۲۳

**الجواب:** د هر مسلمان تحقير حرام دی. **لحديث: وأن تحقر أخاك، أوكما قال**(۱) په ځانګړي ډول د امام بې عزتي کومه چې د جومات د ورانيدو لپاره ذريعه ده. د همدې سرې لپاره ضروري ده چې امام راضي کړي او د الله تعالی څخه معافي وغواړي (۲) **وهوالموفق**

## بلا وجه د امام توهين کوونکی فاسق او په هغه باندې توبه او له امام څخه معافي غوښتل ضروري ده

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې يو امام او د قرآن حافظ کوم چې ټول عمر بالکل سم تراويح او لمونځ کولو. يوه ورځ د ماسپښين د لمانځه وروسته يو منافق ډوله انسان خپل امام ته کنځل وکړه او د

---

۱) وفي المشكوة: عن أبي هريرة قال قال رسول الله ﷺ: المسلم أخوالمسلم، لايظلمه ولا يخذله ولايحقره، التقوى ههنا، ويشير إلى صدره ثلث مرار، بحسب امرئ من الشر أن يحقر أخاه المسلم، كل المسلم على المسلم حرام دمه وماله وعرضه.
(مشكوة المصابيح ۴۲۲، باب الشفقة والرحمة على الخلق، الفصل الأول)

۲) قال العلامة النووي رحمه الله تعالى: أن لها (التوبة) ثلثه أركان، الإقلاع والندم على فعل تلك المعصية والعزم على أن لايعود إليها أبداً، فإن كانت المعصية لحق آدمي فلها ركن رابع وهوالتحلل من صاحب ذلك الحق.... واتفقوا على أن التوبة من جميع المعاصي واجبة. (حاشية النووي على صحيح المسلم ۲: ۳۵۴، كتاب التوبة)

توهين كوونكو الفاظو له ويلو وروسته خبره تر لاس اچولو ورسيده. آيا اسلام اچې ملا او واعظ بې ستني دي، په عام محضر كې په دومره زړورتيا او پتو سترګو د دوی بې عزته كول پر خای عمل ګڼي؟ ګويا د همدې ملا شاته بې دينه، ګمراه او منافق خلک هميشه لمونځ هم کوي. د داسې خلكو د اسلام په دين كې څه حکم دی؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي مولوي عزيز الرحمن. مری ١٩٦٩ع ١٣/٩

**الجواب:** دا كس بغير د څه وجې د توهين كولو لامله فاسق دی. هغه ته توبه كول او له امام څخه معافي غوښتل ضروري ده، **قال رسول الله ﷺ: ملعون من ضار مؤمناً (رواه الترمذي)(١) وأيضاً: حرم ذم المؤمن وعرضه وماله(٢) وفي الهندية ٥: ٤٠٨، قال الزندويسي حق العالم على الجاهل وحق الأستاذ على التلميذ واحد على السواء(٣) وهوالموفق.**

## د ټولو طالبانو او علماوو تحقير موجب كفر دی

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې يو كس د كوم طالب العلم بې عزتي وكړي يا هغه ته د ذلت او حقارت په سترګه وګوري يا طالبي ته سپک وګوري. نو د دغه كس نكاح ماتيږي او كه نه؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي دكاندار، ګل بانډه، مردان. ٧٥ع ٢/٩

---

١) (جامع الترمذي ٢: ٤٥، أبواب البر والصلة، باب ماجاء في الخيانة والغش)

٢) عن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: المسلم أخوالمسلم لايخونه ولايكذبه ولايخذله، كل المسلم على المسلم حرام عرضه وماله ودمه. (جامع الترمذي ٢: ٤٢، أبواب البر والصلة، باب ماجاء في شفقة المسلم على المسلم)

٣) فتاوى هندية ٥: ٣٧٣، كتاب الكراهية، الباب الثلاثون في المتفرقات)

**الجواب:** د عالم او طالب بې ادبي حرامه ده، (۱)ليكن ارتداد نه دى، لهذا په دې سره په نكاح باندې كوم اثر نه پريوځي، البته هر ډول تحقير او بغض په حقيقت كې د دين تحقير او بغض دى او موجب كفر دى. **كما يشير إليه كلام القارى فى شرح الفقه الأكبر(۲) وهو الموفق.**

## امام ته د سپک او کافر په ویلو د توبه نه ویستونکي سره پریکون کول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې مقتدي بلا وجه په عام محضر كې د خپل جومات امام ته سپک او كافر وويل. له دې پرته كنځل يې هم وكړه، بيا سره له پوهېدو چې د مسلمان لپاره امام ته د سپک او كافر ويل كبيره ګناه ده. هغه په خپل دغه ناوړه او قبيح عمل شرمنده او پښيمانه نه شو او توبه كوونكى نه شو، د داسې مقتدي په باره كې د لاندې ذكر شويو سوالونو په قرآن او حديث سره ځواب راكړئ:

(۱) مسلمان ورور ته په عام محضر كې كافر ويل روا دي او كه نه د هغه لپاره څه حكم دى؟

(۲) كوم مقتدي چې د حقارت په ستر ګه امام ته ګوري د هغه تعظيم او تكريم نه كوي، د هغه څه حكم دى؟

(۳) آيا د همداسې كفريه لغوياتو استعمالوونكى مقتدي د همدې امام شاته بيا

---

۱) عن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: المسلم أخو المسلم لايخونه ولايكذبه ولايخذله، كل المسلم على المسلم حرام عرضه وماله ودمه.
(جامع الترمذي ۲: ۴۲، أبواب البر والصلة، باب ماجاء في شفقة المسلم على المسلم)

۲) وفي الخلاصة: من أبغض عالمًا من غير سبب ظاهر خيف عليه الكفر، قلت: الظاهر أنه يكفر لأنه إذا أبغض العالم من غير سبب دنيوي أو أخروي فيكون بغضه لعلم الشريعة، ولا شک في كفر من أنكره فضلًا عمن أبغضه.
(شرح الفقه الأكبر ۱۷۳، فصل في العلم والعلماء)

ښخه وخته لمونځ په جماعت او د جنازې لمونځ اداء کولی شي؟

(۴) د محلې اوسيدونکو ته د هغه سره په غم او خوشحالی کې پريکون کول روا دي او که نه؟ **بينوا توجروا**

**المستفتي:** محمد رفيق، مدرس موضع منګ، ډاکخانه هري پور ۱۹۶ع۳/۱۳

**الجواب:** د صدق په شرط مذکور سړی فاسق دی. د هغه لپاره توبه ويستل د امام او د محلې له اوسيدونکو څخه معافي غوښتل ضروري دي کنه نو له هغه سره ترک موالات ضروري دی. د هغه لمونځ او جنازه د همدې امام شاته صحيح ده، اګر که د امام زړه نه غواړي. قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: **سباب المسلم فسوق(۱) والدليل على ترك الموالات ما ذكر في القرآن(۲) والحديث(۳) من ترك الموالات بالثلثة الذين خلفوا عن التوبة، وكذا ترك التكلم من بعض الصحابة بابنه لأمر مروى بلا خفاء(۴) وهو الموفق.**

---

۱) صحيح البخاري ۲:۸۹۳، كتاب الأدب، باب ماينهى عن السباب واللعن)

۲) وقال الله تبارك وتعالى: وَعَلَى الثَّلٰثَةِ الَّذِيْنَ خُلِّفُوا، حَتّٰى إِذَا ضَاقَتْ عَلَيْهِمُ الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ وَضَاقَتْ عَلَيْهِمْ أَنْفُسُهُمْ وَظَنُّوا أَنْ لَّا مَلْجَأَ مِنَ اللّٰهِ إِلَّا إِلَيْهِ، ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ لِيَتُوبُوا، إِنَّ اللّٰهَ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ. (سورة التوبة، آيت: ۱۱۸، پاره ۱۱)

۳) عن عبدالرحمن بن عبدالله بن كعب بن مالك أن عبدالله بن كعب قال سمعت كعب بن مالك يحدث حديثه حين تخلف عن رسول الله ﷺ في غزوة تبوك....ونهى رسول الله ﷺ المسلمين عن كلامنا أيها الثلاثة من بين من تخلف عنه قال فاجتنبنا الناس.

وقال العلامة النووي رحمه الله تعالى: وفي هذا هجران أهل البدع والمعاصي.

(صحيح المسلم ۲:۳۶۱، كتاب التوبة، باب حديث توبة كعب بن مالك وصاحبيه)

۴) عن عبدالله بن عمرو رضي الله تعالى عنهما أن النبي ﷺ...(باتي حاشيه په بل مخ)

## رمضان کې د ماښام آذان په وروسته کولو سره امام ته کنځل کول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې يو کس د جومات امام ته په رمضان شريف کې د ماښام په آذان باندې کنځل وکړه چې اوس وخت شوی دی ولې آذان نه کوې؟ د شريعت له مخې د هغه لپاره کومه سزا مقرره شوې ده؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي ماسټر محمد اشرف. ضلع ايبټ آباد ۱۵ ستمبر ۱۹۷۹ع

**الجواب:** په دغه کس باندې ضروري ده چې د امام څخه معافي وغواړي. (۱) امام صاحب ته

---

(د حاشيې پاتې برخه) قال: لايمنعن رجل أهله أن يأتوا المساجد،فقال ابن لعبدالله بن عمر: فإنا نمنعهن،فقال عبدالله أحدثک عن رسول الله ﷺ وتقول هذا،قال فماكلّمه عبدالله حتى مات، رواه أحمد.
(مشکوة المصابيح: ۹۷،باب الجماعة وفضلها)

وعن عبدالله بن مغفل رضي الله تعالى عنه أنه كان جالساً إلى جنبه ابن أخ له فخذف فنهاه، وقال: إن رسول الله ﷺ نهى عنها وقال: إنهالاتصيد صيداً ولاتنكئ عدواً وإنها تكسر السن وتفقاء العين قال: فعاد ابن اخيه يخذف فقال أحدثک أن رسول الله ﷺ نهى عنها عدت ثم تخذف،لاأكلمك أبداً.
(سنن ابن ماجة ۳،باب تعظيم حديث رسول الله ﷺ)

۱) في حاشية صحيح البخاري: التوبة....وهي في الشرع: ترک الذنب لقبحه،والندم على مافرط،والعزم على ترک المعاودة،وتدارک ما أمكنه أن يتدارک من الأعمال بالإعادة وردالمظلمات لذويها أو تحصيل البراءة منهم.
حاشية صحيح البخاري ۲: ۹۳۳،كتاب الدعوات،باب التوبة)

کنځل کول له فسق (۱) پرته د بې انتظامۍ موجب هم دی. وهوالموفق

## د آذان په وخت کې له امام سره د مذاق کوونکي او په عام محضر کې د کنځل کوونکي حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو دې مسئلې په باره کې چې يو کس د آذان په وخت کې د جومات له امام سره توقې کړې دي او په عام محضر کې يې کنځل کړي دي. آيا په دغه کنځل کوونکي باندې شرعي حکم جاري کېدلی شي او که نه؟ بښځه د هغه د نکاح څخه جلا کېدلی شي او که نه؟ کله چې همدا کنځل صرف د ذاتي ضد له وجې وي؟ بينوا توجروا

المستفتي نور عالم، کېل، مظفر آباد ۱۹۷۵ع ۱۵/۹

**الجواب:** په هر امام پسې مذاق (توقې) کول او هغه ته کنځل کول حرام دي، قال الله تعالى: لَا يَسْخَرْ قَوْمٌ (الايه)(۲) وقال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: سباب المسلم فسوق(۳)، پس په دغه کس باندې ضروري ده چې توبه وکړي او له امام څخه معافي وغواړي(۴) کنه نو له هغه سره دي

---

۱) عن عبدالله بن مسعود رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: سباب المسلم فسوق. (صحيح البخاري ۲: ۱۹۳، كتاب الأدب، باب ماينهى عن السباب واللعن)

۲) سورة الحجرات، آيت: ۱۱)

۳) صحيح مسلم ۱: ۵۸، كتاب الإيمان، باب بيان قول النبي ﷺ: سباب المسلم فسوق وقتاله كفر)

۴) وقال العلامة علي قاري رحمه الله تعالى: وإن كانت عمافرط فيه من حقوق الله تعالى كصلاة وصيام وزكاة فتوبته أن يندم على تفريطه....إن كانت عمايتعلق بالعباد....فإن كانت المظالم في الأعراض كالقذف والغيبة فيجب في التوبة فيها ما قدمناه في حقوق الله تعالى أن يخبر أصحابها بماقال من ذلك ويتحلل منهم.....فإذا حللوه سقط عنهم ماوجب عليه لهم من الخ. (شرح الفقه الأكبر ۱۵۷، بحث التوبة

پریکون وشي (۱) وهوالموفق

**له شرعي وجې پرته د امام له جومات څخه ویستل او اهانت کول فسق اوحرام دي**

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې کوم کس امام پرته له کومې شرعي وجې د لمانځه کولو په وخت کې ونیسي او بیرون یې وباسي آیا په شریعت کې د داسې کس لپاره کومه سزا شته؟

واقعه داسې بیان شوې ده چې د مازدیگر په وخت کله چې امام جومات ته داخل شو نو څو کسانو په جومات کې د داخلیدو پر مهال پیش امام ونیولو. د محراب څخه یې راکش کړو او د باندې یې وویستلو. یو مقتدي چې نه امام و او نه عالم و په محراب کې یې ودرولو او له دې مخکې هم همدې کسانو امام په ناوړه الفاظو سره نومولی وو او د لمانځه په وخت کې څو ځلې له جماعت پرته یې لمونځ ادا کړی دی او د امام بې عزتي یې په عام مجلس کې کړې وه او د توهین الفاظ یې ورته ویلي دي، د همدې حالاتو په رڼا کې له تاسو محترمو غوښتنه دا ده چې د شریعت مطابق لیکل شوې فتوی راولیږئ؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي: مولوي نذير احمد، خطيب جامع مسجد سنګريړی، هزاره

**الجواب:** د یوه مسلمان په ځانګړي ډول د امام (پرته له شرعي وجې) اهانت کول فسق دی. (۲) د دوی لپاره ضروري ده چې

---

(۱) في المرقدة: قال الخطابي: رخص المسلم أن يغضب على أخيه ثلاث ليال لقلته ولا يجوز فوقها إلا إذاكان الهجران في حق من حقوق الله تعالى فيجوز فوق ذلك....فإن هجرة أهل الأهواء والبدع واجبة على مرّالأوقات مالم يظهرمنه التوبة والرجوع إلى الحق. (مرقاة المفاتيح ۹: ۲۶۲، باب ماينهى عنه من التهاجر والتقاطع واتباع العورات)

(۲) عن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: كل المسلم حرام ماله وعرضه ودمه، حسب امرئ من الشر أن يحقر أخاه المسلم، عن سعيدبن زيد رضي الله تعالى عنه عن النبي ﷺ قال: إن من أربى الربا الاستطالة في عرض المسلم بغير حق. (سنن أبي داؤد ۲: ۶۶۹، كتاب الأدب، باب في الغيبة)

امام راضي کړي که نه د محلې د نورو خلکو لپاره ضروري ده چې له دوی سره تعلق قطع کړي.(۱) وهوالموفق

## د امام بې عزتي کوونکي او د توبې نه کوونکي له جومات څخه منع کول ناروا دي

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې مسمی نواب خان ته د ځايي سيمې مولوي صاحب ووېل چې ته د تراويح کولو ته راځې څه وجه ده؟ هغه ووېل چې زما جامې ناپاکې دي. مولوي صاحب ورته ووېل چې جامې ومينځه جومات ته خامخا حاضر شه ځکه چې ته د جومات همسايه يې او آذان هم اورې. صرف په همدې خبره هغه غوسه شو او مولوي صاحب ته يې کنځل شروع کړه. تردې چې تر وژلو پورې يې هم کوشش وکړ مګر هلته څو کسان موجود وو هغوی منعه کړو. هغه په ځانګړې ډول د اسلام او د مذهب ډېر زيات توهين وکړ او ډېر سخت د ذلت الفاظ يې استعمال کړه. سره له دې چې هغه بيخي په هوش کې وو. له دې وروسته هغه څو ځله د خلکو پر وړاندې هم د امام بې عزتي وکړه. اوس له علماء کرامو څخه غوښتنه دا ده چې د همداسې کس متعلق شرعًا صحيح حکم وليکي ترڅو نور خلک عبرت واخلي؟

**نوټ:** که چيرته دغه کس له تعزير يا کفاره ورکولو څخه انکاري شي نو دا هم وليکۍ چې بيا څه ډول عمل د هغه خلاف وکړی شي په کوم سره چې هغه په سمه لار راشي، ستاسو به ډېره زياته مهرباني وي؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي: قاضي مشتاق احمد قريشي، راولپنډۍ ..۴/ شوال ۱۳۸۹ هـ.

**الجواب:** دا کس فاسق دی، قال النبي صلى الله عليه وسلم: **سباب المسلم فسوق**(۲) لهذا

---

۱) وقال الملاعلي قاري رحمه الله تعالى: فإن هجرة أهل الأهواء والبدع واجبة على مرّ الأوقات مالم يظهر منه التوبة والرجوع إلى الحق.
(مرقاة المفاتيح ۹: ۲۶۲، باب ماينهى عنه من التهاجر والتقاطع)

۲) صحيح المسلم ۱: ۵۸، کتاب الإيمان، باب قول النبي ﷺ: سباب المسلم فسوق)

په دغه کس باندي ضروري ده چي امام راضي کړي او د الله طرفته توبه وکړي، (۱) که چیرته مصلحت وي: نو د هغه سره دي ترک موالات وشي. (۲) ليکن د جومات او لمانځه څخه دي نه منع کيږي (۳) **وهوالموفق**

## د جومات امام بې عزتي او بې حرمتي کوونکي سره ترک موالات

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې يو کس د جومات د امام بې حرمتي کړې ده، د کوم په نتيجه کې چې د قرآن بې حرمتي شوې ده، قرآن مجيد هم تر پښو لاندې شوی دی، د هغه څه حکم دی؟ **بينواتوجروا**

المستفتي: محمد زبير هاشمي

**الجواب:** د امام دغه توهين کوونکی فاسق او فاجر دی، (۴) په مسلمانانو

---

۱) قال العلامة النووي رحمه الله تعالى: قال العلماء: التوبة واجبة من كل ذنب.... وإن كانت المعصية تتعلق بآدمي فشروطها أربعة، هذه الثلاثة وأن يبرأ من حق صاحبها.... وإن كانت حد قذف ونحوه مكنه منه أوطلب عفوه. (رياض الصالحين ۳۴، باب التوبة)

۲) وفي المرقدة: فإن هجرة أهل الأهواء والبدع واجبة على مر الأوقات مالم يظهر منه التوبة والرجوع إلى الحق.
(مرقاة المفاتيح ۹: ۲۶۲، باب ماينهى عنه من التهاجر والتقاطع)

۳) قال الله تعالى: وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن مَّنَعَ مَسَٰجِدَ ٱللَّهِ أَن يُذْكَرَ فِيهَا ٱسْمُهُۥ وَسَعَىٰ فِى خَرَابِهَآ.
(سورة البقرة: آيت ۱۱۴)

۴) عن أبي هريرة قال قال رسول الله ﷺ: المسلم، لايخونه ولايكذبه ولايخذله، كل المسلم على المسلم حرام عرضه وماله ودمه.
(جامع الترمذي ۲: ۴۲، أبواب البر والصلة، باب ماجاء في شفقة المسلم)

ضروري ده چې دغه کس د معافي په غوښتلو مجبور کړي او د تېنګار په وخت کې د هغه سره ترک موالات وکړي (۱) فقط

## عالم ته د کنځل کوونکي حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو د دې مسئلې په باره کې چې يو کس يو مولوي صاحب ته (کوم چې په خانداني ډول عالمان دي او ماشومانو ته د قرآن مجيد تعليم هم ورکوي) په يوه دنيوي معامله کې کنځل کړي دي. له داسې انسان (کوم چې مولوي صاحب ته په ناحقه بد ويلي) سره څه ډول چلند پکار دی؟ بينوا توجروا.

المستفتي: تاج محمد. کرهي

**الجواب:** په همدې کنځل کوونکي باندې ضروري ده چې توبه وکړي. له الله تعالى څخه معافي وغواړي او امام صاحب هم راضي کړي. (۲) قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: سباب المسلم فسوق وقتاله كفر (رواه مسلم) (۳) وهو الموفق.

---

۱) أن عبدالله بن كعب قال سمعت كعب بن مالك يحدث حديثه حين تخلف عن رسول الله ﷺ في غزوة تبوك.....ونهى رسول الله ﷺ المسلمين عن كلامنا أيها الثلاثة من بين من تخلف عنه ،قال فاجتنبنا الناس.

وقال العلامة النووي رحمه الله تعالى :وفي هذا هجران أهل البدع والمعاصي. (صحيح المسلم ۲ : ۳۶۱،كتاب التوبة ،باب حديث توبة كعب بن مالك وصاحبيه)

۲) قال العلامة النووي رحمه الله تعالى :أن لها (التوبة) ثلثة أركان :الإقلاع والندم على فعل تلك المعصية والعزم على أن لا يعود إليها أبداً،فإن كانت المعصية لحق آدمي فلها ركن رابع وهوالتحلل من صاحب ذلك الحق....واتفقوا على أن التوبة من جميع المعاصي واجبة .(حاشية النووي على صحيح المسلم ۲ : ۳۵۴،كتاب التوبة)

۳) صحيح المسلم ۱ : ۵۸،كتاب الإيمان ،باب بيان قول النبي ﷺ سباب المسلم فسوق)

## د عالم بې عزتي او ذليل كوونكي حكم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې يو عالم دين كوم چې د زيد استاذ دى، زيد د هغه توهين، بې عزتي او تذليل كړى دى. ايا زيد شرعاً مجرم دى؟ بينوا توجروا.

المستفتي: عبد العزيز مالكي، مانسهره ۱۴/ اګست ۱۰۸۹ع

**الجواب:** د صدق او ثبوت په شرط دا توهين كوونكى مجرم دى، په هغه باندې ضروري ده چې د الله تعالى څخه معافي وغواړي او د استاذ څخه هم معافي وغواړي او هغه راضي كړي(۱) لحديث: بحسب امرء من الشر أن يحقر أخاه المسلم، رواه مسلم بحواله مشكوة ۲: ۴۲۲،(۲) وهوالموفق.

## د عالم امام ګستاخي، بې حرمتي او كنځل كوونكي حكم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې يو كس پرته له كوم شرعي عذر د يو ديني عالم د جومات له امام سره جنجال وكړ، ناروا كنځل يې وكړه، په اخيره اندازه ګستاخي او بې حرمتي يې وكړه. له داسې كس سره د كلي خلكو ته څه ډول چلند كول پكار دى؟ بينوا توجروا.

المستفتي: عبد المالک خان. تحصيل وضلع مانسهره. ۱۱/۸/۹۰ع

**الجواب:** د صدق او ثبوت په شرط دا كس فاسق دى، (۳) په هغه باندې ضروري

---

۱) في هامش صحيح البخاري :التوبة.....وهي في الشرع ترک الذنب لقبحه والندم على مافرط منه والعزم على ترک المعاودة وتدارک ما أمكنه أن يتدارک من الأعمال بالإعادة وردالمظلمات لذويها أوتحصيل البراءة منهم.
(هامش صحيح البخاري ۲: ۹۳۳، كتاب الدعوات، باب التوبة)

۲) مشكوة المصابيح ۴۲۲، باب الشفقة والرحمة على الخلق)

۳) عن عبدالله بن مسعود رضي الله تعالىٰ عنه قال...... (پاتې حاشيه په بل مخ)

ده چې تائب شي او هغه امام راضي کړي. (۱) کنه نو د کلي خلک دي له هغه سره پريکون وکړي (۲) وهوالموفق

## د صحت امامت د وجوهاتو د موجوديدو باوجود د امام معزول کول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د جامع جومات يو امام او خطيب د لمانځه او روژې پابند او عبادت کوونکي دی. ليکن د جماعت خيال نه ساتي، يعنې سره له دې چې د جومات ګاونډی دی خو د جومات پر ځای زياتره وخت په خپل کور کې لمونځ ادا کوي. زياتره عوام په همدې وجه د هغه څخه خفه دي، سره له استطاعت په يوه دکان کې د پنځوسو روپيو ماهانه ملازم دی. حنفي المذهب دی. د هغه د امامت او خطابت په باره کې د شريعت څه حکم دی؟ **بينواتوجروا**

المستفتي: سيد عالم خان صاحب، راولپنډی

**الجواب:** په دغه کس کې د امامت د عدم صحت وجوهات موجود نه دي (۳) او

---

(د حاشيې پاتې برخه) قال رسول الله ﷺ: سباب المسلم فسوق.

(صحيح البخاري ۲: ۱۹۳، كتاب الأدب، باب ما ينهى عن السباب واللعن)

۱) قال العلامة النووي رحمه الله تعالى: قال العلماء: التوبة واجبة من كل ذنب.... وإن كانت المعصية تتعلق بآدمي فشروطها أربعة، هذه الثلاثة وأن يبرأ من حق صاحبها ...وإن كانت حد قذف ونحوه مكنه منه أوطلب عفوه. (رياض الصالحين ۳۴، باب التوبة)

۲) في المرقدة: فإن هجرة أهل الأهواء والبدع واجبة على مرّ الأوقات مالم يظهر منه التوبة والرجوع إلى الحق. (مرقاة المفاتيح ۹: ۲۶۲ ما ينهى عنه من التهاجر والتقاطع)

۳) وفي الهندية: ,,الأولى بالإمامة أعلمهم بأحكام الصلوة...هذا إذا علم من القراء قدر ماتقوم به سنة القراءة.....ولم يطعن في دينه.....ويجتنب الفواحش الظاهرة و إن كان غيره أورع منه. (فتاوى هندية ۱/۸۳، كتاب الصلوة، الباب الخامس في الإمامة)

بلا وجه په عزل او نصب کولو کې د قوم لپاره ډېر خطرات موجود دي. والسلام

## د امام له امامت څخه معزول کول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء، كرامو دې مسئلې په باره كې چې زمونږ په كلي كې څو كسانو د خپلې جومات د امام بې عزتي او توهين وكړو او بو بل امام يې په جومات كې مقرر كړى دى چې عمر يې ۴۰ كاله دى او واده يې نه دى كړى او دا هم معلومه نه ده چې د هغه څه عقيده ده؟ د كوم مذهب پيروي كوي؟ د داسې كس شاته لمونځ كول روا دي او كه نه؟ او يوې ډلې قرآني پريكړه وكړه چې محكنى امام دې امامت كوي. هغوى وعده او اقرار مات كړو. دويم امام يې مقرر كړو. د داسې كس لپاره څه حكم دى؟ **بينواتوجروا**

المستفتي مولوي نذير احمد. كوهاله. براسته كوه مرى ۱ صفر ۹۰هه

**الجواب:** چونكې د امامت كبرى (بادشاهى) څخه معزول كول تغلباً صحيح دي، كله چې په اهل حل او عقد سره وي؛ نو له امامت صغرى څخه په طريقه اولى صحيح شول. بېشكه تحقير (۱) او بې شرعي وجې عزل ناروا دى په كوم باندې چې د مواخذې خطر موجود دى، **صرّح به في كتب علم الكلام**(۲) **والفقه كالدر المختار حيث قال: ويعزل به إلا لفتنة وتصح سلطنة متغلب للضرورة.**(۳) **وهو الموفق**

---

۱) عن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: المسلم أخوالمسلم، لايخونه ولايكذبه ولايخذله، كل المسلم على المسلم حرام عرضه وماله ودمه.

(جامع الترمذي ۲: ۴۲، أبواب البر والصلة، باب ماجاء في شفقة المسلم على المسلم)

۲) وفي شرح العقائد: وفي رواية النوادر عن العلماء الثلثة أنه لايجوزقضاء الفاسق، وقال بعض المشائخ: إذا قلدالفاسق ابتداءً يصح ولو قلد وهو عدل ينعزل بالفسق لأن المقلد اعتمد على عدالته فلم يرض بقضائه بدونها. (شرح العقائد ۱۱۵، بحث الإمام)

۳) ردالمحتار ۱: ۴۰۵، كتاب الصلوة، باب الإمامة، مطلب شروط الإمامة الكبرى)

## د ضرر رسوونکي کس له جومات څخه منع کول او امام ته د دين د اهانت له وجې د کنځل کوونکي حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو د دې مسئلې په باره کې چې دوه کسان په يوه محله کې اوسيږي کومو چې د جومات خطيب (عالم دين) په خلاف د زبردست بهتان تراشي په کولو سره د هغه توهين کړی دی. يو خل د هغه په کور ورغلل او د هغه اهل ته يې فحش کنځل وکړل او تر قتل پورې خبره ورسيده او يو خل يې نائب خطيب ته بلا وجه په جومات کې کنځل وکړه. هغه يې د ډېرې څخه ونيولو. تردې چې د جومات څخه يې په بې عزتۍ سره وويستلو. دريم خل کله چې دويم خطيب د حکومت لخوا راغی نو د هغه په خلاف يې هم بهتان تراشي او غيبت شروع کړو سره له دې چې په خپله د هغه کس حالت دا دی چې وعده خلافي کول. خيانت کول او دروغ ويل د هغه عام عادت دی چې صلح وکړي نو سمدستي يې ماته کړي

اوس د جومات پنځه نوي ۹۵ فيصده لمونځ کوونکي کړ چې په دغه امام پسې په اطمينان سره لمونځ کوي. دوی ته له امام څخه هيڅ شکايت نشته. دوی ټولو ته د همدې څو کسانو څخه سخت تشويش پيدا شوی دی. لهذا له همدې ډول خلکو سره څه ډول چلند پکار دی او دا خلک په کوم قسم حکم کې داخل دي؟ بينوا توجروا.

المستفتي سرپرست کميټي مسجد اسلام آباد ۱۴۰۰هـ ۷ ۲۶

**الجواب:** د ضرر رسوونکي کس د جومات څخه منعه کول روا دي، يدل عليه ما في ردالمحتار ۱: ۶۱۶، والحق بالحديث كل من آذى الناس بلسانه وبه أفتى ابن عمر(۱) فافهم.

او که چيرته دغه کنځل د دين د اهانت له وجې وي نو بې شکه دا کس کافر دی، لما في الطريقة المحمدية، قال في الأشباه: الإستهزاء بالعلم والعلماء كفر(۲) وعن منية

---

۱) ردالمحتار ۱: ۴۸۹، باب ما يفسد الصلوة وما يكره فيها، مطلب في الغرس في المسجد)

۲) وفي الأشباه والنظائر: الإستهزاء بالعلم والعلماء كفر.
(الأشباه والنظائر ۱۹۱، كتاب السير)

المفتى تخفيف العلم والعلماء كفر، وعن المحيط : ان شتم عالماً فقد كفر فتطلق امرأته(١)
الخ، بيا هم د كفر په فتوى وركولو كې بيړه كول نه ده پكار(٢).
او كه چيرته دغه كنځل وغيره د دنيوي غرض يا معاملې له وجې وي: نو داسې
كس فاسق او فاجر دى. لحديث: سباب المسلم فسوق(٣) چې هر مسلمان ته كنځل
كول فسق دى. وهوالموفق

## د عاق امام جوړول په جماعت سره له لمانځه د منع كولو او د هغه د نه كافر كېدلو مسئله

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې يو كس د
جومات امام عاق كړى دى، كله چې هغه له امام سره عاق شوي كس له دوولسو
كلونو زيات په جماعت سره لمونځ كړى دى. د جومات امام له قاري پرته مكمل

---

١) وفي المحيط البرهاني :ومن أبغض عالمًا أو فقيهًا من غير سبب ظاهر خيف عليه الكفر إذا قال :"فيدلنا ذكردن از دانشمندى كردن "فهذا كفر ،إمرأة قالت "لعنت برشوى دايسمند ياد " (على الزوج العالم اللعنة) تكفر ،لأنها استخفّت بالشريعة ،وفي فتاوى الأصل :رجل قال لعالم، ذكر الحمار في است علمك ،إن أراد به علم الدين يكفر .(المحيط البرهاني ٥ :٥٦٩، كتاب السير ،فصل في مسائل المرتدين وأحكامهم)

وفي الهندية :ويخاف عليه الكفر إذا شتم عالمًا أوفقيهًا من غير سبب .
(فتاوى هندية ٢ :٢٧٠ ،الباب التاسع في أحكام المرتدين)

٢) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ (قوله لايفتى بكفر مسلم أمكن حمل كلامه على محمل حسن ).....لاينبغي للعالم أن يبادر بتكفير أهل الإسلام .
(ردالمحتار ٣ :٣١٦ ،باب المرتد ،مطلب في حكم من شتم دين مسلم)

٣) عن عبدالله بن مسعود رضي الله تعالىٰ عنه قال قال رسول الله ﷺ :سباب المسلم فسوق .(صحيح البخاري ٢ :١٩٣ ، كتاب الأدب ،باب ماينهى عن السباب واللعن)

عالم باعمله دی او عاق شوی کس نهایت د ناوړه (بدو) اخلاقو څښتن دی. له عاق کېدو وروسته دغه کس له بل امام سره په جماعت د لمانځه کول شروع کړه او تقریبا له څلور کاله پنځه کاله لمانځه کولو وروسته د دریم امام شاته لمونځ کوي او د دویم امام په باره کې غلط پروپاګند وایي او د هغه په خلاف نفرت خپروي او امام ته کنځل کول د هغه دنده (کار) ده. واضحه دې وي چې لومړی (اول) امام وفات شوی دی. د مهرباني له لارې وضاحت وکړئ چې

(۱) د امام په عاق کېدو سره څه اثر پرېووځي؟

(۲) له همدغه کس سره په جماعت سره په لمانځه کې شرکت (ګډون) کول صحیح دي او که نه؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي: سید زمرد شاه ولد سید خیل. موضع اکبر پوره. تحصیل نوشهره

**الجواب:** عاق نه کافر کېږي بلکې فاسق او فاجر ګرځي. (۱) د هغه امام جوړول مکروه تحریمي دي، (۲) لیکن په جماعت سره د لمانځه له کولو د هغه منعه کول حرام دي (۳) **وهوالموفق**

---

۱) في شرح العقائد: والكبيرة لاتخرج العبد المؤمن من الإيمان ولاتدخله في الكفر.... إن مرتكب الكبيرة فاسق. (شرح العقائد ۸۲)

وعن أنس رضي الله تعالى عنه قال سئل النبي ﷺ عن الكبائر؟ فقال الإشراك بالله وعقوق الوالدين.

(صحيح البخاري ۱: ۳۶۲، كتاب الشهادات، باب ماقيل في شهادة الزور)

۲) وفي الهندية: وتجوز إمامة الأعرابي والأعمى والعبد وولد الزنا والفاسق، كذا في الخلاصة إلا أنها تكره، هكذا في المتون.

(فتاوى هندية ۱: ۸۵، الباب الخامس في الإمامة، الفصل الثالث)

۳) قال الله تبارک وتعالى: وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن مَّنَعَ مَسَاجِدَ اللَّهِ أَن يُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُ.

(سورة البقرة آيت: ۱۱۴)

## آيا امام مقتدي عاق کولی شي

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې امام مقتدي عاق کولی شي؟ کله چې يې امام خفه کړی وي؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي قاري رحمن الدين کربوغه شريف ۳ محرم ۱۴۰۱ هـ

**الجواب:** امام نه ضرر رسونکی هم عاق دی، مګر د والدينو او استاذ له عاق کېدو څخه کم دی **وهوالموفق**

الله الله

بسم الله الرحمن الرحيم

قال رسول الله صلى الله عليه وسلم

قراءة القرآن فی الصلوة افضل من قراءة القرآن فی غیر الصلوة وقراءة القرآن فی غیر الصلوة افضل من التسبیح والتکبیر.

(رواه البیهقی)

# باب ختم القرآن وتعليمه وآدابه والأجرة عليه

## د هر ديني او دنيوي مقصد لپاره د قرآن ختم كول روا دي

**سوال:** څه فرمايلي دي علما، كرامو ددي مسئلي په باره كي چي د هر ديني او دنيوي مقصد لپاره د قرآن ختم كول روا دي كه ناروا؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي نامعلوم

**الجواب:** د قرآن ختم كول د هر ديني او دنيوي مقصد لپاره روا دي. (۱) البته كله چي د ايصال ثواب لپاره وي نو په دي كي اختلاف دی. علامه شامي حرمت راجح بللی دی (۲) او په هنديه او نورو كي جواز ته اصح او مفتى به ويل شوي دي. (۳) پس احوط اجتناب دی او په مجوزينو باندي سخت انكار كول منكر

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: اختلف في الاستشفاء بالقرآن بأن يقرأ على المريض أو الملدوغ الفاتحة... قال رضي الله تعالى عنه وعلى الجواز عمل الناس اليوم. (رد المحتار ۵:۲۵۷، كتاب الحظر والإباحة، قبيل فصل في النظر والمس)

وقال العلامة الشيخ الأنور: نعم! لوكان الختم لمطالب دنيوية طاب له الأجرة ... قوله (أحق ما أخذ تم عليه اجراً كتاب الله) هو عندنا محمول على الرقية ونحوها. (فيض الباري على صحيح البخاري ۲۷۷،۲۷۶:۳، كتاب الإجارات، باب مايعطى في الرقية)

۲) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: وقال العيني في شرح الهداية: ويمنع القاري للدنيا، والآخذ والمعطي آثمان.

(ردالمحتار ۵:۳۹، باب الإجارة الفاسدة، مطلب في عدم جواز الإستيجار على التلاوة الخ)

۳) وفي الهندية: واختلفوا في الاستيجار على قرأة القرآن على القبر مدة معلومة، قال بعضهم لايجوز، وقال بعضهم يجوز وهوالمختار كذا في السراج الوهاج.

(فتاوى هندية ۴:۴۴۹، كتاب الإجارة، الاستيجار على الطاعات)

امر دی **وهوالموفق**

## په اجتماعي ډول د قرآن پاک ويل روا دي، خو بهتر نه دي

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې په اجتماعي طريقه د قرآن ختم کول څنګه دي؟ کله چې ټې هر يو جلا جلا وايي. په دې طريقه د قرآن استماع فوت کيږي کوم چې واجبه او لازمه ده. د شريعت له مخې دا جهري ختم کول روا دي او که نه؟ **بينوا توجروا**

المستفتي: متعلم حقانيه، جنوری ۱۹۷۵ع

**الجواب:** په اجتماعي ډول بالجهر د قرآت ختم کول روا دي. البته بهتر نه دي، أما الجواز فرواه الطحطاوی ۱۹۰، حيث قال: وفي الدرة المنيفة عن القنية: يكره للقوم أن يقرؤوا القرآن جملة لتضمنها ترك الاستماع والإنصات وقيل لا بأس به(١) انتهى، والقول الثاني يؤيده ما رواه ابن أبي داؤد عن علي ابن أبي طالب رضي الله عنه أنه سمع ضجة ناس في المسجد يقرؤون القرآن فقال: طوبى هؤلاء وكانوا أحب الناس الى رسول الله صلى الله عليه وسلم (تفسير مظهري ۳: ۵۰۹)(٢) والمامور بالإستماع هوالمقتدى كما روى عن عبدالله بن مغفل رضي الله عنه كما هو

---

١) (الطحطاوي على مراقي الفلاح ۳۱۸، قبيل باب ما يفسد الصلاة)

٢) (التفسير المظهري ۳: ۴۵۱، سورة الأعراف، آيت ۲۰۴)

وفي الهندية: ولا بأس باجتماعهم على قراءة الإخلاص جهراً عند ختم القرآن ولو قرأ واحد واستمع الباقون فهو أولى، كذا في القنية.

(فتاوى هندية ۵: ۳۱۷، كتاب الكراهية، الباب الرابع في الصلاة والتسبيح وقراءة القرآن)

مصرح به في تلك الصفحة(١)وأما عدم الأفضلية فللخروج عن الاختلاف، وهوالموفق

## د ډمانو په كور كې د قرآن ختم كول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې د ډمانو په كور كې د قرآن ختم كول څنګه دي، كله چې د هغوى تولو ګنه د همدې ډمتوب څخه وي؟ بينوا توجروا!

المستفتي: عباد الله، شيرازى، مردان

**الجواب:** د همدې ډمانو په كور كې د قرآن ختم كول ممنوع نه دي، البته په دې كې د همدې خلكو د بې دينۍ شاباسى او همت افزائي كيږي، له همدې وجې دا ختم كوونكي ساقط المروت دي (٢) **وهوالموفق**

## دقرآن ختم او د نفلونو بل ځانه بنلو سره لوستونكي ته ثواب وركول كيږي او كه نه؟

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې كه څيرته

---

١) في التفسير المظهري: قال عبدالله بن مغفل إنمانزلت هذه الاية، وَاِذَا قُرِئَ الْقُرانُ فَاسْتَمِعُوا لَهٗ وَاَنْصِتُوا، في القراءة خلف الإمام.
(التفسير المظهرى ٣:٤٥١، سورة الأعراف، آيت ٢٠٤)

٢) في الهندية: رجل أراد أن يقراء القرآن فينبغى أن يكون على أحسن أحواله، يلبس صالح ثيابه ويتعمم ويستقبل القبلة، لأن تعظيم القرآن والفقه واجب كذا في فتاوى قاضي خان...إذا قرأ القرآن خارج الحمام في موضع ليس فيه غسالة الناس نحو مجلس صاحب الحمام والثيابي فقداختلف علماء نا فيه، قال أبوحنيفة رحمه الله تعالىٰ: لايكره ذلك وقال محمد رحمه الله تعالىٰ: يكره.
(فتاوى هندية ٥:٣١٦، كتاب الكراهية، الباب الرابع في الصلاة والتسبيح وقراءة القرآن)
وفي الفتاوى الخانية: والمجلس الذي اجتمعوا فيه للغناء والرقص لايقرأ القرآن كما لايقرأ في البيع والكنائس لأنه مجمع الشيطان.
(فتاوى خانية على هامش الهندية ٦:٣٣٨، كتاب ألفاظ تكون اسلامًا أو كفرًا، الفصل التاسع)

مړي ته د ايصال ثواب لپاره څوک د قرآن ختم يا نفلونه وکړي نو آيا مړي ته بې ثواب رسيږي او که نه؟ او چا چې کړي دي هغه ته هم ثواب ورکول کيږي او که نه؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: خادم ثمين، پشاور صدر ... ۳، رمضان ۱۴۰۳ هـ

**الجواب:** د قرآن تلاوت د دارينو د فلاح سبب دی، (۱) د ثواب لپاره يې لوستل صحيح او ثواب دی (۲)، او فقهاوو ليکلي دي چې همدغه د ثواب ايصال کوونکي ته هم مکمل ثواب ورکول کيږي ځکه چې ايصال ثواب مرسته (تعاون) او د خير کار دی (۳) **وهوالموفق**

---

۱) عن أبي ذر رضي الله تعالى عنه قال قلت يا رسول الله ! أوصني ، قال : عليک بتقوى الله فإنه رأس الأمر كله ، قلت يا رسول الله ! زدني ، قال : عليک بتلاوة القرآن فإنه نور لک في الأرض وذخر لک في السماء.

(صحيح ابن حبان بحواله فضائل أعمال ۲۳۶،فضائل القرآن)

۲) قال العلامة الشامي رحمه الله تعالى :واختلفوا في وصول قرأة القرآن إذا قال القاري اللهم أوصل ثواب ما قرأته إلى فلان ، قال بعضهم لايصل..وقال بعضهم يصل إليه وهو المختار .

(فتاوى تنفيح الحامدية ۲:۳۵۷، مسائل وفوائد شتّى من الحظر والإباحة)

۳) عن عبد الله بن عمرو رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ :إذا تصدق بصدقة تطوعاً فيجعلها عن أبويه ، فيكون لها أجرها ولا ينقص من أجره شيئا.

(مجمع الزوائد ۳:۱۳۸، باب الصدقة على الميت)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى : وقدمنا في الزكاة عن التاتارخانية عن المحيط الأفضل لمن يتصدق نفلاً أن ينوي لجميع المؤمنين والمؤمنات لأنها تصل إليهم ولاينقص من أجره شيئ.

(رد المحتار ۲:۲۵۶، كتاب الحج ، باب الحج عن الغير)

## د قرآن په ختم باندې د اجرت (مزدورۍ) په اخيستو سره مړي ته ثواب رسيدلی شي او که نه؟

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د ناروغ لپاره دقرآن په ختم باندې اجرت اخيستل څنګه دي؟ اود مړي لپاره دقرآن په ختم باندې په خوراک او څښاک سره اجرت روا دی او که ناروا؟ که چيرته په دغه ختم باندې دوډۍ يا روپۍ واخلي نو په دې سره مړي ته ثواب رسيږي او که نه؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي عبد الرحمن. چارسده، پشاور

**الجواب:** د قرآن تلاوت چې کله د (استشفاء) لپاره وي نو په هغه باندې اجرت (مزدوري) اخيستل روا دي. (۱) **لحديث رواه البخاري وغيره: ان أحق ما أخذتم عليه أجراً كتاب الله تعالى (۲) أوكما قال، وقال العيني في شرح البخاري: ونقله (أي جواز أخذ الأجرة) القرطبي عن أبي حنيفة في الرقية** (۳) همدارنګه د نورو دنيوي حاجتونو لپاره په تلاوت باندې اجرت اخيستل روا شوي دي، څکه چې دلته هم ايصال ثواب مقصود نه دی، **وصرّح به الشاه عبد العزيز في الفتاوى الغزنوية** (۴) باتې شوه د ايصال

---

۱) قال الشيخ الأنور: نعم! لو كان لمطالب دنيوية طاب له الأجرة...(قوله أحق ما أخذتم عليه اجراً كتاب الله)...هوعندنامحمول على الرقية ونحوها.
(فيض الباري على صحيح البخاري ۳:۲۷۶. ۲۷۷، كتاب الإجارات، باب ما يعطى في الرقية)

۲) (صحيح البخاري ۲:۸۵۴، باب الشرط في الرقية بقطيع من الغنم)

۳) (عمدة القاري ۱۲:۹۵، كتاب الإجارات، باب ما يعطى في الرقية)

۴) قال العلامة الشاه عبد العزيز رحمه الله تعالى: پنځم صورت دا چې يو کس قرآن شريف ووايي او د هغه نيت د عبادت نه وي بلکې صرف په دې خيال يې ووايي چې قرآن شريف ويل مباح دی او په دې باندې اجرت واخلي، مثلا دم يې کړي يا يې ليکلو سره تعويذ ورکړي، يا د قرآن شريف بعضې سورتونه په دې غرض ووايي چې يو خاص دنيوي مطلب حاصل شي ...... دا هم بلا کراهت جائز دی او هم دا په دې حديث ...(د حاشيې پاتې برخه په بل مخ)

ثواب لياره په تلاوت باندې اجرت اخيستل نو دا مختلف فيه دي، ځينو فقهاؤ ويلي دي چې دا ناروا دي، قال العيني في شرح الهداية: ويمنع للدنيا والأخذ والمعطي آثمان، كذا في ردالمحتار ۵: ۴۷ ( ) او د ځينو فقهاؤ په نزد روا دي، قالوا في الهندية ۴: ۴۶۱، واختلفوا في الاستيجار على قراءة القرآن على القبر مدة معلومة، قال بعضهم لايجوز وقال بعضهم يجوز وهو المختار كذا في سراج الوهاج( ) انتهى، وفي البحر: أن المفتى به جواز الأخذ على القراءة( ) ليكن احتياط په نه اخيستو كې دى. ځكه چې كله تلاوت كوونكو ته ثواب نه وركول كيږي؛ نو مړو ته به څه شى ايصال كړي. (صرح به تقي الدين فليراجع الى ردالمحتار ۵: ۴۸)( ).

واضحه دې وي په معروف (مشهور) اجرت او معروف اكرام كې فرق ضروري دى، ځكه چې اكراماً او اعزازاً (شكرانه) وركول روا دي، لحديث رواه الترمذي عن أنس: أن رجلاً من كلاب سأل رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عن عسب الفحل؟ فنهاه، فقال يارسول الله! انا نطرق فنكرم فرخص له في الكرامة (مشكوة شريف باب المنهي عنها

---

(د حاشيې پاتې برخه)..... سره مراد دى. إن أحق ما أخذتم عليه أجراً كتاب الله. (فتاوى عزيزيه ۴۹۱، عبادات اوراعمال كواجرت پردينے كا حكم)

۱) (رد المحتار ۵:۳۹، باب الإجارة الفاسدة، مطلب تحرير مهم في عدم جواز الاستيجار على التلاوة)

۲) (فتاوى هندية ۴:۴۴۹، كتاب الإجارة، الاستيجار على الطاعات)

۳) (البحر الرائق ۵:۲۲۸، باب الوقف)

۴) قال العلامة ابن عابدين: ونقل العلامة الخلوتي في حاشية المنتهي الحنبلي عن شيخ الإسلام تقي الدين ما نصه: ولايصح الإستيجار على القرأة واهدائها إلى الميت ...إن القارئ إذا قرأ لأجل المال فلا ثواب له فأي شيئ يهديه إلى الميت. (رد المحتار ۵:۳۹، باب الإجارة الفاسدة، مطلب تحرير مهم في عدم جواز الإستيجار على التلاوة)

من البيوع)[۱] زمونږ په وطن کې زياتره اکرام دی او فيس (عوض) نه دی، ځکه چې د نه ورکولو په صورت کې صرف شکايت کېدلی شي، استحقاق او دعوه نه کيږي **وهوالموفق**

## د قرآن په ختم باندې اجرت او مېلمانو ويشلو لپاره چنده کول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې (۱) نن سبا په رمضان کې د قرآن مجيد د ختم په اوريدو باندې لمونځ کوونکي په خپله خوښه چنده کوي او د حافظانو خدمت کوي. طرفين دېته معاوضه نه وايي او نه د حافظانو صاحبانو لخوا معلومه شوې ده. البته حافظانو صاحبانو ته دا معلومه ده چې د توفيق په اندازه زمونږ خدمت خامخا کيدلی شي او که چيرته يې خدمت ونه کړي؛ نو په ظاهره نه ناراضه کيږي، مګر د دوی په دې سخته رويه باندې هغوی ته سخت بوج وي، وجه دا ده که چيرته يو خل په کوم جومات کې څه خدمت ونه کړي نو په راتلونکي کال هلته قرآن مجيد نه اوروي، يو شمير حافظان د کمو روپيو ځايونه پريږدي داسې جوماتونه لټوي چيرته چې زياتې روپۍ ورکول کيږي، زياتره حافظان صاحبان غريبان هم وي، آيا دا خدمت روا دی او که ناروا؟ آيا د همداسې حافظانو شاته لمونځ کول روا دي او که مکروه؟ جواب د حنفي فقهې په مستندو حوالو سره مطلوب دی؟

(۲) که چيرته د همداسې حافظانو شاته لمونځ کول مکروه دي نو آيا د قرآن د ختم پر ځای د کوچنيو (وړو) سورتونو سره تراويح کول بهتر دي او که د هغوی پسې ختم کول بهتر دي؟

(۳) که چيرته دا خدمت ناروا وي نو د امامت او د قرآن د تدريس تنخوا اخيستل روا دي او که ناروا؟ آيا دا درې واړه يو شان دي او که په شرعي حکم کې د دوی نوعيت جلا جلا دی؟

(۴) همدارنګه د قرآن مجيد ختم يا په جومات کې په تروايح کې لمونځ کوونکي

---

۱) (سنن ترمذي ۱: ۱۵۳، باب ماجاء في کراهية عسب الفحل)

چنده کوي د تبرک او ثواب په نسبت شیریني تقسیموي او هیڅ کال یې نه قضاء کوي. په ژبه دا وایي چې موږ دا ضروري نه ګڼو لیکن که چیرته په کوم کال قضاء شي نو خلک ناراضه کیږي او بد وایي، نو په تراویح کې د ختم قرآن مجید په موقع هر کال چنده کول د تبرک او ثواب په نیت یې تقسیمول او نه کول یې بد ګڼل شرعًا روا دي او که بدعت دی؟ جواب د قرآن او حدیث په رڼا کې د حنفي فقهي د مستندو کتابونو په حوالو سره مطلوب دی؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي محمد انیس فاروقي، اسلام آباد. ۱۸/ شوال ۸۹ع

**الجواب:** واضحه دې وي چې حافظانو ته کومې روپۍ ورکول کیږي هغه اکرام او اعزاز دی. لهذا د هغو په اخیستو او ورکولو کې هیڅ خبره نشته، **یدل علیه ما رواه الترمذی عن أنس رضی الله عنه أن رجلًا من کلاب سأل رسول الله صلی الله علیه وسلم عن عسب الفحل؟ فنهاه، فقال یارسول الله! انا نطرق الفحل فنکرم، فرخص له في الکرامة، بحواله مشکوة:۲۴۸**)[1]( او د نه ورکولو یا د کومو په ورکولو کې طبعي رنځ خامخا وي او دا بخش یو طبعي امر دی حتی که چیرته له یوه دوست او میزبان څخه بې التفاتي محسوس شي نو په راتلونکي کې له هغه سره راشه درشه ختمیږي، حالانکه د دوست او میزبان لخوا چې څه ورکړل شوي هغه اعزاز دی اجرت نه دی همدارنګه واضحه دې وي چې حافظان په رمضان کې کومې روپۍ اخلي که چیرته دا ومنل شي چې دا اجرت دی بیا یې هم د هغه لپاره په اخیستو کې کومه خبره نشته. ځکه دا روپۍ د قراءة قرآن اجرت نه دی، که چیرته دا حافظان له تراویح د باندې د قرآن ختم وکړي نو دوی د همدې روپیو مستحق نه شمارل کیږي او دا روپۍ صرف د امامت اجرت هم نه دي، ځکه که چیرته په تراویح کې امام جوړ شي او په هغو کې ټول قرآن ولولي نو هغوی ته روپۍ نه ورکول کیږي، بلکې دا روپۍ په اصل حقیقت کې د یوه ځانګړي امامت عوض دی (۲)

---

۱) (مشکوة المصابیح ۲۴۸، باب المنهي عنها من البیوع)

۲) في المنهاج: وأما ما یعطی الحفاظ في رمضان عند.. (د حاشیې پاتې برخه په بل مخ)

نهذادا په حقیقت کې په امامت باندې اجرت دی کوم چې د مفتی به قول په بنیاد اخیستل روا دي: صرح به فی الهداية()والبحر()والدر المختار()والهندية()وغيرها فی باب الاجارة، پس د حافظانو امامت کول او د هغو شاته اقتداء کول روا دي (۲)، دا د ځینو محتاطو علماء کرامو رأیه ده.

---

(د حاشيي باتي برخه).... ختم القرآن فالحق أنه جائز لأنها هدية معروفة ليست بأجرة، ويشهد له حديث الترمذي عن أنس أن رجلًا من كلاب سأل النبي ﷺ عن عسب الفحل؟ فنهاه، فقال يا رسول الله! انا نطرق الفحل فنكرم فرخص لي في الكرامة، والاعتبارلنية الدافع دون الآخذ، فافهم، ولو سلم انه أجرة فلا حرج فيه أيضا لأنها ليست عوض التلاوة البحتة ولا الإمامة البحتة بل هي عوض الإمامة المسنونة المخصوصة ولاضير في أخذ الأجرة على الإمامة المقيدة بمكان أوزمان أوقراء ة سورة أوسور هذا.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ۲:۹۰ باب كراهية الأجر على الأذان)

۱) قال العلامة المرغيناني رحمه الله تعالیٰ: ولا الاستيجار على الأذان والحج وكذا الإمامة وتعليم القرآن والفقه...وبعض مشائخنا استحسنوا الإستيجار على تعليم القرآن اليوم...وعليه الفتوى. (الهداية ۳:۳۰۳، باب الاجارة الفاسده)

۲) وفي البحر: وفي زماننا يجوز للإمام والمؤذن والمعلم أخذ الاجرة ومثله في الذخيرة. (البحر الرائق ۸:۲۰، باب الإجارة الفاسدة)

۳) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالیٰ: ويفتى اليوم بصحتها لتعليم القرآن والفقه والإمامة والأذان. (الدر المختار ۵:۳۸، باب الإجارة الفاسدة)

۴) وفي الهندية: ومشائخ بلخ جوّزوا الاستيجار على تعليم القرآن...وكذا جواز الاستيجار على تعليم الفقه ونحوه، والمختار للفتوى في زماننا قول هؤلاء كذا في العتابية. (فتاوى هندية ۴:۴۴۸، كتاب الإجارة، الباب السادس)

(۳) د تیولو حکم یو شانته دی. الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۵: ۴۶ (  ).

(۴) که چیرته دا چنده باقاعده وي یعني د زړه په خوشحالی سره وي. له فخر او ریاکاری څخه خالي وي او مقصد صرف خوشحالي وي نو په دې کې خبره نشته (۲) وهوالموفق.

## فاتح د ختم قرآن په موقع اجرت. رسم چراغان او په جومات کې د خوراک څښاک مسئله

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې (۱) په تراویح کې کله حافظ صاحب قرآن آوروي نو هغه ته چې کومې روپۍ ورکول کیږي دا روا دي او که ناروا؟

(۲) که چیرته فاتح دا فیصله وکړي چې زه څلور سوه روپۍ غواړم. دا روا دي او که ناروا؟ (۳) د ختم قرآن په موقع د چراغانو او وغیره لګول څه حکم لري؟

(۴) په همدې موقع د میټایانو او وغیره په جومات کې خوړل روا دي که حرام؟

**بینواتوجروا.**

المستفتي: دلبرشاد، سواتی، متعلم اکوړه خټک... ۱۷/ رمضان ۱۴۰۳هـ

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ :الأصل أن كل طاعة يختص بها المسلم لايجوزالإستئجار عليها عندنا...وبعض مشائخنا رحمهم الله تعالىٰ استحسنوا الاستئجار على تعليم القرآن اليوم...وزاد في مختصر الوقاية ومتن الإصلاح تعليم الفقه،وزاد في متن المجمع الإمامة...وزاد بعضهم الأذان والإقامة والوعظ...وقد اتفقت كلمتهم جميعا على أن التصريح بأصل المذهب من عدم الجواز،ثم استثنوا بعده ما علمته.
(ردالمحتار ۵:۳۸، باب الإجارة الفاسدة،مطلب تحرير مهم في عدم جواز الاستيجار على التلاوة)

۲) وفي المشكوة :عن أبي حرة الرقاشي عن عمه رضي الله تعالىٰ عنه قال قال رسول الله ﷺ : الالا تظلموا،ألا لايحل مال امرئٍ إلا بطيب نفس منه.
(مشكوة المصابيح ۲۵۵، باب الغصب والعارية)

**الجواب:** ومنه الصدق والصواب : په تراويح کې د قرآن اوروونکي امام ته چې کومې روپۍ ورکول کيږي د هغو ورکول او اخيستل روا دي. زموږ د ښارونو (کليو) په عرف کې دا اکراماً ورکول کيږي نه د اجرت په ډول. (۱) **وهكذا ما يعطى الفاتح وامام الحى.** همدارنګه د قرآن اوروونکي امام ته د اجرت په ډول ورکول او اخيستل روا دي. ځکه چې اولاً د مفتى به قول په بنا، په مجرد تلاوت باندې اجرت اخيستل روا دي، **كما في وقف البحر**(۲) **وغيره**،(۳) او ثانياً دا اجرت په امامت مسنونه باندې دى نه په محض امامت باندې او نه په محض تلاوت باندې. چونکه فاتح د معلم د يوه شاخ کردار اداء کوي لهذا هغه ته يې ورکول هم قابل اعتراض نه دي. او چراغان محض فضول خرچي ده برابره ده که د ختم په محفل کې وي او که په نورو اجتماعاتو کې وي (۴) او په جومات کې خوراک او څښاک

---

۱) في المشكوة :عن أنس رضي الله تعالى عنه ان رجلاً من كلاب سأل النبي ﷺ عن عسب الفحل؟ فنهاه، فقال يا رسول الله! إنا نطرق الفحل فنكرم فرخص له في الكرامة. (مشكوة المصابيح ۲۴۸، باب المنهي عنها من البيوع ،الفصل الثانى)

۲) قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى : فإن المفتى به جواز الأخذ على القرأءة. (البحر الرائق ۵:۲۲۸، باب الوقف)

۳) قال العلامة الحموى رحمه الله تعالى :أن صاحب الاختيار علله بأن أخذ شيئ للقرأة لايجوز لأنه كالأجرة، فأعاد أنه مبني على غير المفتي به فإن المفتى به جواز الأخذ على القراءة. (غمز عيون البصائر شرح الأشباه والنظائر ۲:۲۲۹، كتاب الوقف)

۴) قال الامام الحافظ عمادالدين بن كثير رحمه الله تعالى :(وَلَا تُبَذِّرْ تَبْذِيرًا) لما أمر بالانفاق، نهي عن الإسراف فيه...(إِنَّ الْمُبَذِّرِينَ كَانُوا إِخْوَانَ الشَّيَاطِينِ)أى أشباههم في ذلك ،قال ابن مسعود رضي الله عنه :التبذير الإنفاق في غير الحق...وقال قتادة: التبذير النفقة في معصية الله تعالى، وفي غير الحق والفساد. (تفسير ابن كثير ۳:۵۳ سورة الإسراء)

روا دی په دې شرط چې د جومات وقار په ځای وساتل شي (۱) وهوالموفق

**دحافظ صاحب د پیسو د نه ارادې په صورت کې دختم په وخت کې پیسې اخیستل**

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې زمونږ په سیمه (علاقه) کې په رمضان شریف کې د قرآن مجید ختم کیږي، د ختم په وخت کې عوام روپۍ جمع کوي حافظ صاحب ته يې د نقدو يا د جامو په صورت کې ورکوي، د همدې روپیو ورکولو څه حکم دی؟ کله چې د حافظ صاحب اراده د روپیو نه وي؟ **بینواتوجروا**

المستفتي حافظ عبدالباري ۷۹ع ۸ / ۱۸

**الجواب:** که چیرته د حافظ صاحب د روپیو او وغیره اراده نه وه نو د روپیو اخیستل بلا اختلاف روا دي (۲) **فقط**

---

۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: قال ابن كمال لايكره الأكل والشرب والنوم فيه مطلقًا ونحوه في المجتبى. ((الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: والظاهر أن مثل النوم الأكل والشرب إذا لم يشغل المسجد ولم يلوثه لأن تنظيفه واجب.

(الدرالمختارمع ردالمحتار ۲:۱۴۶، كتاب الصوم، باب الاعتكاف)

۲) قال العلامة الشاه عبدالعزيزرحمه الله تعالى: دريم صورت دا دی چې يو کس خالص د الله تعالى لپاره د خپلو لوستلو ثواب بل چاته وبخښي يا دغه بل کس ته د ثواب رسولو په غرض يې ووايي او د عوض اخستلو خيال دده په زړه کې بالکل تير نه شي او دغه دويم کس ددې لوستلو په عوض کې د لوستلو نه پس يا د لوستلو په مينځ کې لوستونکي ته څه ورکړي يا څه بل څه احسان ورسره وکړي ...... دا صورت بلاشبه جائز دی بلکې دا مستحب دی ځکه چې د احسان په بدله کې احسان جائز دی. (فتاوی عزیزیه ۴۹۰ مسائل نماز، عبادات واعمال کواجرت پردینے کا حکم)

## د قرآن ختم کوونکو ته په صدقه ورځ یا بله ورځ ډوډۍ ورکول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې زمونږ په سيمه (علاقه) کې رواج دی کله چې د چا کوم مشر يا نږدې رشته دار وفات شي نو نږدې ورځو له ماتم ورروسته خيرات کيږي. کوم چې په هفته کې يو ځل خامخا کيږي. بيا په څلويښتمه ورځ کيږي. مګر زمونږ ځايي علماء په دې باندې اعتراض کوي چې که چيرته نن کوم حضرات ختم کوي د دوی لپاره د همدې کور څخه په همدې ورځ خوراک څښاک کول حرام دي او که چيرته نن ختم وشي او خوراک يوه ورځ مخکې يا يوه ورځ وروسته ورکړل شي نو صحيح ده.

**نوټ:** د هغه خوراک متعلق حکم ذکر کړئ چې د ختم په ورځ پوخ شوی وي. که هغه په دويمه ورځ پوخ شي او تقسيم شي. کوم چې ختم والا خوري هغه دبته روا وايي. فتوی ورکړئ مهرباني به مو وي؟ **بينوا توجروا.**

**المستفتي:** الطاف حسين. گندم منډی. راولپنډی. ۲۲ جمادی الاولی ۱۳۹۳هـ

**الجواب:** واضحه دې وي چې د رواج (رسم) پابندي او د پيغور (عار) ليرې کولو په ارادې سره د ډوډۍ پخول هر وخت ناروا ده او په مسکينانو باندې د صدقې په ارادې سره يې هر وخت پخول روا دي. مېلمستيا او دعوت ته درې ورځو پورې ناروا دی (شامي)(۱) او مړي ته د ايصال ثواب لپاره ختم کول او په هغه باندې اجرت اخيستل مختلف فيه دي

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى :وفي البزازية ويكره إتخاذ الطعام في اليوم الأول والثالث وبعدالأسبوع ونقل الطعام إلى القبر في المواسم وإتخاذ الدعوة لقراءة القرآن وجمع الصلحاء والقراء للختم أو لقراء ة سورة الأنعام أوالإخلاص ،والحاصل أن اتخاذ الطعام عند قراء ة القرآن لاجل الأكل يكره، وفيها من كتاب الاستحسان وإن اتخذ طعامًا للفقراء كان حسنا، وأطال في ذلک في المعراج، وقال: وهذه الأفعال كلها للسمعة والرياء فيحترز عنها لأنهم لايريدون بها وجه الله تعالىٰ.
(ردالمحتار ۶۶۴:۱، باب صلاة الجنازة ،مطلب في كراهة الضيافة من أهل الميت)

دعلامه شامي رحمه الله په نزد عدم جواز راجح دی[1] او په عالمگيري کې جواز ته اصح ويل شوي دي[2] او کله چې دوړی د اجرت په ډول نه وي نو دهغې په جواز کې هيڅ اختلاف نشته. کله چې له نورو مفاسدو څخه خالي وي[3] البته که چيرته مړي ته د کومې گټې رسېدل مطلوب وي؛ نو د نقد مال صدقه کول يکاردي او که چيرته د زړه له کومې کوم تلاوت وکړي او ايصال ثواب وکړي نو بهتر به وي[4] وهوالموفق

**د ايصال ثواب لپاره د قرآن په ختم باندې عوض اخيستل او د خوراک کولو حکم**

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو دې مسئلې په باره کې چې آيا په مړي

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى :(قال العيني في شرح الهداية :ويمنع القاري للدنيا والآخذ والمعطي آثمان.(ردالمحتار ۵:۳۹، باب الإجارة الفاسدة،مطلب تحرير مهم في عدم جواز الإستيجار على التلاوة)

۲) في الهندية :واختلفوا في الاستيجار على قرأة القرآن على القبر مدة معلومة، قال بعضهم لايجوز وقال بعضهم يجوزهوالمختار، كذا في السراج الوهاج.
(فتاوى هندية ۴:۴۴۹، كتاب الإجارة ،الاستئجار على الطاعات)

۳) قال الشاه عبدالعزيز رحمه الله تعالى : دريم صورت دا دی چې يو کس خالص د الله تعالى لپاره د خپلو لوستلو ثواب بل چاته وبخښي يا دغه بل کس ته د ثواب رسولو په غرض يې ووايي او د عوض اخستلو خيال دده په زړه کې بالکل تير نه شي او دغه دويم کس ددې لوستلو په عوض کې د لوستلو نه پس يا د لوستلو په مينځ کې لوستونکي ته څه ورکړي يا څه بل څه احسان ورسره وکړي ...... دا صورت بلاشبه جائز دی بلکې دا مستحب دی څکه چې د احسان په بدله کې احسان جائز دی.
(فتاوى عزيزيه ۴۹۰ مسائل نماز، عبادات واعمال کواجرت پردينے کا حکم)

٤) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى :ولو زار قبر صديق أو قريب له وقرأ عنده شيئا من القرآن فهو حسن.(ردالمحتار ۵:۳۹، باب الإجارة الفاسدة،مطلب تحرير مهم في عدم جواز الاستئجار على التلاوة)

پسې شاته د ایصال ثواب لپاره د قرآن په ختم باندې عوض اخیستل او خوراک کول روا دي؟ بینوا توجروا.

المستفتي فضل حق، کالوخان مردان ۱۴۰۰ھ ۴ ۱۰

**الجواب:** په مجرد تلاوت باندې اجرت اخیستل مختلف فیه دي. **کمافی الهندیة ۴: ۴۶۱، واختلفوا فی الاستیجار علی قراءة القرآن علی القبر مدة معلومه، قال بعضهم لایجوز وقال بعضهم یجوز وهوالمختار کذافی السراج الوهاج،(۱) وفی ردالمحتار ۵: ۴۷، وقال العینی فی شرح الهدایة: ویمنع القاری للدنیا والآخذ والمعطی آثمان(۲) الخ، وفی البحر ۵: ۲۲۸، فان المفتی به جواز الأخذ علی القراءة(۳) انتهی، قلت: ولیس مراده جواز الأخذ علی تعلیم القرآن کما فهم.** پس په دې کې تشدد مناسب نه دی. البته احوط دا ده چې د اجرت له لین دین څخه پرهیز وشي **وهوالموفق**

## د قرآن په ختم کې یو ځل په جهر د بسم الله ویلو حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د قرآن په ختم کې یو ځل په جهر (په زوره) بسم الله ویل څنګه دي؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي نور الهادی حقانیه ۱۳۹۹ھ/ ۱۱/ ۱۴.

**الجواب:** یو ځل په جهر د بسم الله ویل ضروري دي (۴) **وهوالموفق**

---

۱) (فتاوی هندیة ۴: ۴۴۹، کتاب الإجارة، الاستیجار علی الطاعات)

۲) (ردالمحتار ۵: ۳۹، باب الإجارة الفاسدة، مطلب في عدم جواز الإستیجار علی التلاوة)

۳) البحر الرائق ۵: ۲۲۸، باب الوقف)

۴) قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالی: وهی آیة واحدة من القرآن کله أنزلت للفصل بین السور فما في النمل بعض آیة إجماعا، ولیست.. (دحاشیې پاتې برخه په بل مخ)

## د مروجه شبينه حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې په ابو داؤد کې دي چې (لم يفقه من قرأ القرآن في أقل من ثلث) نو په يوه شپه کې د قرآن ختم څنګه دی؟ بينوا توجروا.

المستفتي نور الهادي حقانيه ۱۳۹۹ هه ۱۱ ۱۳

**الجواب:** زمونږ په سيمو کې چې کومه شبينه کيږي هغه په مقتديانو باندې بوج دی او قاري هم په قرائت کې بيړه (تلوار) کوي او دا دواړه مکروه دي.(۱)

---

(د حاشيې پاتې برخه) من الفاتحة ولا من كل سورة في الأصح.

(الدرالمختار ۱: ۳۶۲، كتاب الصلوة، مطلب قرآءة البسملة بين الفاتحه والسورة حسن)

وقال العلامة أبوبكر الجصاص الرازي رحمه الله تعالى: فالأولى أن تكون آية تامة من القران من غير سورة النمل لأن التى في سورة النمل ليست بآية تامّة والدليل على أنها آية تامّة حديث ابن أبي مليكة عن أم سلمة رضي الله تعالى عنها: أن رسول الله ﷺ قرأ في الصلوة فعدّها آية.

(أحكام القرآن ۱: ۱۲، فصل أما القول في أنها آية أوليست آية)

وقال العلامة عبدالحى اللكهنوي رحمه الله تعالى: لو قرأ تمام القرآن في التراويح ولم يقرأ البسملة في ابتداء سورة من السور سوى مافي سورة النمل لم يخرج عند عهدة السنية، ولو قرأها الإمام سرّاً خرج عن العهدة، لكن لم يخرج المقتدون عن العهدة.

(مجموعة رسائل اللكهنوي، أحكام القنطرة في أحكام البسملة ۱: ۷۱)

۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: الأفضل في زماننا قدر مالايثقل عليهم..... ويجتنب المنكرات هذرمة القرآءة وترك تعوذ وتسمية وطمانينة وتسبيح واستراحة.

(الدر المختار ۱: ۵۲۳، كتاب الصلوة، مبحث صلوة التراويح)

وفي مراقي الفلاح ويحذر من الهذرمة و..... (د حاشيې پاتې برخه په بل مخ)

هو نفس شبينه مکروه نه ده، پس که چېرته داسې قاري پيدا شي چې هغه په يوه شپه کې د قرآن ختم وکړي د حروفو. حرکاتو او د تجويد د ضروري قواعدو لحاظ وکړی شي بنه تلاوت وکړي او په مقتديانو باندې هم بوج نه شي. هغوی هم د قرآن آوريدو لپاره تيار وي نو دا شبينه موجب ثواب ده (۱)، اګر که په خير القرون کې ددې اصل نه دی موندل شوی او دا د ديني مدارسو په شان بدعت حسنه دی **وهوالموفق**

## په لاسپيکر باندې په تراويح کې د قرآن ويلو حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې په لاسپيکر

---

(د حاشيې پاتې برخه) ترک الترتيل وترک تعديل الأركان وغيرها كمايفعله من لاخشية له.

(مراقي الفلاح ۴۱۶، كتاب الصلوة فصل في صلوة التراويح)

۱) عن أبي أمامة قال: قال النبي ﷺ: ما آذن لعبد في شيئ أفضل من ركعتين يصليها وان البر ليذرّ على رأس العبد ما دام في صلوته وما تقرب العباد إلى الله عزّوجل بمثل ما خرج منه، قال أبوالنصر: يعنى القرآن. (سنن الترمذي ۲: ۱۱۹، أبواب فضائل القرآن)

وعن عبدالله بن عمرو أن رسول الله ﷺ قال لم يفقه من قرأ القرآن في أقل من ثلاث. رواه الترمذي) .... وقال ابن حجر أى من الأيام وفيه بحث لأنه اذ ذاك لم يتمكن من التدبر له والتفكير فيه بسبب العجلة والملالة.....والمراد نفي الفهم لانفي الثواب، ثم يتفاوت الفهم بحسب الأشخاص.....ثم جرى على ظاهر الحديث جماعة من السلف فكانوا يختمون القرآن في ثلاث دائماً وكرهوا الختم في أقل من ثلاث ولم يأخذ به آخرون نظراً إلى أن مفهوم العدد ليس بحجة على ماهو الأصح عندالأصوليين فختمه جماعة في يوم وليلة مرّة وآخرون مرّتين وآخرون ثلاث مرّات وختمه في ركعة من لايحصون كثرةً ..... وقال النووي المختار أن ذلک يختلف باختلاف الأشخاص.

(مرقاة المفاتيح ۵: ۹، ۱۰، كتاب فضائل القرآن، باب، الفصل الثاني)

باندې د قرآن ختم څنګه دی؟ بینوا توجروا.

المستفتي نورالهادي حقانیه ۱۳۹۹ هـ ۱۱ ۱۳

**الجواب:** په لاسپیکر باندې په ختم کولو سره که چیرته چاته تکلیف نه وي، مثلاً په نورو جوماتونو کې د تراویح کوونکو ته تکلیف نه وي یا د آواز د تصادم (ټکر) خطر نه وي، (۱) نو ممنوع هم نه دی او مطلوب هم نه دی او سجده تلاوت په اوریدونکو باندې واجبیږي (۲) وهوالموفق.

## د (من قرأ القرآن یتأکل به الناس) حدیث مطلب

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یو کس د نورو لپاره د قرآن ختم کوي او د کور خلک هغه ته ډوډۍ ورکوي او څه نقدي روپۍ هم ورکوي. ددې متعلق د شریعت څه حکم دی؟ د جواز په صورت کې د (من قرأ القرآن یتأکل به الناس) حدیث مطلب څه شو؟ بینوا توجروا.

المستفتي محمد ارشاد. متعلم حقانیه ۸۷ع ۳/ ۱۵

**الجواب:** دا مسئله مختلف فیه ده، ډیر زیات فقهاء ددې د جواز قائل دي، کما فی الهندیة ۴ ک ۴۶۱، واختلفوا فی الإستیجار علی قراءة القرآن علی القبر مدة معلومة، وقال

---

۱) قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالٰی: أجمع العلماء سلفًا وخلفًا علی استحباب ذکر الجماعة في المساجد وغیرها إلا أن یشوش جهرهم علی نائم أو مصلٍ أو قارئ.
(رد المحتار ۱: ۴۸۸، کتاب الصلوة، مطلب في رفع الصوت بالذکر)

۲) وفي الهندیة: والسجدة واجبة في هذه المواضع علی التالي والسامع سواء قصد سماع القرآن أو لم یقصد.
(فتاوی هندیة ۱: ۱۳۲، کتاب الصلوة، الباب الثالث عشر في سجود التلاوة)

بعضهم لا يجوز وقال بعضهم يجوز، وهو المختار، كذا في السراج الوهاج(١) انتهى، قلت: وأما حديث: من قرأ القرآن أن يتأكل به الناس جاء يوم القيمة، الحديث، فمعنى التأكل: طلب الأكل وسؤاله لا أخذ الأجرة عليه(٢) والله أعلم.

## قادیاني او د هغه اولاد ته د قرآن پاک ويل او د هغه اجير جوړول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې زه له څو كلونو راهيسې د قاديانانو زامنو ته قرآن وايم. دې باره كې ما د يو عالم دين څخه پوښتنه وكړه نو هغه اجازه راكړه. الله تعالى دې هدايت ورته وكړي څكه چې هغه د اسلام له دين څخه خارج شوي دي. اوس زما لپاره څه مسئله ده؟ **بينوا توجروا**

المستفتي: حاجي ارشاد علي. پشاور صدر. ۱۹۷۴ع. ۵/۱۰.

**الجواب:** قاديانيانو او د هغو اولاد ته د قرآن ويل روا دي(٣)، ليكن د قادياني

---

١) (فتاوى هندية ۴۴۹:۴، كتاب الإجارة، الاستيجار على الطاعات)

وقال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: فإن المفتى به جواز الأخذ على القرأة. (البحر الرائق ۲۲۸:۵، باب الوقف)

٢) وفي مجمع بحار الأنوار: من قرأ القرآن يتأكل به أي يستأكل بسببه بأن يجعله ذريعة إلى احكام الدنيا. (مجمع بحار الأنوار ۹۱:۱، باب الهمزة مع الكاف)

وفي المنهاج: والجواب عن حديث: اقرؤا القرآن أنه معلول سنداً معارض بالأقوى ويمكن حمله على سوال الأكل أو العزيمة.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ۹۰:۲، باب ما جاء في كراهية أن يأخذ المؤذن على الأذان أجراً)

٣) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ويمنع ......(د حاشيې پاتې برخه)

اجير جوړول د امام اعظم رَحِمَهُ اللهُ په نزد ناروا دي، يعني غير نافذ او موقوف دي، كما في الدر المختار: ويتوقف منه عند الامام وينفذ عندهما كل ما كان مبادلة مال بمال أو عقد تبرع كالمبايعة والاجارة، هامش ردالمحتار ۴: ۳۰۱-۳۰۲-۳۰۳ () وهوالموفق.

## كافر ته د مطالعې لپاره د قرآن پاک وركول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې كوم غير مسلم ته د مطالعې لپاره د قرآن كريم وركول څه حكم لري؟ بينوا توجروا.

المستفتي جناب محمد اسحق، هانګ کانګ ۱۹۷۴ ع ۲ ۱۱

**الجواب:** كه چېرته نې دبې حرمتي ويره (خطر) نه وي: نو روا دي (۲) وهوالموفق

---

(د حاشيې پاتې برخه)..... النصراني من مسه و جوزه محمد إذا اغتسل، ولا بأس بتعليمه القرآن والفقه عسى أن يهتدى .(الدر المختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله ويمنع النصراني) في بعض النسخ الكافر وفي الخانية: الحربي أو الذمي.

(ردالمحتار ۱: ۱۳۱، كتاب الطهارة، قبيل باب المياه)

وفي الفتاوى الخانية: الحربي والذمي إذا طلب تعلم القرآن يعلم، وكذا إذا طلب الفقه والأحكام رجاء أن يهتدي إلى الحق لكنه يمنع من مس المصحف إلا إذا اغتسل فلا يمنع بعد ذلك.

(فتاوى خانية على هامش الهندية ۱: ۱۶۳، باب الحدث في الصلاة، مسائل كيفية القراءة)

۱) (الدر المختار ۴: ۳۳۰، باب المرتد، قبيل مطلب المعصية تبقى بعد الردة)

۲) وفي الهندية: قال أبو حنيفة رحمه الله تعالى: اعلم النصراني الفقه والقرآن لعله يهتدي ولا يمسّ المصحف وإن اغتسل ثم مسّ .... (د حاشيې پاتې برخه په بل مخ)

## په توره تخته باندې د قرآن د آيتونو، د الله تعالى او د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مباركو نومونو ليكل او بيا يې په کوم شي سره ورانول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې په توره تخته باندې د الله تعالى او د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مباركو نومونو ليكل يا د قرآن پاک ليكل او بيا يې په كوم شي سره ورانول څنګه دي؟ **بينوا توجروا**

المستفتي ارشد علي چارسده ۵ ربيع الاول ۱۴۰۹ هـ

**الجواب:** لكه څرنګه چې د همداسې مباركو الفاظو په اوبو سره ورانول عفوه دي نو په جامې سره يې هم ورانول عفوه دي. (۱) البته مناسبه دا ده چې د توري تختې لاندې كومه جامه با بل شي وغوړول شي. **وهوالموفق**

## د اسماء حسنى، د انبياوو د نومونو، د آيتونو يا د احاديثو په محراب وغيره باندې د ليكلو حكم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې يو كس جومات په مخامخ ديوال باندې محراب ته نږدې د اسما، حسنى يا د انبياوو د

---

(پاتې حاشيه) ...... لا بأس، كذا في الملتقط
(فتاوى هندية ۵: ۳۲۳، كتاب الكراهية، الباب الخامس في آداب المسجد والقبلة)
قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ويمنع النصرانى من مسه و جوزه محمد إذا اغتسل، ولا بأس بتعليمه القرآن والفقه عسى أن يهتدي. (الدرالمختار ۱: ۱۳۱، قبيل باب المياه)

۱) قال العلامة العيني رحمه الله تعالى: وقال عياض غسلوها بالماء ثم احرقوها مبالغة في إذهابها ...... وقال ابن بطال في هذا الحديث جواز تحريق الكتب التي فيها اسم الله عزّ وجلّ بالنار و إن ذلك إكرام لها وصون عن وطئها بالأقدام وقيل هذا كان في ذالك الوقت وأما الآن فالغسل أولى اذا دعت الحاجة الى إزالته.
(عمدة القاري ۲۰: ۱۸، ۱۹، كتاب فضائل القرآن، باب جمع القرآن)

نومونو متعلق ليکل کړي دي. ددې کوونکی د حرامو مرتکب دی. که مبتدع که مکروه او که دا روا او ثواب کار دی؟ همدارنګه په محراب باندې دیاسه آیت کرمه یا حدیث ليکلي دي لکه د دارالعلوم حقانيه په محراب باندې چې آيت کريمه او حديث شريف ليکل شوي دي؟ بينوا توجروا.

المستفتي ابوالخير، ګاؤن بتياره ..۷۳ع ۳/ ۱۴

**الجواب:** په دغه مسئله کې اختلاف دی، ليکن کله چې د اهانت ويره (خطر) نه وي او د لمانځه په حالت کې په هغو باندې نظر نه لګيږي نو عدم کراهت ته ترجيح ورکول کيږي. **في الهندية ۵ : ۳۵۸، ولو كتب القرآن على الحيطان والجدران بعضهم قالوا يرجى أن يجوز وبعضهم كرهوا ذلك مخافة السقوط تحت اقدام الناس كذا في فتاوى قاضي خان() وهوالموفق**

## د استاذ لپاره په چوکۍ باندې کيناستل کله چې کتابونه لاندې وي

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې زه په مکتب کې ماشومانو ته زده کړه ورکوم. تقريباً د مکتب په هر کتاب کې بسم الله او په مختلفو ځايونو کې د الله تعالى او د رسول الله ﷺ مبارک نومونه ليکل شوي دي. اوس سوال دا دی چې د استاذ لپاره په چوکۍ باندې کيناستل د داسې کتابونو يا خالص د دينياتو کتابونه. په کومو کې چې دننه د قرآن پاک آيتونه هم ليکل شوي دي لوستل څنګه دي. کله چې ماشومان ښکته (لاندې) په فرش باندې ناست وي؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي: ارشد علي، چارسده...۱۹۸۸ع/ ۱۹/۲.

---

۱) فتاوى هندية ۵: ۳۲۳، كتاب الكراهية، الباب الخامس في آداب المسجد والقبلة)

وقال العلامة ابن عابدين: وقدمنا قبيل باب المياه عن الفتح: أنه تكره كتابة القرآن وأسماء الله تعالى على الدراهم والمحاريب والجدران ومايفرش، وماذاك إلا لاحترامه وخشية وطئه ونحوه مما فيه إهانة. (ردالمحتار ۱: ۶۶۹، قبيل باب الشهيد)

**الجواب:** چونکې د داسې کتابونو څخه لوړ (اوچت) کيناستل نه شرعًا بې آدبي ده او نه عرفًا بې آدبي ده. لهذا دا کيناستل بې ناروا نه دي (۱) **وهوالموفق**

## لوځ سر د قرآن لوستل او په جومات کې کيناستل

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې په لوځ سر د قرآن مجيد لوستل او ورښودل څنګه دي؟ په خانګړې ډول ماشومان بې په لوځ سر وايي او په جومات کې ناست وي. ددې څه حکم دی؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي نامعلوم

**الجواب:** لوځ سر د قرآن لوستل او په جومات کې کيناستل منعه نه دي (۲) **وهوالموفق**

---

۱) قال المفتي کفايت الله رحمه الله تعالى: د عرفي بې ادبی مدار په عرف عام باندې دی او هم په دې باندې حکم لګولی شي... که په يو صورت کې په عرف عام کې بې ادبی ګڼلی شي نوهغه به بې ادبی وي اګرچې دهغې تصريح په يو کتاب کې ملاو نه شی. (کفايت المفتي ۱: ۱۲۶، کتاب العقائد)

۲) في الهندية: رجل أراد أن يقرأ القرآن فينبغي أن يكون على أحسن أحواله، يلبس صالح ثيابه ويتعمم ويستقبل القبلة، لأن تعظيم القرآن والفقه واجب كذا في فتاوى قاضي خان.
(فتاوى هندية ۵:۳۱۶، كتاب الكراهية، الباب الرابع في الصلاة والتسبيح وقراءة القرآن)

وقال العلامة التهانوي رحمه الله تعالى: د خولی نه بغير سرتور سر قرآن مجيد لوستل مکروه تنزيهي دي يا نه؟
الجواب: نه ذی.
(امداد الفتاوى ۴: ۳۹، کتاب الحظر والإباحة، نماز، تسبيح، ذکر، دعا وغيره کے احکام)

## د قرآن مجيد او ديني كتابونو طرفته د پښو غځولو حكم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې آيا د قبلې طرفته د پښو غځول ناروا دي؟ آيا له دې پرته كوم بل طرفته يې هم غځول ناروا دي؟ بينواتوجروا.

**المستفتی:** ذاكرحسين، پولي ټيكنك كالج كوهاټ روډ، پشاور ۱۴۰۰ هـ ۶ ۱۸

**الجواب:** دقرآن مجيد اوديني كتابونو طرفته د پښو غځول ممنوع دي [۱] فقط

## د قرآن مجيد په جامه باندې د پښو ايښودلو او په هغو دپاسه د لوبو حكم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې ماشومانو په كومو جامو كې قرآن مجيدونه ايښي وي، په هغو جامو باندې دپاسه لوبې كول يا په هغو باندې د پښو ايښودل څنګه دي؟ **بينواتوجروا**

المستفتي: نامعلوم

**الجواب:** كه چيرته قرآن مجيد په هغو في الحال نه وي ايښودل شوي نو خير دى **وهوالموفق**

## په جوماتونو كې په راډيو يا ټيپ ريكارډ سره د قرآن مجيد اوريدلو حكم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې له راډيو څخه دقرآن مجيد آوريدل څنګه دي؟ او په ټيپ ريكارډ كې د قرآن مجيد ثبتول او بيا يې اوريدل څنګه دي؟ همدارنګه په جوماتونو كې دهغه اوريدل څنګه دي؟ **بينواتوجروا**

المستفتي: نامعلوم

---

۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى : كُرِهَ (مَدُّ رِجْلَيْهِ فِي نَوْمٍ أَوْ غَيْرِهِ إِلَيْهَا) أَيْ عَمْدًا لِأَنَّهُ إِسَاءَةُ أَدَبٍ قَالَهُ مُنْلَا نَاكِيرُ (أَوْ إِلَى مُصْحَفٍ أَوْ شَيْءٍ مِنْ الْكُتُبِ الشَّرْعِيَّةِ إِلَّا أَنْ يَكُونَ عَلَى مَوْضِعٍ مُرْتَفِعٍ عَنْ الْمُحَاذَاةِ) (الدر المختار ۱ : ۴۸۵، باب ما يفسد الصلوة وما يكره فيها، مطلب في أحكام المسجد)

وقال العلامة ابن حجر : قال الزركشي : ويحرم مد الرجل إلى شيئ من القرآن أو كتب العلم. (الفتاوى الحديثية ۳۰۶، مطلب حكم مد الرجل للمصحف أو كتب العلم)

**الجواب:** دا اصل شی نه دی بلکې عکس دی، لهذا د هغه آوریدل نه عبادت نه ضروري او نه معصیت او حرام دی، **فلایجب سجدة التلاوة بالسماع من تلك الآلات(١)فقط.**

## د قرآن مجید د ځانګړیو (خاصو) سورتونو په ځانګړیو (خاصو) ورځو کې د ثواب په نیت د ویلو حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې زموږ په سیمه (علاقه) کې د رمضان په دیرشمه شپه د قرآن مجید مخصوص سورتونه ویل کیږي او دا عمل د لزوم ثواب په ډول ګڼل کیږي. ددې څه حکم دی؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي: مختار احمد. تحصیل وضلع مردان ۱۴۰۰هـ/ ۷/ ۱۷

**الجواب:** که چیرته دغه سورتونه په همدې خاص وخت کې د کثرت ثواب په اعتقاد سره ویل کیږي نو مکروه او ناروا دي، **کمافی البحر٢: ٥٩، ولأن ذکر الله اذا قصد به التخصیص بوقت دون وقت أوبشيئ دون شيئ لم یکن مشروعاً حیث لم یرد الشرع به(٢)وهوالموفق.**

## د الله او قرآن په خاطر (ما مه تنګوه) ویلو کې کومه ګناه نشته

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې که چیرته کوم کس څوک تنګوي او هغه دده په خواب کې ووایي چې د الله یا قرآن مجید په خاطر ما مه تنګوه، نو په دې کې کومه ګناه شته او که نشته؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي: نامعلوم ۱۹۸۸ع/ ۸/ ۲۸

---

١) قال العلامة الکاساني رحمه الله تعالى: بخلاف السماع من الببغاء والصدى فإن ذلك لیس بتلاوة.

٢) (البحر الرائق ٧٠: ٦باب البیع الفاسد)

**الجواب:** په دې کې هيڅ ګناه نشته. د الله او د قرآن رعايت په هر مسلمان باندې ضروري دی [۱] **وهوالموفق**

## د قرآن مجيد لپاره غلاف او د هغو شمير (تعداد)

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء، کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د قرآن مجيد لپاره څومره غلافونه روا دي څکه چې خلک غلاف سنت بولي؟ **بينواتوجروا**

المستفتي شير خان. چارسده ۴۷ع ۱۰ ۱۱

**الجواب:** بلا غلاف هم روا دی او با غلاف هم روا دی. ددې لپاره هيڅ حد (اندازه) نشته. **فقط**

## د (وَاللَّاتِي يَأْتِينَ الْفَاحِشَةَ مِن نِّسَآئِكُمْ) او د (وَاللَّذَانِ يَأْتِيَانِهَا مِنكُمْ فَآذُوهُمَا) بهترين تفسير

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء، کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د قرآن مجيد د څلورمې سپارې د سورة النساء، آيت نمبر ۱۴ (**وَاللَّاتِي يَأْتِينَ الْفَاحِشَةَ مِن نِّسَآئِكُمْ**) (الاية) (**وَاللَّذَانِ يَأْتِيَانِهَا مِنكُمْ فَآذُوهُمَا**) (الاية) په ترجمه کې اختلاف پيدا شوی دی. يو عالم د هغه ترجمه د دوو ښځو په مينځ کې په زنا سره کړې ده. او بل عالم دين وېلي دي چې صرف په دغه ځای کې نه دي بلکې په ټول قرآن مجيد کې د ښځې له ښځې سره د زنا کولو ذکر نشته. په دې دواړو کې کوم يو صحيح دی؟ **بينواتوجروا**

المستفتي عبدالحکيم، کوهستان.. ۸/ رمضان ۱۳۹۴هـ

**الجواب:** د همدې آيتونو تفسير په بيان القرآن کې حضرت تهانوي رَحِمَهُ اللهُ په

---

۱) (وفي الهندية :لأن تعظيم القرآن والفقه واجب.
فتاوى هندية ۵: ۳۱۶، كتاب الكراهية ،الباب الرابع)

بنه طريقه کړی دی لهذا تاسو هغه ته مراجعه وکړئ[۱] او له (واللاتي يأتين الخ) څخه که چیرته صرف د ښځو په مینځ کې بې حیایي وشي: نو د هغه مصداق د سحق وي. يعني له يوې بلې سره بلاحائل دفرج يوځای کول[۲]. فافهم وهوالموفق

## دعلم له حاصلولو پرته خلکو ته دقرآن اوحديث ترجمه اوتفسير کولوحکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې يو اردو ويونکي يا پښتو ويونکي يا فارسي ويونکي د قرآن او حديث ترجمه له کوم عالم څخه نه وي زده کړې او هغه خلکو ته تعليم ورکوي. د هغه څه حکم دی؟ بينواتوجروا.

المستفتي قاضي فيض القادر، ميران شاه. ۱۹۸۸ع ۷ ۶.

---

۱) قال حكيم الأمت رحمه الله تعالى: اوکومې ښځې چې د بې حيايئ کار (يعنى زنا) وکړي ستاسو (منکوحه) ښځو سره، تاسو ددې ښځو (په دې کار) باندې څلورسړي دخپلو نه (يعني آزاد عاقل بالغ مذکر) ګواهان کړئ (چې ددوی په ګواهئ باندې حکام آينده سزا جاری کړي)... او (د زنا په سزاکې د ځينې منکوحه ښځو تخصيص نشته بلکې) چې کوم دوه سړي هم دغه د بې حيايئ کار (يعنې زنا) وکړي ستاسو نه (يعنې د بالغ عاقل مسلمانانو نه) نو دوی دواړو ته تکليف ورسوئ....

فايده: دا چې وويل شو چې: "کوم دوه سړي هم" په دې کې د نکاح او بې نکاح والا ښځې او د نکاح او بې نکاح والا سړي ټول راغلل، پس د څلور واړو حکم ذکر شو، د دوی دا حکم په ابتداء کې وو چې تکليف خو ټولو ته ورسول شي چې ددې طريقه بې صرف منکوحه ښځې لپاره بيان کړه چې دوی مقيدې وساتئ او د باقي لپاره يې طريقه بيان نه کړه، ظاهره هم دا ده چې د اسلامي حکامو په رايې باندې به وي.
(بيان القرآن ۱:۳۳۶، سورة النساء، آيت نمبر ۱۶،۱۵)

۲) قال الدكتور وهبة الزحيلي رحمه الله تعالى: والسحاق (وهوفعل النساء بعضهن ببعض) حرام أيضا ويعزر فاعل المساحقة...وعن واثلة رضي الله تعالى عنه قال رسول الله ﷺ سحاق النساء بينهن زنا.
(الفقه الإسلامي وأدلته ۷:۵۳۴۶، الباب الأول الحدود الشرعية، الفصل الأول حدالزنا)

**الجواب:** همداسې کسانو ته کتاب ته په کتلو سره ترجمه او تشریح کول ممنوع نه دي. لیکن په یاد سره یې کول ممنوع دي (۱) **وهوالموفق**

## د ښځو لپاره د غیر محرم ښځه علم حاصول

**سوال:** زمونږ په سیمه (علاقه) کې یو شمیر خلک وایي چې علم فرض دی که چیرته د ښځې میره یا کوم رشته دار نه وي نو د ښځې لپاره د بیگانه سړي ښځه یا د سړي لپاره د بیگانه ښځې ښځه د علم زده کول روا دي؟ آیا دا مسئله صحیح ده؟ **بینواتوجروا**

المستفتي نامعلوم

**الجواب:** په صورت مسئوله کې د علم حصول ضروري دی. (۲) بیا هم د خلوت

---

۱) في المرقاة: ثم إنه إنما يأمرو ينهى من كان عالمًا بما يأمر به وينهي عنه وذلك يختلف باختلاف الشيئ، فإن كان من الواجبات الظاهرة أو المحرمات المشهورة كالصلاة والصيام والزكاة والزنا والخمر ونحوها فكل المسلمين عالم بها، وإن كان من دقائق الأفعال والأقوال وما يتعلق بالاجتهاد لم يكن للعوام مدخل فيه لأن انكاره على ذلك للعلماء.

(مرقاة المفاتيح ۹:۳۲۹، كتاب الآداب، باب الأمر بالمعروف)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: وقد رأيت في فتاوى العلامة ابن حجر: سئل في شخص يقرأ ويطالع في الكتب الفقهية بنفسه ولم يكن له شيخ ويفتي ويعتمد على مطالعته في الكتب، فهل يجوز له ذلك أم لا؟

فأجاب بقوله: لايجوز له الإفتاء بوجه من الوجوه لأنه عامي جاهل لايدري ما يقول؟

(شرح عقود رسم المفتي ۲۲، عدم جواز الافتاء بمجرد المطالعة بلا تدريبه)

۲) في المرقاة: عن أنس قال قال رسول الله ﷺ: طلب العلم فريضة على كل مسلم ومسلمة كما في رواية. (مرقاة المفاتيح ۱:۲۸۴، كتاب العلم)

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: واعلم أنّ تعلم العلم يكون فرض عين وهوبقدر مايحتاج لدينه. (الدر المختار ۱:۴۲، مقدمة، مطلب في فرض الكفاية وفرض العين)

او پردې خيال ساتل ضروري دي (۱) وهو الموفق

---

۱) وفي المشكوة: عن عقبة بن عامر رضي الله تعالىٰ عنه قال قال رسول الله ﷺ: اياكم والدخول على النساء، فقال رجل يا رسول الله! ارأيت الحمو؟ قال: الحمو الموت...
وعن عمر رضي الله تعالىٰ عنه عن النبي ﷺ قال لايخلونّ رجل بامرأة إلاكان ثالثهما شيطان، رواه الترمذي.
(مشكوة المصابيح ۲۶۸، باب النظر إلى المخطوبة وبيان العورات)

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالىٰ: الخلوة بالأجنبية حرام.
(الدر المختار ۵:۲۶۰، كتاب الحظر والإباحة، فصل في النظر والمس)

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالىٰ: وتمنع المرأة الشابة من كشف الوجه بين رجال لا لأنه عورة بل لخوف الفتنة. (الدر المختار ۱:۲۹۹، باب شروط الصلاة)

# باب آداب الكواغذ

## د قرآن مجید د زړو پاڼو حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د قرآن مجید د زړو پاڼو انبار پروت دی له هغه سره باید څه وشي؟ **بینواتوجروا**

المستفتي: ډاکټر شریف احمد صاحب ۲ رجب المرجب

**الجواب:** د قرآن مجید هغه پاڼې د کتې اخیستو قابل نه وي په کوم محفوظ ځای کې دي د یوه مسلمان مړي په شان ښخ کړای شي او یا دې په روانو (جاري) اوبو کې واچول شي. والأول هوالأولى كمافي الهندية ۵: ۳۵(۱) **وهوالموفق.**

## د قرآن مجید د زړو پاڼو سوځول ناروا دي

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د قرآن یا د نورو دیني کتابونو زړو پاڼو سوځول بهتر دي که ښخول یې. که په اوبو کې یې اچول. کله چې په اوبو کې په اچولو سره هغه په خزلو بوټو کې راخوړندېږي او په

(۱) فى الهندية: المصحف اذا صار خلقا لا يقرأ منه ويخاف أن يضيع يجعل فى خرقة طاهرة ويدفن ودفنه أولى من وضعه موضعاً يخاف عليه النجاسة أو نحو ذلك.
(فتاوى هندية ۵:۳۲۳، كتاب الكراهية، الباب الخامس فى آداب المسجد الخ)
وقال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: المصحف إذا صار بحال لا يقراء فيه يدفن كالمسلم.
(الدرالمختار ۱:۱۳۰، قبيل باب المياه)

ښخولو کې په هغو د پاسه څناور وغیره ګرځي؟ بینوا توجروا

المستفتي: قاري فداء محمد، مانسهره. شعبان ۱۳۹۵ هـ

**الجواب:** ښخول يې ضروري دي، سوځول يې زمونږ په نزد غير مشروع دي. كما في الهندية ۵: ۳۵۸، المصحف اذا صار خلقًا لايقرأ منه ويخاف أن يضيع يجعل في خرقة طاهرة ويدفن ودفنه أولى من وضعه موضعًا يخاف أن يقع عليه النجاسة أو نحو ذلك ويلحد له، وفيها بعد أسطر، ولايحرق بالنار(١) وهوالموفّق.

## په اخبارونو کې د قرآني آیتونو او مبارکو احادیثو دفن (ښخول) درباب ته یې د غورځولو او سوځولو حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره کې چې په اخبارونو کې ځینې وخت قرآني آیتونه مبارک احادیث یا د الله تعالی نوم لیکل شوی وي. د همدې اخبارونو خرڅول څنګه دي؟ که چیرته همدغه اخبارونه ځیرې کړل شي په سمندر کې له اچولو پرته د هغو سوځول څه حکم لري؟

---

١) (فتاوى هندية ۵:۳۲۳، كتاب الكراهية، الباب الخامس في آداب المسجد الخ)

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: المصحف إذا صار بحال لايقرأ فيه يدفن كالمسلم. (الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله يدفن) أي يجعل في خرقة طاهرة ويدفن في محله غير ممتهن لا يوطأ، وفي الذخيرة،: وينبغي أن يلحد له ولا يشق لأنه يحتاج إلى إهالة التراب عليه وفي ذلك نوع تحقير إلاإذا جعل فوقه سقفًا بحيث لا يصل التراب إليه فهو حسن أيضا... فليس في دفنه إهانة له بل ذلك إكرام خوفًا من الامتهان. (ردالمحتار ۱:۱۳۰، قبيل باب المياه)

همدارنګه د همدي الفاظو دفن (ښخول) څه حکم لري؟ بينوا توجروا.

المستفتي: مياں محمد اکرم، اټک شهر ۲۹/ محرم ۱۴۰۳ هه

**الجواب:** د همدي مقدسو الفاظو پريکول او ښخول روا دي، کله چې کفن کړی شي، همدارنګه په درياب کې يې اچول هم صحيح دي (۱) او سوځول يې د شافعيانو په نزد روا دي، (۲) بيا هم عند الاحناف دا روا دي چې د ضرورت په

---

۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالىٰ: المصحف إذا صار بحال لايقرأ فيه يدفن كالمسلم. (درمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: (قوله يدفن) أى يجعل في خرقة طاهرة ويدفن... وأما غيره من الكتب فسيأتي في الحظر والإباحة أنه يمحى عنها اسم الله تعالىٰ وملائكته ورسله ويحرق الباقي ولابأس بأن تلقي في ماء جار كما هي أو تدفن وهو أحسن.

(ردالمحتار ۱:۳۰، قبيل باب المياه)

۲) قال العلامة الحافظ ابن حجر رحمه الله تعالىٰ: (قوله وأمر بما سواه من القرآن في كل صحيفة أو مصحف أن يحرق)... وفي رواية سويد بن غفلة عن عليّ قال لاتقولوا لعثمان في إحراق المصاحف إلا خيرا... ومن طريق مصعب بن سعد قال: أدركت الناس متوافرين حين حرق عثمان المصاحف، فأعجبهم ذلک، أوقال لم ينكرذلک منهم أحد... وأكثر الروايات صريح في التحريق فهو الذي وقع،... قال ابن بطال: في هذا الحديث جواز تحريق الكتب التي فيها اسم الله بالنار وأن ذلک إكرام لها وصون عن وطئها بالأقدام.

(فتح الباري ۹:۲۰،۲۱، باب جمع القرآن، كتاب فضائل القرآن)

وقال العلامة ملا علي قاري رحمه الله تعالىٰ: واختلف العلماء في ورق المصحف البالي إذا لم يبق فيه نفع أن الأولى هو الغسل أو الإحراق فقيل الثاني لأنه يدفع سائر صور الامتهان... قال ابن حجر وفعل عثمان يرجح ...(باتي حاشيه په بل مخ)

وخت کې د نورو ائمه وو په رأيه عمل وشي. (۱) والله أعلم

## له ردي کاغذونو څخه د الله او د رسول نوم رنګول او غورځول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې زمونږ دفتر ته مختلف کاغذونه راځي په کومو باندې چې نوم هم ليکل شوی وي، ملګري هغه پرې کړې باقي په ټوکرۍ کې واچوي او بيا په خس خزلو کې واچول شي، مګر زه داسې کوم چې د خدای او د رسول نوم په قلم رنګوم بيا يې ځيرې کوم او غورځوم يې، زما دا عمل څنګه دی؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي: جناب ګل محمد. ټائم آفس ډي ايم ټيکسټائل ملز، راولپنډۍ ۱۷/ نومبر ۱۹۸۴ع

**الجواب:** ستاسو طريقه ډيره غوره ده له دې پرته يې ښخول يا درياب ته اچول

---

(د حاشيې پاتې برخه) ... الإحراق وحرقه بقصد صيانته بالكلية لا امتهان فيه بوجه.
(مرقاة المفاتيح ۵:۲۹، كتاب فضائل القرآن)

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: وقد قال في البزازية: الفتوى في زماننا على قول مالک، وقال الزاهدي: كان بعض أصحابنا يفتون به للضرورة... لكن قدمنا أن الكلام عند تحقق الضرورة حيث لم يوجد مالكي يحكم به.
(ردالمحتار ۵:۳۶۲، كتاب المفقود، مطلب في الإفتاء بمذهب مالک في زوجة المفقود)

وفي البشرى لأرباب الفتوى: إعلم أنه لايجوز الحكم والإفتاء بالقول المرجوح وبمذهب سائر الأئمة إلا في ثلاثة مواضع الأول عند الضرورة... عند كون الحديث المخالف ثابتاً سنداً ومتناً غير منسوخ وغير معلول وغير معارض بحديث آخر... وعند تبدل العرف.
(البشرى لأرباب الفتوى ۳۳، الفصل السادس، الإفتاء بالقول المرجوح وبمذهب سائر الأئمة)

هم روا دي (۱)وهوالموفق

## د قرآني آيتونو او مباركو نومونو لرونكو اخبارونو او رسالو توهين او په هغو كې د ډوډۍ وغيره نغښتل

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې د ځمكې پر مخ د الله او د هغه د رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مقدسو نومونو بې حرمتي كيږي. په اخبارونو رسالو او نورو كتابونو كې مبارك نومونه ليكل شوي دي. له لوستلو وروسته په هغو كې شيان مثلا ډوډۍ وغيره نغښتل كيږي. بيا خلك شيان ترې راوباسي او په كوڅو كې يې وغورځوي. د همدې بې حرمتى مخنيوى څه دى؟ شرعي حكم يې څه دى؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: محمد اسلم مختار كراچى...۲۴/ شعبان ۱۴۰۳هـ

**الجواب:** د قرآني آيتونو او مباركو نومونو توهين كفر بواح دى. (۲) په همداسې اخبارونو وغيره كې د كومو متعلق چې د خلكو بې التفاتي معلومه شوي د هغو د ليكلو په ذريعه په ګناه او معصيت كې برخه اخيستونكي دي (۳)**وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: وأما غيره من الكتب فسيأتي في الحظر والإباحة أنه يمحى عنها اسم الله تعالى وملائكته ورسله ويحرق الباقي، ولابأس بأن تلقي في ماء جار، أو تدفن وهو أحسن. (رد المحتار ۱: ۱۳۰، قبيل باب المياه)

۲) قال الملا علي قاري رحمه الله تعالى: ثم لا نزاع في أن من المعاصي ماجعله الشارع أمارة التكذيب وعلم كونه كذلک بالأدلة الشرعية كالسجود للصنم وايقاء المصحف في القاذورات والتلفظ بكلمة الكفر ونحو ذلک مما ثبت بالأدلة أنه كفر.

(شرح الفقه الأكبر ص: ۷۷)

۳) قال الله تبارک وتعالى: وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ.... (پاتې حاشيه په بل مخ)

## د قرآن مجيد د ضعيفو پاڼو ښخول بهتر دي

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې قرآن کريم کله ضعيف شي؛ نو د هغه په پاکه جامه کې بندول په کوم درياب کې اچول پکار دي او يا که په هديره (قبرستان) کې په پاک خاوره کې ښخ کړی شي؟ **بينوا توجروا**

المستفتي: تاج محمد سکنه سهره هري پور ۱۷/۶/۱۹۸۶ع

**الجواب:** ښخول يې بهتر دي، في الهندية ۵:۳۵۸: المصحف إذا صار خلقًا لايقرأ منه ويخاف أن يضيع يجعل في خرقة طاهرة ويدفن، ودفنه أولى من وضعه موضعًا يخاف أن يقع عليه النجاسة ().

---

(د حاشيې پاتې برخه)....... (سورة المائدة آيت نمبر ۲)

وقال الدكتور وهبة الزحيلي رحمه الله تعالى: سدّ الذرائع أصل من أصول الشريعة الإسلامية، وحقيقته منع المباحات التي يتوصل بها إلى مفاسد أو محظورات.

سدالذرائع لايقتصر على مواضع الاشتباه والاحتياط، وإنما يشمل كل ما من شأنه التوصل به إلى الحرام... وضابط منع الذريعة: أن تكون من شأنها الإفضاء إلى المفسدة لامحالة (قطعًا) أو كثيرا.

(الفقه الإسلامي وأدلته: ۷:۵۲۵۸، بشأن سدالذرائع)

۱) (فتاوى هندية ۵:۳۲۳ كتاب الكراهية، الباب الخامس في آداب المسجد والقبلة)

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: المصحف إذا صار بحال لا يقرأ فيه يدفن كالمسلم. (در مختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله يدفن) أى يجعل في خرقة طاهرة ويدفن في محل غير ممتهن لايوطأ... وأما غيره من ... (پاتې حاشيه په بل مخ)

**نوټ:** که چېرته په جامه کې تاو کړی شي په هغه کې ډبره (کاڼی) بند کېښودل شي او په دریاب کې ډوب کړی شي نو دا هم قائم مقام د ښخولو دی (کما في المیت)[۱] **وهوالموفق**

## د زاړه قرآن غلاف صدقه کول یا یې سره له غلافه ښخول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د زاړه قرآن مجید او د هغه د غلاف په باره کې څه حکم دی؟ **بینواتوجروا**

المستفتي: نامعلوم

**الجواب:** فقهاء کرامو لیکلي دي چې زوړ شوی قرآن مجید دې په جامه کې تاو ښخ کړی شي[۲] او که چېرته غلاف لیرې کړي په بله پاکه جامه کې یې ښخ کړي شي نو هم روا دي او له هغه وروسته د غلاف په صدقه کولو کې هیڅ خبره نشته.

**وهوالموفق**

---

(د حاشیې پاتې برخه)..... الکتب فسیأتي في الحظروالإباحة أنه یمحی عنها اسم الله تعالیٰ وملائکته ورسله ویحرق الباقي ولا بأس بأن تلقي في ماء جار کما هي أوتدفن وهوأحسن.

(رد المحتار ۱:۱۳۰ ،قبیل باب المیاه)

۱) قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالیٰ :مات في سفینة غسل وکفن وصلی علیه و ألقي في البحر. (الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ: قوله وألقي في البحر ،قال في الفتح :وعن أحمد ینقل لیرسب.

(ردالمحتار ۱:۶۶۰ کتاب الجنائز ،مطلب في دفن المیت)

۲) قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالیٰ :المصحف إذا صار بحال لایقرأ فیه یدفن کالمسلم. (الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ :قوله یدفن)أی یجعل خرقة طاهرة ویدفن في محل غیرممتهن لایوطأ. (ردالمحتار ۱:۱۳۰ ،قبیل باب المیاه)

الله الله

بسم اللہ الرحمن الرحیم

قال رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم

"اَلتَّائِبُ مِنَ الذَّنْبِ كَمَنْ لَا ذَنْبَ لَهُ"

(رواہ ابن ماجة)

# باب التوبة

## د توبې صحیح طریقه څه ده؟

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یو کس له ګناه وروسته د صحیح توبې وبیستلو قصد کړی دی، د توبې صحیح طریقه څه ده؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي: مولوي کلیم، دوسلي، بنو.. ۸۸ع/ ۶/ ۶.

**الجواب:** مفسرینو او فقهاوو لیکلي دي چې د کمال توبه دار مدار په څو امورو باندې دی، اول په ماضي باندې پښېماني، دویم په اینده کې د ګناه نکولو عزم، دریم د کومو حقوقو لپاره چې بدل شي نو د هغه بدل په عمل کې راوستل او د حقوق العباد تعلق آداء یا استبراء کول (۱) **وهوالموفق**

## له ټولو ګناهونو څخه یوه توبه کافي ده

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې که چیرته د یو کس څخه کفر یا شرک وشي او په ټول عمر کې یوه توبه وباسي نو آیا د هغه لپاره یوه توبه کافي کیږي؟ او هغه داسې ووایې چې: اې الله! زما څخه چې په

---

۱) قال العلامة النووي رحمه الله تعالى :قال العلماء :التوبة واجبة من كل ذنب فإن كانت المعصية بين العبد وبين الله تعالى لاتتعلق بحق آدمي فلها ثلاثة شروط : أحدها: أن يقلع عن المعصية ، والثاني : أن يندم على فعلها ،والثالث :أن يعزم أن لايعود إليها أبداً،فإن فقد أحد الثلاثة لم تصح توبته ،و إن كانت المعصية تتعلق بآدمي فشروطها أربعة :هذه الثلاثة وأن يبرأ من حق صاحبها، فإن كانت مالًا أو نحوه ردّه إليه وإن كانت حدّ قذف ونحوه مكّنه منه أو طلب عفوه و إن كانت غيبة استحلّه منها .
(رياض الصالحين : ۳۳ ،باب التوبه)

ژوند کې څومره د کفر او شرک ګناهونه شوي دي، یا الله ! تاته معلوم دي ما ته معلوم نه دي د هغو ټوله زه توبه کوم او اوس به ان شاء الله ګناه ته نه ورنږدي کیږم؛ نو آیا دا توبه صحیح ده؟ بینواتوجروا.

المستفتي: محمد پرویز، چارسده... ۳۱/ شوال ۱۴۱۱هـ

**الجواب:** د رښتوني زړه دا توبه کافي شافي ده، قال الله تعالی: تُوبُوا إِلَى اللَّهِ تَوْبَةً نَّصُوحًا(۱) والله أعلم بالصواب.

## آیا په توبې سره حقوق العباد معاف کېدلی شي؟

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې په توبې سره حقوق العباد معاف کېدلی شي او که نه؟ بینواتوجروا.

المستفتي: ندیم، پشاور یونیورسټي...۷۸ع/ ۱۱/ ۲۳

**الجواب:** حقوق العباد په توبې سره نه معاف کیږي، ځکه چې دا په ابراء باندې موقوف دي (۲)

---

۱) (سورة التحریم :ایت ۸)

وفي المشكوة :قال قال رسول الله ﷺ : یا أیها الناس توبوا إلی الله فإني أتوب إلیه في الیوم مائة مرة.

(مشكوة المصابیح :۲۰۳،باب الاستغفار والتوبة،الفصل الأول)

۲) في المرقاة :وزاد النووي وإن كان الذنب متعلقًا ببني آدم فلها شرط آخروهو ردّ المظلمة إلی صاحبها أو تحصیل البراءة منهم.

(مرقاة المفاتیح ۱۲۲ : ۵، كتاب الدعوات ،باب الاستغفار والتوبة)

و قال العلامة النووي رحمه الله تعالی :وإن كانت المعصیة تتعلق بآدمي فشروطها أربعة، هذه الثلاثة، وأن یبرأ من حق صاحبها، فإن كانت حد قذف ونحوه مكنه منه أوطلب عفوه وإن كانت غیبة استحله منها. (ریاض الصالحین ۳۳، باب التوبة)

## ارباب الحقوق ته دحقوقو په رسولو کې په تفصیل باندې خبرول ضروري نه دي

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې کوم کس د قصده یا غیر قصده د چا روپۍ یا کوم بل شی په ناروا طریقه پورته کړې یا یې په دوکه روپۍ اخیستي وي؛ نو اوس که چیرته الله تعالی هغه ته د توبې توفیق ورکړي او هغه له همدې ناوړه حرکتونو څخه توبه وکړي، له چا څخه یې چې روپۍ اخیستي دي، هغه ته بیخي معلومې نه دي چې د فلاني کس په ذمه زما څو روپۍ دي، اوس هغه ګنهګار هغو خلکو ته د روپیو واپس بیرته ورکول غواړي لیکن دی غواړي چې په داسې طریقه روپۍ ورکړي چې حقوق العباد هم ساقط شي او په جرم باندې هم اقرار ته ضرورت پیښ نه شي، ځکه چې هغه په عزتمندو کې شمار شوی دی، نو آیا هغه خلکو ته داسې روپۍ واپس کولی شي چې هغو ته تفصیل هم بیان نه کړي او په کومې حیلې بهانې سره هغه روپۍ هم ورکړي، آیا په همدې ډول حقوق العباد آداء کېدلی شي؟ بینوا توجروا.

المستفتي: محمد رفیق عفي عنه ... ۲۵، رجب المرجب ۱۳۸۷ هـ

**الجواب:** ارباب الحقوق ته د حقوقو رسول ضروري دي، [۱] دا ضروري نه ده چې ته هغوی په تفصیل باندې خبر کړي، صرف د زړه اراده کافي ده. [۲] **وهو الموفق**

---

۱) قال العلامة النووي رحمه الله تعالى: إن لها (التوبة) ثلاثة أركان، الإقلاع والندم على فعل تلك المعصية والعزم على أن لايعود إليها أبداً، فإن كانت المعصية لحق آدمي فلها ركن رابع وهو التحليل من صاحب ذلك الحق ... واتفقوا على أن التوبة من جميع المعاصي واجبة. (حاشية النووي على صحيح المسلم ۲:۳۵۴، كتاب التوبة)

۲) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: وهل يكفيه أن يقول اغتبتك فاجعلني في حل أم لا بد أن يبين ما اغتاب؟ قال بعض علمائنا في الغيبة إلا بعلمه بها بل يستغفر الله له إن علم أن إعلامه يثير فتنة، ويدل عليه أن الإبراء عن الحقوق المجهولة جائز عندنا. (رد المحتار ۵:۲۹۱، كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: والأصل ... ... (باقي حاشیه په بل مخ)

## په کلک قصد د توبې وروسته په ګناه سره توبې ته نقصان نه رسیږي

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې يو مسلمان د جرګې پر وړاندې په قرآن حکيم باندې قسم وکړ چې له خپل دښمن يا کوم شي يا له خپل جرم څخه د ليرې اوسيدو په قسم يې وعده وکړه، که چيرته دغه مسلمان خپله وعده ماته کړي او د قرآن کريم خيال ونه ساتي. له کوم ناوړه کار څخه د ليرې اوسيدو وعده يې چې کړې وه له هغه ليرې ونه اوسي نو:

(۱) د اسلامي قانون مطابق د داسې کس څه سزا کېدلی شي؟

(۲) دی مسلمان پاتې شو او که له ايمان څخه خلاص شو؟ کفاره به ورکوي او که نه؟

(۳) دده نکاح، د ښځې حق وغيره وغيره په خپل حال دي او که نه؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي: سميع الرحمن، مډل سکول، ګمبټ مردان

**الجواب:** کله چې د توبې کولو په وخت د ګناه پرېښودلو کلک قصد وي؛ نو د ګناه په کولو سره توبې ته کوم نقصان نه رسيږي (۱) **وهوالموفق.**

## د شرعي قانون او سزا نه موندلو له وجې صرف په توبه باندې اکتفاء کول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې يو کس که چيرته په تېره شوې زمانه کې د لواطت او وغيره ارتکاب کړی وي، اوس په هغو

---

(د حاشيې پاتې برخه)..... أن المستحق بجهة إذا وصل إلى المستحق بجهة أخرى اعتبر واصلًا بجهة مستحقة إن وصل إليه من المستحق عليه.

(الدرالمختار ۴: ۱۴۱، باب البيع الفاسد)

۱) قال العلامة النووي رحمه الله تعالى: وإذا تاب توبة صحيحة بشروطها ثم عاود ذلك الذنب كتب عليه ذلك الذنب الثاني ولم تبطل توبته، هذا مذهب أهل السنة في المسئلتين.

(حاشية النووي على صحيح المسلم ۲: ۳۵۴، كتاب التوبة)

باندې پښېمانه وي او د سزا لپاره هم د خان د وړاندې کولو څخه دريغ نه کوي. د هغه لپاره څه حکم دی؟ **بينواتوجروا**

المستفتي: نديم، پشاور يونيورسټي ۱۹۷۸ع/ ۱۱/ ۲۲

**الجواب:** چونکې په پاکستان کې د شرعي سزا د قانون اجراء نشته. لهذا صرف په توبه کولو باندې اکتفاء پکار ده (۱) **وهوالموفق**

**له شرعي سزا څخه د خان ساتونکي کس توبه له شرطونو سره صحيح ده:**

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې کوم کس کومه ګناه په ښکاره يا پټه کړې وي او هغه د شرعي سزا مستحق شو، مګر خپل خان يې د سزا څخه ساتلی وي، نو د داسې کس توبه صحيح ده او که نه؟ **بينوا توجروا**

المستفتي: پروين شاه، هانګ کانګ ۷/ صفر ۱۴۰۷هه

**الجواب:** د هغه توبه له حقوق الله (زنا، شراب او وغيره) څخه صحيح ده. د حقوق العباد (قتل، قرض او وغيره) څخه توبه صحيح ده. **من وجهٍ لا من كل الوجوه.** (۲) **وهوالموفق**

---

۱) في شرح الفقه الأكبر: ثمّ كون التوبة سببًا لغفران الذنوب وعدم المؤاخذة بها مما لاخلاف فيه بين الأمة ،وليس شيئا يكون سببًا لغفران جميع الذنوب إلا التوبة كما قال الله تعالىٰ :قل ياعبادي الذين أسرفوا على أنفسهم لا تقنطوا من رحمة الله إن الله يغفر الذنوب جميعا. (شرح الفقه الأكبر ۱۵۷، بحث التوبة)

۲) و في المرقاة :و التوبة في الشرع ترک الذنب لقبحه والندم على ما فرط منه والعزيمة على ترک المعاودة و تدارک ما أمكنه من الأعمال بالإعادة ...وزاد النووي إن كان الذنب متعلقًا ببني آدم فلها شرط آخر وهو ردّ المظلمة إلى صاحبها أو تحصيل البراء ة منه. (مرقاة المفاتيح ۵: ۱۲۲، كتاب الدعوات، باب الاستغفار و التوبة)

## د لمانځه په پرېښودلو او د ګناهونو په کولو سره انسان نه کافر کيږي

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کراموددې مسئلې په باره کې چې دلته يو مولوي صاحب ويلي که چيرته چا يو لمونځ قضاء کړ نو هغه د کفر په دائره کې داخليږي او د يوه لمانځه قضاء کوونکی هم کافر دی، د مولانا صاحب په دې فتوی سره دلته په خلکو کې ډيره نافراري خپره شوې ده او مولانا صاحب د خپلې فتوی د تصديق لپاره لاندې حديثونه وړاندې کړي دي **بين العبد وبين الكفر ترك الصلوة، مشكوة، ۱۱۴: العهد الذی بيننا وبينهم فمن تركها فقد كفر، ص ۵۸ بحواله مسلم، أوصانی خليلی ﷺ أن لاتشرك بالله شيئًا وان قطعت وحرقت ولاتترك الصلوة مكتوبة متعمدًا فمن تركها متعمدًا فقد برئت منه الذمة، مشكوة: ۵۷ بحواله أحمد والترمذي والنسائی، كتاب الصلوة، الفصل الثالث.** مذکور مولانا صاحب د پورتنيو احاديثو په رڼا کې د يوه لمانځه قضاء کوونکي ته هم کافر ويلي دي، او يو بل مولوي صاحب دی کوم چې د اکوړه خټک سند لرونکی دی، هغه داسې کس محض ګنهګار بللی دی، لهذا د مکمل بحث او خپل تصديق لپاره له تاسو څخه غوښتنه ده چې تاسو موږ ته احاديث وليکئ چې د يو يا زياتو لمونځونو قضاء کوونکی کافر دی که ګنهګار دی؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي حبيب الله، واړي....۲۹/ مارچ ۱۹۷۸ع

**الجواب:** د قرآن (۱) او احاديثو (۲) څخه د رڼا ورځې په شان دا حقيقت واضح دی

---

۱) قال الله تبارک وتعالى: إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَاءُ. (سورة النساء آيت ۱۱۶)

۲) وفي المشكوة: عن صفوان بن سليم أنه قيل لرسول الله ﷺ أ يكون المؤمن جبانًا؟ قال: نعم، فقيل له أ يكون المؤمن بخيلا؟ قال: نعم.

(مشكوة المصابيح ۴۱۴، باب حفظ اللسان و الغيبة...(پاتې حاشيه په بل مخ)

چې د لمانځه پرېښودلو او نورو ګناهونو په ترسره کولو سره مسلمان نه کافر کېږي، همدارنګه د ایمان څخه نه خارجیږي [1] او مذکور احادیث په تغلیظ یا استحلال باندې محمول دي، [2] لهذا د لمانځه نه کوونکي ته کافر ویونکی یا جاهل دی یا خارجي دی. **وهوالموفق.**

## د علماوو او عوامو پر وړاندې له توبه ویستونکي سره تعلقات ساتل

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د یو کس (محمد انار) په خلاف له دیوبند څخه فتویٰ راغلې ده، د کومې له مخې چې له ده سره خوراک، څښاک، ناسته او وغیره منع ګڼل شوي دي، هغه د څلوېښتو کسانو پر وړاندې واورول شوه، بیا مسمی مذکور یو شمیر علماء او عوام په یوه ځای کې سره راټول کړل د مجلس پر وړاندې یې توبه وویستل او د الله تعالی څخه یې معافي وغوښتل، د مجلس شریکان د شاهدانو په حیث شاهدي

---

(د حاشیې باتې برخه)..... والشتم، الفصل الثالث)

و في صحيح المسلم: عن معرور بن سويد قال سمعت أبا ذرّ يحدث عن النبي ﷺ أنه قال: أتاني جبريل عليه السلام فبشرني أنه من مات من أمتك لايشرك بالله شيئاً دخل الجنة، قلت: وإن زنى وإن سرق قال: وإن زنى وإن سرق.

(صحيح المسلم ١: ٦٦، كتاب الإيمان، باب الدليل على أن مات لا يشرك بالله شيئاً)

١) وفي شرح العقائد: و الكبيرة لاتخرج العبد المؤمن من الإيمان ولا تدخله في الكفر... إن مرتكب الكبيرة فاسق. (شرح العقائد ٨٢)

٢) قال العلامة الملا علي قاري رحمه الله تعالى: قُلْتُ: وَنِعْمَ الرَّأْيُ رَأْيُ أَبِي حَنِيفَةَ، إِذِ الْأَقْوَالُ بَاقِيهَا ضَعِيفَةٌ، ثُمَّ مِنَ التَّأْوِيلَاتِ أَنْ يَكُونَ مُسْتَحِلًّا لِتَرْكِهَا، أَوْ تَرْكُهَا يُؤَدِّي إِلَى الْكُفْرِ، فَإِنَّ الْمَعْصِيَةَ بَرِيدُ الْكُفْرِ، أَوْ يُخْشَى عَلَى تَارِكِهَا أَنْ يَمُوتَ كَافِرًا، أَوْ فِعْلُهُ شَابَهَ فِعْلَ الْكَافِرِ.

(مرقاة المفاتيح ٢: ١١٤، كتاب الصلوة، الفصل الأول)

ورکړه، بیا همدغه فتوی له مخکنی فتوی سره بیا دیوبند ته ولیږل شوه او تاسو ته هم لیږل شوې ده، آیا د ده توبه قبوله ده؟ او د هغه سره تعلقات ساتل څنګه دي؟ بینواتوجروا.

المستفتي: حافظ عبد الستار، راولپنډی.... ۶۹ع/ ۹/۵

**الجواب:** د همدې کس (محمد انار) توبه منظوره ده، (۱) له هغه سره تعلقات ساتل روا دي، لیکن د هغه معامله نظر انداز کول نه دي پکار **وهوالموفق**

## د توبه نه کوونکي سره ترک موالات او د جومات څخه یې منع کول

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یو کس په قسم سره اقرار وکړ چې ما لواطت کړی و، هغه وخت زه نه پوهېدم، مفعول دوکه راکړه او راته یې وویل چې په دې کې هیڅ ګناه نشته، که چیرته کومه ګناه وي نو زه یې ذمه وار یم، ګنهګار د جمعې له لمانځه وروسته له ټولو ناوړه کارونو څخه په اخلاص توبه وویستل او خطیب صاحب ته یې د استغفار کلمې وویل. اوس خلک په جماعت سره په لمانځه کې دده په شرکت اعتراض کوي:

(۱) آیا په شریعت کې په رښتیا همدغه کس د توبې په کولو سره د لمانځه په صف کې شرکت نه شي کولی؟

(۲) کوم خلک یې چې په لمانځه کې له شرکت کولو منع کوي، ګنهګار دي او که نه؟

(۳) مفعول کوم چې اورده موده په همدې جهالت کې تیره کړې، د هغه څه حکم دی؟ مهرباني وکړئ په حنفي فقه کې مفتی به عبارتونه ولیکئ، مونږ ته اطمینان راکړئ؟ بینواتوجروا.

المستفتي: نامعلوم.... ۱/۶ اکتوبر ۶۹ع

---

۱) في حاشية صحيح البخاري: التوبة ... وهي في الشرع ترك الذنب لقبحه والندم على ما فرط منه والعزم على ترك المعاودة وتدارك ما أمكنه أن يتدارك من الأعمال بالإعادة وردّ المظلمات لذويها أو تحصيل البراءة منهم.

(حاشيه صحيح البخاري ۲:۹۳۳، كتاب الدعوات، باب التوبة)

**الجواب:** قال رسول الله ﷺ التائب من الذنب كمن لا ذنب له(١) وروی موقوفاً أيضا، وقال علیه السلام: ان الله يقبل توبة العبد ما لم يغرغر(٢) رواه الترمذي، والأولى رواه ابن ماجه، وفي حديث متفق عليه: ان العبد اذا اعترف ثم تاب تاب الله عليه(٣) د همدې روايتونو په بناء د همدغه كس توبه صحيح ده او د لمانځه له صف څخه د هغه وباسل د توبې نه كولو په وخت هم حرام وو او له توبې وروسته په طريقه اولى حرام دي، قال الله تعالى: وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن مَّنَعَ مَسَاجِدَ اللَّهِ أَن يُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُ(٤) وقال تعالى: أَرَأَيْتَ الَّذِي يَنْهَىٰ عَبْدًا إِذَا صَلَّىٰ(٥).

(٢) سخت گنهگار دي.

(٣) د دوارو لپاره توبه ضروري ده او په دوی کې چې کوم تائب نه شي د هغه سره ترک موالات ضروري دی، (٦) ليكن د لمانځه او جومات څخه منع كول او په جماعت كې له شركت څخه منع كول حرام قطعي دي فقط.

---

١) (سنن ابن ماجة ٣٢٣، باب ذكر التوبة)

٢) (سنن الترمذي ٢:٥٠٥، أبواب الدعوات، باب ماجاء في فضل التوبة والاستغفار)

٣) (مشكوة المصابيح ٢٠٣، باب الاستغفار والتوبة)

۴) (سورة البقرة: آيت نمبر ١١۴)

۵) (سورة العلق: آيت نمبر ٩،١٠)

٦) في المرقاة: قال الخطابي رخص للمسلم أن يغضب على أخيه ثلاث ليال لقلته ولايجوز فوق ذلك إلا إذا كان الهجران في حق من حقوق الله تعالى فيجوز فوق ذلك... فإن هجرة الأهواء والبدع واجبة على مر الأوقات مالم يظهر منه التوبة والرجوع إلى الحق.
(مرقاة المفاتيح ٩:٢٦٢، باب ما ينهى عنه من التهاجر والتقاطع واتباع العورات)

## د زنديق د توبې قبلېدو حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د زنديقانو توبه په اختياري حالت کې قبليږي او که نه؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: عبدالواحد، نقشبندي پاره چنار ۱۴۰۰ھ/۶/۱۸

**الجواب:** د زنادقه ؤ توبه منظوره ده. البته که چيرته د پرېښودلو په وخت کې د زنادقه ؤ رجوع په تجربې سره ثابته وه نوقتل يې روا دی (شامي)[۱] **وهوالموفق**

## د ګناه کبيره تعريف او له هغه توبه د هاروت ماروت پرښته کېدو او د دوی د ګناه کولو مسئله

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې ګناه کبيره څومره دي؟ کوم کوم دي؟ په توبې سره معاف کېدلی شي او که نه؟ د هغو سزا څومره ده؟ د هميشه لپاره دوزخ دی او که تر څه وخته پورې په دوزخ کې له اوسيدو وروسته بيرته جنت ته راتلل دي؟ همدارنګه هاروت ماروت چې کومې پرښتې وې هغه د کوم مقصد لپاره دنيا ته راغلي وې، دوی په رښتيا بابل ښار ته نږدې په يوه کوهي (څاه) کې په عذاب کې مبتلا شوي دي. د قاتل په باره کې زياتره خلکو دا فتوی ورکړې ده آيا دوی به د تل لپاره په دوزخ کې وي. دا مسئله صحيح ده او که نه؟ چونکه هميشه په دوزخ کې مشرک اوسيږي نو د

---

(۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وكذا الكافر بسبب الزندقة لاتوبة له، وجعله في الفتح ظاهرالمذهب، لكن في حظرالخانية: الفتوى على أنه إذا أخذالساحر أو الزنديق المعروف الداعي قبل توبته ثم تاب لم تقبل توبته ويقتل ولو أخذ بعدها قبلت. (الدرالمختار ۳:۳۲۴، باب المرتد، قبيل مطلب في الفرق بين الزنديق والمنافق والدهري)

همدې قاتل په باره کې څه حکم دی؟ **بينواتوجروا**

المستفتي رضا خان، تيمرګره ۱۹۷۴ع ۳/۹.

**الجواب:** کبيره ګناه هغه ګناه ده په کومه کې چې حدود او قصاص واجب شي يا هغې باندې په اور سره وعيد وارد شوی وي يا د هغې له وجې کوم قوم هلاک شوی وي. (۱) پس سود، قتل او زنا کبيره ګناه ده او د ګناه کبيره مرتکب فاسق دی، کافر او مخلد في النار نه دی. بېشکه که چېرته يې ګناه حلاله ګڼلې وي: نو مخلد في النار ګرځي. (۲)

(۲) هاورت او ماروت د مشهور قول په بناء ملائکه دي په سحر او معجزه کې د

---

۱) قال العلامة الملا علي قاري رحمه الله تعالىٰ: الكبيرة هي السيئة العظيمة التي خطيئتها في نفسها كبيرة وعقوبة فاعلها عظيمة بالنسبة إلىٰ معصية ليست بكبيرة، وقيل الكبيرة ما أوعد عليه الشارع بخصوصه، وقيل ماعين له حد، وقيل النسبة إضافية فقد يكون الذنب كبيرة بالنسبة لما دونه صغيرة بالنسبة إلىٰ مافوقه.
(مرقاة المفاتيح ۱: ۱۲۰، باب الكبائر وعلامات النفاق، الفصل الأول)

وفي التعليق الصبيح: فروى عن ابن عباس رضي الله تعالىٰ عنه أنه قال الكبائر كل ذنب حتمه الله تعالىٰ بنار أوغضب أولعنة أوعذاب ونحو هذا عن الحسن البصري رحمه الله تعالىٰ وقال آخرون ما أوعدالله تعالىٰ عليه بنار أو حد في الدنيا.
(التعليق الصبيح ۱: ۱۰۷، باب الكبائر وعلامات النفاق، الفصل الأول)

۲) وفي شرح الفقه الأكبر: ولانكفر مسلماً بذنب من الذنوب وإن كانت كبيرة إذالم يستحلها أى لكن إذالم يكن يعتقد حلها..... ويجوز أن يكون أى الشخص مؤمنا أى بتصديقه وإقراره فاسقاً أى بعصيانه وإصراره.
(شرح الفقه الأكبر ۷۴، الكبيرة تخرج المؤمن عن الإيمان)

فرق بیانولو لپاره نازلي شوي وې، (١) څکه چې په ډیرو خلکو باندې په سحر او معجزه کې فرق پټ وو. پاتې شوه د هغو ګناه کول یا د هغوی په بابل کوهي کې معذب کیدل نو د زیاتره مفسرینو او محققینو په نزد غیر مصدقه امور دي (٢) **وهوالموفق**

---

١) قال العلامة البيضاوي رحمه الله تعالى: (وَمَا أُنزِلَ عَلَى الْمَلَكَيْنِ)....وهماملكان أنزلا لتعليم السحر ابتلاءً من الله للناس وتميزاً بينه وبين المعجزة....وقيل رجلان سُميا ملكين.

(التفسير البيضاوي ١:١٤٢،سورة البقرة،آيت ١٠٢)

٢) في التفسير المظهري :ذكرالبغوي عن ابن عباس والكلبي وقتادة وغيرهم في شأن هاروت وماروت قصة.....وهذه القصة من أخبارالآحاد بل من الروايات الضعيفة الشاذة ولا دلالة عليها في القرآن بشئ،وفي بعض روايات هذه القصة ماياباه النقل والعقل....وأئمة النقل لم يصححوا هذه القصة ولا أثبتوا روايتها عن علىّ ولاعن ابن عباس رضي الله تعالى عنهما.....قال الصالحي ذكروا في تأويل الآية إن الله تعالى كان قد امتحن الناس بالملكين فإن السحر كان قد ظهر وظهرقول أهله،فأنزل الله تعالى ملكين يعلمان الناس حقيقة السحر ويوضحان أمره ليعلم الناس ذلك ويميزوا بينه المعجزات والكرامات.

(التفسيرالمظهري ١:١٠٩،آيت ١٠٢)

وقال الحافظ ابن كثير رحمه الله تعالى :وذهب كثير من السلف إلى أنهما كاناملكين من السماء،وأنهما أنزلا إلى الأرض،فكان من أمرهما ما كان....وقصها خلق من المفسرين من المتقدمين والمتأخرين،وحاصلها راجع في تفصليها إلى أخبار بني إسرائيل، اذ ليس فيها حديث مرفوع صحيح متصل الإسناد إلى الصادق والمصدوق المعصوم الذي لاينطق عن الهوى.

(تفسيرالقرآن العظيم لابن كثير رحمه الله تعالى ١:١٦٩،سورة البقرة،آيت ١٠٢)

## د خلقي، پرچمي او دهريانو توبه مقبوله ده او که نه؟

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د خلقي او پرچمي کومې چې په افغانستان کې دهري ډلې دي که چيرته توبه وکړي نو د هغوی توبه مقبوله ده او که نه؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي محمد سليم، متعلم حقانيه ......۱۹۸۵ع/۱۹/۶

**الجواب:** د هغوی توبه قبوله ده. البته په خينو وختونو کې بې وژل روا دي.(۱) **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة القرطبي رحمه الله تعالى :قوله تعالى (الامن تاب وامن وعمل صالحا). لاخلاف بين العلماء أنّ الاستثناء عامل في الكافر والزاني.
(تفسير القرطبي ۱۳: ۷۶،سورة الفرقان آيت ۷۰)

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى :وكذاالكافر بسبب الزندقة لاتوبة له، وجعله في الفتح ظاهرالمذهب لكن في حظرالفتوى على أنه إذا أخذ الساحر أو الزنديق المعروف الداعي قبل توبته ثم تاب لم تقبل توبته ويقتل،ولو أخذ بعدها قبلت .... والإباحي كالزنديق.(الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالهى :(قوله وكذاالكافر بسبب الزندقة) قال العلامة ابن كمال باشا في رسالته :الزنديق في لسان العرب يطلق على من ينفي الباري تعالى، وعلى من يثبت الشريک،وعلى من ينكر حكمته....(قوله لاتوبة له) .... والمراد بعدم التوبة أنها لاتقبل منه نفي القتل عنه كما مرّ في السابّ،ولذا نقل البيرى عن الشمني بعد نقله اختلاف الرواية في القبول وعدمه أن الخلاف في حق الدنيا، أما فيمابينه وبين الله تعالى فتقبل توبته بلاخلاف.
(ردالمحتار ۴: ۳۲،باب المرتد،مطلب في الفرق بين الزنديق والمنافق والدهري والملحد)

# باب الأمر بالمعروف والنهی عن المنكر

## دعلماوو او عوامو لپاره د امربالمعروف او نهي عن المنكر شرعي حيثيت

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې (۱) د امر بالمعروف او نهي عن المنكر شرعي حيثيت څه دی؟ آيا امر بالمعروف او نهي عن المنكر په هر مسلمان باندې فرض عين دی. يا دا چې د څينو په اداء كولو سره د ټولو ذمه ساقطيږي؟ همدارنګه د مروجه تبليغ څه حكم دی؟ بينوا توجروا

المستفتي: كليم الله، چارسده

**الجواب:** امر بالمعروف او نهي عن المنكر په هر مسلم فرض نه دی، دا صرف د علماوو كار دی او په هغوی باندې هم فرض عين نه دی، بلكې فرض كفايه دی. (۱) د جهاد بالسيف په شان **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة النووي رحمه الله تعالى: إن الأمربالمعروف والنهي عن المنكر فرض كفاية إذا قام به بعض الناس سقط الحرج عن الباقين وإذا تركه الجميع أثم كل من تمكن منه بلا عذر ولا خوف ... ثم إنه إنما يأمر و ينهى من كان عالمًا بما يأمربه وينهى عنه وذلک يختلف باختلاف الشيئ، فإن كان من الواجبات الظاهرة والمحرمات المشهورة كالصلاة والصيام والزنا والخمر ونحوها، فكل المسلمين علماء بها وإن كان من دقائق الأفعال والأقوال ومما يتعلق بالاجتهاد لم يكن للعوام مدخل فيه ولا لهم إنكاره بل ذلک للعلماء.

(حاشية النووي على صحيح المسلم ۱:۵۱، كتاب الإيمان، باب بيان كون النهي عن المنكر من الإيمان)

(ومثله في مرقاة المفاتيح ۹:۳۲۹، باب الأمر بالمعروف)

## امر بالمعروف او نهي عن المنكر د علم او قدرت سره فرض كفايه دی

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې زمونږ په وطن وزيرستان كې تقريبًا د ١٠ كالو راهيسې د تبليغ په نوم كار روان دی، عوام او خواص خو ټول په دې پوهيږي چې دا د انبياء كرامو عَلَيْهِمُ السَّلَامُ كار دی. ليكن مونږ نه پوهيږو چې دغه كار د هر وګړي (فرد) لپاره څه حكم لري. ځكه چې زمونږ يو شمير علماء كرام دا وايي چې تبليغ مستحب دی. يو شمير وايي چې سنت دی، او يو شمير فرض عين ورته وايي، نو ددې متعلق وضاحت وكړئ؟ بينوا توجروا.

المستفتي: وزير ميډيكل سټور، وزيرستان ١٩٧٢ع ٥/٥

**الجواب:** واضحه دې وي چې تبليغ يعني امر بالمعروف او نهي عن المنكر فرض كفايه دی، د علم او قدرت په شرط. قَالَ اللهُ تَعَالٰى: وَلْتَكُنْ مِّنْكُمْ أُمَّةٌ، الآيَة. (١) او په محتسب باندې فرض عين دی، يعني حكومت چې څوک د همدغه كار لپاره مقرر كړي وي، يا په خپله خوښه په دې كار كې مشغول شوی وي او په هر فرد باندې فرض عين نه دی، ليكن سره له دې د هغه فاعل ته د فرضو اداء كوونكي ويل شوی دی، والتفصيل في التفسير الأحمدي ٢٠٦ تا ٢١٠ (٢)..........

---

١) وفي التفسير المظهري: (وَلْتَكُن مِنكُم) من للتبعيض لأن الأمر بالمعروف والنهي عن المنكر من فروض الكفاية ولأنه لايصلح له كل أحد حيث يشترط له شروط من العلم والتمكن على الاحتساب وطلب من الجميع خاطب الجميع وطلب فعل البعض ليدل على أنه واجب على الكل حتى لوترك الكل أثموا جميعا ولكن يسقط بفعل بعضهم وهذا شأن فروض الكفاية.

(التفسير المظهري: ٢:١١٤، سورة آل عمران، ايت نمبر ١٠٤)

٢) قال الملا أحمد جيون رحمه الله تعالى: واضحه دې وي چې د علماوو په مينځ كې دا خبره متفق عليه ده چې امر بالمعروف او نهى عن المنكر فرض كفايه دی، كه په مجلس كې يو....... (د حاشيې پاتې برخه په بل مخ)

وفي الهندية ۵ : ۳۸۹(۱) لیکن واضحه دې وي چې مروجه تبلیغ کوم ته چې تبلیغي جماعت ویل کیږي یو اصلاحي پروګرام دی، د ده حکم له بیعت پیرۍ او مریدی څخه جلا نه دی **وهوالموفق**

## د ګنهګار کس د امر بالمعروف او نهی عن المنکر حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یو کس نورو ته نصیحت کوي، مګر په خپله دروغ هم وایي، غیبت هم کوي او یو بل سره جنګوي، نو د داسې کس څه حکم دی؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي مشاهد اختر، نوشهره ۶/ذی قعده ۱۴۱۱هـ

**الجواب:** دغه کس ته د امر بالمعروف او نهي عن المنکر ثواب ورکول کیږي او

---

(د حاشیې پاتې برخه)..... کس امر بالمعروف یا نهی عن المنکر وکړي نو د ټولو له طرفه کافي ده..... علماء کرامو ددې لپاره دا لاندې شرطونه ایښودلي دي: (۱) په امر بالمعروف او نهي عن المنکر باندې قادربدل (۲) په امر بالمعروف او نهي عن المنکر کې د طاقت استعمال د حکامو کار دی، د ژبې استعمال د علماوو کار دی..... په محتسب باندې واجب دي چې کوم ګناهونه خپله کوي د هغې نه هم خلق منع کړي، ځکه چې په محتسب باندې دوه شیان واجب دي، ګناه پرېښودل او د ګناه څخه انکار (یعنې نورخلق د ګناه نه منع کول) لهذا د یو شي په پرېښودلو سره د بل شي پرېښودل نه لازمیږي...... د نهي عن المنکر یو شرط دا هم دی چې د منع کونکي په علم کې دا خبره وي چې د کوم شي نه هغه نورخلق منع کوي هغه شی حرام دی.
(التفسیر الأحمدي اردو: ۲۳۱ تا ۲۳۳ سورة ال عمران)

۱) وفي الهندية: ولوعلم أنهم لايقبلون منه ولايخاف منه ضرباً ولا شتماً فهوبالخيار والأمر أفضل كذا في المحيط...ويقال الأمر بالمعروف باليد على الأمراء وباللسان على العلماء وبالقلب لعوام الناس...الأمر بالمعروف يحتاج إلى خمسة أشياء،أولها العلم لأن الجاهل لا يحسن الأمر بالمعروف.
(فتاوى هندية ۵:۳۵۳، كتاب الكراهية،الباب السابع عشر في الغناء)

د همدې ګناهونو له وجې به هغه ته عذاب ور کول کیږي (۱) وهوالموفق

## د امر بالمعروف او نهي عن المنكر كوونكي كس حكم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې د امر بالمعروف او نهی عن المنكر كوونكي كس څه حكم دی؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي مولانا غلام فاروق، متعلم حقانيه ...... ۶/ رجب ۱۴۰۳هـ

**الجواب:** دا بذات خود نيک کار دی، **لقوله تعالى: وَلْتَكُن مِّنكُمْ أُمَّةٌ يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ** (۲) **وهوالموفق.**

---

۱) قال العلامة النووي رحمه الله تعالى: قال العلماء لايشترط في الآمروالناهي أن يكون كامل الحال ممتثلاً ما يأمر به مجتنباً ما ينهي عنه بل عليه الأمر وإن كان مخلا بما يأمر به والنهي وإن كان متلبساً بما ينهي عنه فإنه يجب عليه شيئان: أن يأمر نفسه وينهاه ويأمر غيره وينهاه، فإذا أخل بأحدهما كيف يباح له الإخلال بالآخر.

(حاشية النووي على صحيح المسلم ۱:۵۱، كتاب الإيمان، باب بيان كون النهي عن المنكر من الإيمان)

وفي الهندية: رجل رأى منكراً وهذا الرأىُ ممن يرتكب هذا المنكر يلزمه أن ينهي عنه لأن الواجب عليه ترك المنكر والنهي عنه فبترك أحدهما لا يسقط الآخر.

(فتاوى هندية ۵:۳۵۳، كتاب الكراهية، الباب السابع عشر في الغناء)

۲) (سورة آل عمران: آيت نمبر ۱۰۴)

وعن حذيفة رضي الله تعالى عنه أن النبي ﷺ قال: والذى نفسي بيده لتأمرن بالمعروف ولتنهون عن المنكر، أو ليوشكن الله أن يبعث...... (د حاشيې پاتې برخه په بل مخ)

## د امر بالمعروف او نهي عن المنكر كسانو ته د موذي كسانو د وژلو حكم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې هغه خلك كوم چې امر بالمعروف او نهى عن المنكر كوي، آيا دوى موذي (ضرر رسوونكي) كسان وژلى شي؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: مولانا غلام فاروق، متعلم حقانيه ٦ رجب ١٤٠٣هـ

**الجواب:** صرف حكام (واكمنان) هغوى ته سزا وركولى شي (١)، **والله أعلم**

## كوم خلك چې په (لِمَ تَقُوْلُوْنَ مَالَا تَفْعَلُوْنَ) باندې عمل كوي د هغوى څه حكم دى؟

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې كوم خلك د (لِمَ تَقُوْلُوْنَ مَالَا تَفْعَلُوْنَ) په شان عمل كوي، د هغوى څه حكم دى؟ **بينواتوجروا**

المستفتي: ګل مست خان، مصري بانده. اكوړه خټك ٢ شعبان

**الجواب:** تاسو د پښتنو په متل باندې عمل وكړئ (ملا چې څه وايي هغه كوه. او چې څه كوي هغه مه كوه): **وهوالموفق.**

## د نصحيت نه منونكي كس څخه چوپ اوسېدل او له هغه سره د مدارات وغيره حكم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې يو انسان هميشه په نيكه ټولنه (معاشره) كې اوسېږي ليكن كه چيرته كوم وخت دغه انسان په كومه داسې ټولنه (معاشره) كې اوسېدلو ته مجبور شي په كومه كې

---

(دحاشيې پاتې برخه)...عليكم عذابًا من عنده، ثم لتدعنّه ولايستجاب لكم،رواه الترمذي. (مشكوة المصابيح ٤٣٦، كتاب الآداب،باب الأمر بالمعروف)

(١) وفي رد المحتار: فيشترط الإمام لإستيفاء الحدود.
(ردالمحتار ٥:٣٩٠، كتاب الجنايات، قبيل باب القود في ما دون النفس)

چې دی څو بې لمانځو ته د نصیحت په کولو سره د لمانځه طرفته د راوستلو کوشش وکړي مګر نصیحت اثر ونه کړي، تردې چې په خپله هم له نصیحت کولو کولو ستومانه شي او بې لمانځه هم زیات ناراضه کېدو ته نږدې شي، نصیحت کوونکی همدا معاشره (ټولنه) پرېښودلی نه شي، ځکه چې د ده د ژوند زیاتره ضرورتونه له همدې ټولنې سره تړلي دي، اوس ووایئ چې په داسې صورت کې نصیحت کوونکی کومه طریقه غوره کړي ترڅو دین او ژوند دواړه قائم پاتې شي؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي: ستاسو خادم عبد المجيد، ایس وی معلم... ۱۹۷۳ع / ۱/۱

**الجواب:** تاسو د قدر وړ ته وعلیکم السلام! واضحه دې وي چې کله په تجربې سره ثابته شي چې یو کس یا قوم نصیحت نه قبلوي نو له دوی څخه خاموش (چوپ) پاتې کېدل د رخصت په درجه کې روا دي، په دې کې هیڅ ګناه نشته. **قال الله تعالى: فَذَكِّرْ إِن نَّفَعَتِ الذِّكْرَىٰ، الآية(١) وروى في جامع البيان: عن علي رضي الله عنه ترك التذكير بمثله، وفي الهندية ۵:۲۸۸، ولو علم أنهم لايقبلون منه ولايخاف منهم ضرباً ولاشتماً فهو بالخيار، والأمر أفضل كذا في المحيط(٢)** باقي له فاسقانو سره ضروري معاملات (بیع شراء اجاره او وغیره) مدارات (ظاهري خوش اخلاقي) د محکمي تفصیل موافق روا دي (٣) او کله چې ستا په خپل نفس باندې د فسق او فجور خطر نه وي؛ نو په همداسې ماحول کې اوسېدل موجب د ثواب دی **فقط والسلام**

---

١) (سورة الأعلى: ایت نمبر ٩)

٢) (فتاوى هندية ۵:۳۵۳، كتاب الكراهية، الباب السابع عشر في الغناء)

٣) وفي الهندية: لا بأس بأن يصل الرجل المسلم والمشرك قريبا كان أو بعيدا، محاربًا كان أو ذميا، وأراد بالمحارب المستأمن... لا بأس بأن يكون بين المسلم والذمي معاملة إذا كان ممالابدمنه كذا في السراجية... (دحاشيې پاتې برخه په بل مخ)

## د ګمراهی د اډو بندول په دولت باندې فرض دي

**سوال:** څه فرمايي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د وي سي آر او قمار بازی په ښکاره د اډو بندول که چیرته د یو چا په وس ،طاقت، کې نه وي نو آیا په کومه بله طریقه د هغو تباه کول روا دي او که نه؟ بينواتوجروا.

المستفتي: نامعلوم... ۵ رمضان ۱۴۱۰هه

**الجواب:** د ګمراهی د اډو بندول په دولت باندې فرض دي، (۱) عوام د دولت څخه غوښتنه کولی شي، محض جلسه او جلوس ناکافي دی **وهوالموفق**

---

(د حاشيې پاتې برخه)....ولا بأس بعيادة اليهودي والنصراني،وفي المجوسي إختلاف كذا في التهذيب،ويجوز عيادة الذمي كذا في التبيين.

(فتاوى هندية ۵:۲۴۷، كتاب الكراهية، الباب الرابع عشر في أهل الذمة)

۱) عن أبي سعيد الخدری رضي الله تعالى عنه عن رسول الله ﷺ قال: من رأى منكم منكراً فليغيره بيده، فإن لم يستطع فبلسانه، فإن لم يستطع فبقلبه،وذلک أضعف الإيمان.

وفي المرقاة: وقد قال بعض علماء نا:الأمر الأول للأمراء ،والثاني للعلماء ، والثالث لعامة المؤمنين.

(مرقاة المفاتيح ۹:۳۲۸، باب الأمر بالمعروف)

وقال الدكتور وهبة الزحيلى رحمه الله تعالى:حدّد الفقهاء واجبات الإمام أو وظائفه بعشرة أمورأساسية...الوظائف الدينيه وهي أربعة:أولاً: حفظ الدين: المحافظة على أحكامه وحماية حدوده وعقاب مخالفيه.

## د تبلیغیانو د دعوت نه آوریدونکي او دهغوی سره د نه کیناستونکي حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې نن سبا د تبلیغي جماعت خلک د پاکستان کونج کونج ته رسیدلي دي، دا خلک په جوماتو، بازارونو او کوڅو کې خلکو ته دعوتونه ورکوي، په ځانګړې ډول کله چې په جومات کې له لمانځه وروسته دا خلک عوام الناس ته د مسائلو د اوریدلو دعوت ورکوي نو خلک د کورونو طرفته روان شي، که چیرته څوک د لاس څخه ونیسي دعوت ورکړي او هغه یې بیا هم ونه مني او د جومات څخه ووځي نو د همدې خلکو لپاره په شریعت کې څه حکم دی؟ د نه کیناستو په صورت کې څومره ګنهګار کیږي؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي: نامعلوم

**الجواب:** که چیرته دعوت او بیان کله کله وي؛ نو د عواموِ لپاره یې نه اوریدل له دین او آخرت څخه بې پرواهي او بې غمي ده. (۱) **وهوالموفق**

---

(الفقه الإسلامي وأدلته ٨:٦١٨٥، المبحث الخامس :وظائف الإمام)

١) عن ابن مسعود رضي الله تعالى عنه قال : كان النبي ﷺ يتخولنا بالموعظة في الأيام كراهة السآمة علينا. (صحيح البخاري)

وفي الحاشية :قوله يتخولهم أى يتعهدهم ويراعي الأوقات في وعظهم ويتحري منها ما يكون مظنة القبول ولا يفعل كل يوم لئلا يسئاموا.

(صحيح البخاري ١:١٤، كتاب العلم، باب ما كان النبي ﷺ يتخولهم بالموعظة والعلم)

الله الله

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

قال الله تبارك وتعالیٰ:

وَعَلَى الثَّلَاثَةِ الَّذِينَ خُلِّفُوا حَتَّى إِذَا ضَاقَتْ عَلَيْهِمُ
الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ وَضَاقَتْ عَلَيْهِمْ أَنفُسُهُمْ وَظَنُّوا
أَن لَّا مَلْجَأَ مِنَ اللَّهِ إِلَّا إِلَيْهِ ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ لِيَتُوبُوا
إِنَّ اللَّهَ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ ﴿۱۱۸﴾

(سورة التوبة)

# باب ترك الموالات

## له فاسق سره د ترک موالات ثبوت

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې چونکه څو ورځې وړاندې تاسو ته د مردان څخه يوه فيصله راغلې وه. مسئله دا وه چې يو کس يوه ښځه خپل کور ته راوستلې وه، نو په دې سره د کلي خلکو د همدې کس پلار له جومات څخه منع کړی وو. نو تاسو فيصله داسې اورولې وه چې د همدغه کس له پلار سره لمونځ کيږي او د هغه مدعي کس سره هم، له دې پرته تاسو ويلي وو چې له دغه مدعي سره هيڅ ډول په غم او خوشحالي کې شرکت کول نه دي پکار، د شريعت له مخې د هغه څه حکم دی؟ **بينواتوجروا**

السمتفتی حکم خان. مردان. ۱۹۷۵ع ۱۳/۵

**الجواب:** واضحه دې وي چې ترک موالات (پريکون) په حديث شريف سره ثابت دی (رواه البخاري)(۱) وابن ماجه(۲) باقي زمونږ ذمه واري د مسئلې بيانول دي. که خلک عمل کوي او که يې نه کوي. **وهوالموفق**

---

۱) وفي صحيح البخاري: باب ما يجوز من الهجران لمن عصى، وقال كعب بن ملك حين تخلّف عن النبي ﷺ ونهى النبي ﷺ المسلمين عن كلامنا وذكر خمسين ليلة.
(صحيح البخاري ۲: ۸۹۷، كتاب الادب، باب ما يجوز من الهجران لمن عصى)

۲) وفي سنن ابن ماجة: عن عبد الله بن مغفل أنه كان جالسًا إلى جنبه ابن اخ له، فخذف فنهاه، وقال إنّ رسول الله ﷺ نهى عنها...قال فعاد ابن اخيه يخذف، فقال أحدثك أن رسول الله ﷺ نهى عنها عدتَ ثم تخذف لا أكلمك ابداً.
(سنن ابن ماجة ۳، باب تعظيم حديث رسول الله ﷺ والتغليظ على من عارضه)

## په معصيت کې له مرسته کوونکي سره پريکون او
## د هغه په جماعت سره له لمانځه ځخه منع کول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې يو کس نابالغه لور په شرعي نکاح ورکړه، انجلۍ د بلوغ وروسته انکار وکړو او د کوهاټ ډې، آئي سي دغه انجلۍ آزاده کړه، ليکن دا په زور وشوه. سړي طلاق نه دی ورکړی. يوه تانه دار د خپل زوی سره د هغې واده وکړو، اوس تانه دار د جمعې لمانځه لپاره زمونږ جومات ته راغلی دی، اوس سوال دا دی چې زمونږ په لمانځه کې نقصان پيدا کېدی شي او که نه؟ اوس که چيرته زمونږ جمعې ته نقصان وي؛ نو جواب راکړی ځکه چې ما له تاسو ځخه په دې باره کې پوښتنه کړې وه، تاسو ويلي وو چې د حاکم طلاق، طلاق نه دی، يعنې د شريعت مخالفت يې کړی دی او دا کار يې کړی دی؟ بينواتوجروا.

المستفتي: مولوي محبت خان، مندوري، کوهاټ.. ۱۹۶۹ع/۹/۵

**الجواب:** چونکه د واده شوي لور پلار په معصيت کې د مرستې له وجې فاسق دی، (۱) لهذا د هغه سره اعزازي تعلقات ختمول واجب دي، (۲) ليکن په جماعت

---

۱) قال الله تبارک وتعالی: وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ. (سورة المائدة، آيت ۲)

وفي صحيح المسلم: (عن جابر رضي الله تعالى عنه قال لعن رسول الله ﷺ آكل الربوا وموكله وكاتبه وشاهديه) وقال النووي: فيه تصريح بتحريم كتابة المبايعة بين المترأبيين والشهادة عليهما وفيه تحريم الإعانة على الباطل.

(صحيح المسلم ۲۸:۲ باب الربوا)

۲) وفي المرقاة: فإن هجرة أهل الأهواء والبدع واجبة على مرّ الأوقات ما لم يظهر منه التوبة والرجوع إلى الحق.

(مرقاة المفاتيح ۲۶۲:۶ باب ما ينهى عنه من التهاجر والتقاطع واتباع العورات)

سره له لمانځه څخه منع کول غیر مشروع کار دی. (۱) ځکه چې رسول الله ﷺ د تبوک د غزا څخه د تخلف له وجې له کومو صحابه کرامو رضي الله عنهم سره د ترک موالات حکم کړی وو هغوی په باقاعده ډول په جماعت سره په لمانځه کې شریک شوي وو. (۲) **وهوالموفق**

## د ترغیب او ترهیب لپاره د علماؤ د فاسقانو په پریکون باندې اتفاق کول

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د یوه کلي علماء کرامو اتفاق وکړ چې د هر کبیره مرتکب کوونکي د جنازې لمونځ به نه ادا کوي، دعوت به یې نه قبلوي، دغه کار د ترغیب او ترهیب لپاره د شریعت له مخې روا دی او که نه؟ بینوا توجروا.

المستفتي: گل قدم خان، وزیرستان... ۱۹/ رجب المرجب ۱۳۸۹هه

**الجواب:** د فاسقانو د دعوت په پرېښودو باندې اتفاق روا دی، **لورود النهي عن اجابة طعام الفاسقين، ذكره في المشكوة**(۳) همدارنګه اتفاق د دعوت په پرېښودو

---

۱) قال العلامة القرطبي رحمه الله تعالى: (وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ مَنَعَ مَسَاجِدَ اللَّهِ أَن يُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُ وَسَعَىٰ فِي خَرَابِهَا)...وقيل المراد من منع من كل مسجد إلى يوم القيمة، وهو الصحيح. (تفسير القرطبي ۲:۷۴ سورة البقرة: آيت ۱۱۴)

۲) وفي صحيح المسلم: أخبرني عبد الرحمن بن عبد الله بن كعب بن مالك أن عبد الله بن كعب وكان قائد كعب من بنيه حين عمى، قال سمعت كعب بن مالك يحدث حديثه حين تخلف عن رسول الله ﷺ في غزوة تبوك...واتي رسول الله ﷺ فاسلم عليه وهو في مجلسه بعد الصلوة، فأقول في نفسي، هل حرّك شفتيه برد السلام أم لا؟ ثم أصلى قريبا منه وأسارقه النظر فإذا اقبلت على صلاتي نظر إلىّ وإذا التفت نحوه اعرض عني، الحديث.
(صحيح المسلم ۲:۳۶۰ باب حديث توبه كعب بن مالك وصاحبيه)

۳) عن عمران بن حصين رضي الله تعالى عنه قال: نهى رسول الله ﷺ عن إجابة طعام الفاسقين. (مشكوة المصابيح ۲۷۹ كتاب النكاح، باب الوليمة) (دحاشيې باتې برخه په بل مخ)

باندې هم روا دی، لکونه أمراً غیر مطلوب شرعاً، البته د جنازې په لمانځه نه ادا کولو باندې اتفاق ناروا دی،لکونه مفروضاً ومطلوباً،قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: صلوا علی کل برٍّ وفاجرٍ (رواه أبوداؤد)() وهوالموفق

## نافرمانه ښځه، له بچیانو سره پریکون او په فاسقانو باندې د اصلاح په نیت د انفاق حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د زید سکنی زوی نافرمان او گستاخ دی. د هغه عمر ۳۵ کاله دی. په دیارلس کلنی کې یې له کور څخه تښتیدل شروع کړي وو. تردې وخته هغه ۲۳ خله تښتېدلی دی. د هغه د اصلاح په خاطر هغه ته واده وشو. له واده پنځه میاشتې وروسته یې زیورات واخیستل او وتښتیدلو او اوس دوه نیم کاله وروسته راغلو، هر ځل یې عهد او پیمان مات کړی او له کوره تښتیدلی دی. له دې پرته هغه د زید (یعنې پلار) په خلاف هم ناوړه کارونه کوي او بدنامه کړی یې دی. زید له همدې وجې د هغه سره د نه تعلق غوښتونکی دی ترڅو د هغه له شرارتونو څخه محفوظ شي، آیا د زید لپاره دا اقدام روا دی او که نه؟ همدارنگه د زید ښځې هم د هغه نافرمانې کړې ده، زید له هغې څخه هم د ځان څنگته کول غواړي، آیا دا اقدام صحیح دی او که نه؟ بینوا توجروا.

المستفتي شیخ تاج الدین لدهیانوی، کراچی...... ۱۸ ضعبان ۱۴۰۳هه

---

(د حاشیې باتې برخه)....وفي الهندية : لايجيب دعوة الفاسق المعلن ليعلم أنه غير راضٍ بفسقه. (فتاوى هندية ۵:۳۴۳ كتاب الكراهية، الباب الثاني عشر في الهدايا)

۱) عن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ...الصلاة واجبة على كل مسلم، براً كان أوفاجراً وإن عمل الكبائر.

(سنن أبي داؤد ۱:۳۴۲ كتاب الجهاد، باب في الغزو مع أيمة الجور)

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى : (والصلاة عليه) صفتها (فرض كفاية) بالإجماع كد فنه وغسله وتجهيزه فإنها فرض كفاية.

(الدر المختار ۱:۶۴۰ كتاب الجنائز، مطلب في صلاة الجنازة)

**الجواب:** زید له دغه زوی او ښځې سره د تعلق په قطع کولو باندې نه ګنهګاریږي، (۱) البته که چېرته په دغه اقدام کې د اصلاح امید نه وي؛ نو د فاسقانو سره تعلقات پرېښودل. په دې اراده چې هغوی نصیحت قبول کړي او په هغوی باندې انفاق (خرچه) کول د هغوی له ګناه څخه (له افتراء او الزام لګولو څخه) د بندولو په خیال خلاف مصلحت نه دی. (۲) والله أعلم.

## د غیر مشروع پرېکون کوونکي او له هغه سره د مرسته کوونکي حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یو ښهر خلک یو کس د هغه له ملکیت څخه کوم چې شرعًا او قانونًا ثابت شوی دی، په

---

۱) عن عبدالله بن مغفل رضي الله تعالیٰ عنه أنه کان جالساً إلی جنبه ابن اخ له، فخذف، فنهاه، وقال إن رسول الله ﷺ نهی عنها...قال فعاد ابن اخیه یخذف، فقال أحدثک أن رسول الله ﷺ نهی عنها، عدت ثم تخذف، لا أکلمک ابداً.

وفي حاشیة ابن ماجة: وفیه جواز الهجران من أهل المعاصي إن اصرّوا علیها.

(سنن ابن ماجة ۳، باب تعظیم حدیث رسول الله ﷺ)

۲) قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالیٰ: لابأس بالرشوة إذا خاف علی دینه والنبي علیه الصلاة والسلام کان یعطي الشعراء ولمن یخاف لسانه، وکفي بسهم المؤلفة من الصدقات دلیلا علی أمثاله. (الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ: (قوله إذا خاف علی دینه) عبارة المجتبی لمن یخاف، وفیه أیضا: دفع المال للسلطان الجائر لدفع الظلم عن نفسه وماله ولإستخراج حق له لیس برشوة یعنی في حق الدافع. (قوله کان یعطي الشعراء) فقد روی الخطابي في الغریب عن عکرمة مرسلًا قال: اتی شاعر النبيّ ﷺ فقال یا بلال! اقطع لسانه عني فأعطاه أربعین درهما.

(رد المحتار ۵:۳۰۰ کتاب الحظر والإباحة، فصل في البیع، فروع)

طاقت (زور) سره محرومه کول غواړي او له هغه څخه يې اخيستل غواړي او که چيرته هغه له قانوني او شرعي حق څخه نه تيريږي نو له هغه سره د راشه درشه پريکون کوي، د همداسې خلکو متعلق څه حکم دی؟ **بينوا توجروا**

المستفتي: وارثان خان قائم دين، ايبټ آباد...۲۲ محرم ۱۴۰۳هـ

**الجواب:** د صدق او ثبوت په شرط د ظالمانو خلکو سره په پريکون کې برخه اخيستل د هغوی سره مرسته ده، د دغه پريکون (قطع تعلق) او په دې کې له مرستې څخه خان ساتل بکار دي (۱) **وهوالموفق**

**بې وجې د بدګمانۍ کوونکي او بې لمانځه سره د ترک موالات حکم**

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو د دې مسئلې په باره کې چې د يو کس خپل سکنی لور ده کومه چې طلاق شوې ده او د خپل پلار په کور کې ژوند تيروي، دغه پلار همدې انجلۍ ته څو ځله ويلي چې ته بل چيرته لاړه شه، ولې ميړه نه کوې او د همدغه کس د لمانځه کولو شهادت هم نشته دی.

(۱) په شريعت مطهره کې د پورته ذکر شوي کس په باره کې څه حکم دی؟

(۲) دده سره د خلکو راشه درشه څه حکم لري؟ **بينواتوجروا.**

**المستفتي:** مولوي الطاف الرحمن، امام مسجد مارې، ايبټ آباد. ۵ شوال ۱۳۹۴م

---

۱) قال الله تبارک وتعالىٰ: وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ. (سورة المائدة آيت ۲)

وفي المرقاة: (لعن رسول الله آکل الربوا وموکله وکاتبه وشاهديه) قال النووي فيه تصريح بتحريم کتابة المترابيين والشهادة عليهما وبتحريم الإعانة على الباطل. (مرقاة المفاتيح ۲:۵۹ باب الربا)

وعن اوس بن شرحبيل رضي الله تعالىٰ عنه أنه سمع رسول الله ﷺ يقول: من مشى مع ظالم ليقويه وهويعلم أنه ظالم فقد خرج من الإسلام. (مشکوة المصابيح ۱:۴۳۶ باب الظلم)

**الجواب:** بې وجې بدګماني کول حرامه ده، ددې څخه پرهیز کولو ضروري دي، کما صرّح به في القرآن (۱) البته له دغه کس د بې لمانځۍ له وجې ترک موالات (پریکون کول) روا دي، لکه څرنګه چې د نورو فاسقانو هم همدا حکم دی. (۲)

**وهوالموفق**

## همیشه د حرام خوړونکي او د صاحب حق له معافی پرته د شخص بخښش او له هغه سره پریکون کول

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یو کس همیشه حرام خوري، ایا د حقدار له معافی پرته الله تعالی دغه کس ته معافي کوي او که نه؟ له دې پرته له دغه کس سره دوستي او تعلق ساتل څنګه دي؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي: تاج علي خان، جنوبي وزیرستان..۱۰۸۶ع/۱/۱۳.

**الجواب:** د قواعدو له مخې داسې کس یا دعذاب په څکلو سره بخښل کیږي (۳)

---

۱) قال الله تبارک تعالى: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اجْتَنِبُوا كَثِيرًا مِّنَ الظَّنِّ إِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ إِثْمٌ.
(سورة الحجرات، آیت ۱۲)

۲) وفي التعليق الصبيح: (أن رسول الله ﷺ قال: لايكون لمسلم أن يهجر مسلماً فوق ثلاثة) قال التور بشتي: إنما لم يكن له الزيادة على ثلاثة أيام فيما كان بينهما من الأمور الدنيوية، وأما إذا كان الهجران في حق من حقوق الله تعالى فله ما فوق ذلک، ولقد هجر رسول الله ﷺ الثلاثة الذين خلفوا، كعب بن مالک وهلال بن امية ومرارة بن الربيع رضي الله عنهم، فلم يكلمهم خمسين يوما وأمر الناس بهجرانهم.
(التعليق الصبيح على مشكوة المصابيح ۵:۲۶۷ كتاب الاداب، باب ما ينهى عنه من التهاجر والتقاطع واتباع العورات)

۳) قال الملا علي قاري رحمه الله تعالى: وما كان... (دحاشيې باتې برخه په بل مخ)

او یا د صاحب حق په معاف کولو سره (په دنیا یا آخرت کې مفت یا بالمعاوضه) بخښل کیږي (۱)

**نوټ** له داسې کس سره اعزازي تعلقات یا د خوراک څښاک کولو تعلقات سائل ممنوع دي (۲) فقط

## د کابل له موجوده واکمنانو سره تعلقات او له معاهده کوونکو سره د ترک موالات حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د باجوړ سیمې له مختلفو ځایونو څخه یو شمیر خلک د کابل له موجوده واکمنانو سره د تعلقاتو په بناء او له دوی سره د دولت او معاهده جوازات او د خیرخواهی په

(د حاشیې پاتې برخه).... من السيئات أى المعاصي جميعها دون الشرک والكفر ولم يتب عنها حتى مات مؤمناً أى غير تائب فإنه في مشيئة الله تعالىٰ، إن شاء عذبه أى بعدله على قدر استحقاق عقابه، وان شاء عفاعنه أى بفضله ولم يعذبه بالنار أبداً بل يدخله الجنة ويجعله فيها مخلداً.

(الفقه الأكبر :۷۸، الطاعات بشروطها مقبولة)

۱) قال العلامة النووي رحمه الله تعالىٰ :وإن كانت المعصية تتعلق بآدمي فشروطها أربعة، هذه الثلاثة، وأن يبرأ من حق صاحبها، فإن كانت مالا أونحوه رده إليه، وإن كانت حد قذف ونحوه مكنه منه أوطلب عفوه.

(رياض الصالحين : ۳۴، باب التوبة)

۲) قال العلامة الملا علي قاري رحمه الله تعالىٰ: قال الخطابي :رخص للمسلم أن يغضب على أخيه ثلاث ليال لقلته، ولايجوز فوقها إلاإذا كان الهجران في حق من حقوق الله تعالىٰ فيجوز فوق ذلک... قال وأجمع العلماء على أن من خاف من مكالمته أحد وصلته مايفسد عليه دينه أو يدخل مضرة في دنياه يجوز له مجانبته وبعده.

(مرقاة المفاتيح ۸:۷۵۹، كتاب الآداب ،باب ما ينهى عنه من التهاجر والتقاطع ،الفصل الأول)

ترلاسه کولو ورسره ملاویږي، کومو چې په خپله رسیدګی باندې د راډیو ستیشن په ذریعه د افغانستان له موجوده واکمنانو او د جوماتونو د جوړولو او دخپلې خیرخواهی اعلانونه هم کړي دي، آیا شرعا مونږ دهمدې خلکوسره دسلام کلام تعلقات ساتلی شو؟ او د دوی د دعوت قبلول څه حکم لري؟ **بینواتوجروا**.

المستفتي: فضل واحد. باجوړ شهر ۱۹۸۵ع/۱۰/۲

**الجواب:** له همدې خلکو سره ترک موالات مشروع دی. (۱) خو که چېرته د ترک موالات په صورت کې د فساد او کورنی جګړې خطر وي؛ نو په أهون البلیتین باندې عمل کول مصلحت دی. (۲) **وهوالموفق**

## د غاصب عبادات او له هغه سره د معاملاتو حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې په زر، زن (ښځه) او ځمکه باندې په زوره قبضه کوونکی کس، کوم ته چې غاصب هم ویل کېږي آیا هغه په جنازه کې شاملیدلی شي؟ د هغه روژه، حج، زکوة، صدقه، خیرات او قرباني کېدلی شي؟ د هغه متعلق د اسلام څه حکم دی؟ **بینواتوجروا**.

المستفتي: رستم خان، ولد رحیم خان، اټک. ۱۹۸۹ع/۱۰/۳

---

۱) قال العلامة العیني رحمه الله تعالیٰ :هذا باب في بیان ما یجوز من الهجران لمن عصی ، وقال المهلب :غرض البخاري من هذا الباب أن یبین صفة الهجران الجائز وإن ذلک متنوع علی قدر الأجرام ،فمن کان جرمه کثیرا فینبغي هجرانه واجتنابه وترک مکالمته کما جاء في کعب بن مالک وصاحبیه وماکان من المغاضبة بین الأهل والاخوان فالهجران الجائز فیها ترک التحیة والتسمیة وبسط الوجه.

(عمدة القاري ۲۲:۱۴۴، کتاب الادب ،باب ما یجوز من الهجران لمن عصی)

۲) قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالیٰ : والضابط أن من ابتلی ببلیتین فان تساویا خیر ، وان اختلفا اختار الأخف. (الدرالمختار ۱:۳۰۳، باب شروط الصلاة)

وفي شرح المجلة : یختار أهون الشرین. (شرح المجلة ۱:۷۰، المادة نمبر ۲۹)

**الجواب:** که چیرته دغه کس دغه جرمونه حلال ګڼلي دي؛ نو له اسلام څخه خارج (وتلی) دی، د هغه عبادات باطل دي، که چیرته خپل خاننه ګنهګار وایي نو د هغه عبادات صحیح دي او د فساقو په حکم کې شامل شو (١)والله أعلم.

## د کبائرو له مرتکب سره پریکون، له جومات څخه يې منع کول او له هغه سره په صف کې درېدل

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې (١) آیا له زاني سره په یوه صف کې درېدل صحیح دي؟ همدارنګه له طلاق سره بیا هم هغه له ښځې سره ژوند تیروي؟

(٢) آیا له داسې کس سره لمونځ کول صحیح دي کوم چې د ښځو د خرڅولو او اخیستلو کار کوي یا د کوم زوی چې د هغه په اجازه د شرابو کاروبار کوي؟ د قرآن او سنت په رڼا کې مو خبر کړئ؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي: محب الله سرحدي، مردان...١٩٨۶ع/ ٧/ ٨

**الجواب:** کوم کس چې مسلمان وي هغه دي له جومات یا په جماعت سره له لمانځه نه منع کیږي، قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰی: ﴿وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ مَنَعَ مَسَاجِدَ اللّٰهِ أَنْ يُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُ الخ﴾(٢) اګر که دغه کس مرتکب د کبائرو او فواحشو وي، د هغه له صف څخه

---

١) في شرح الفقه الأكبر: أن إستحلال المعصية صغيرة كانت أو كبيرة كفر إذا ثبت كونها معصية بدلالة قطعية...ثم اعلم أن الحسنات يذهبن السيئات، كما قال الله تعالى،الا إنها مختصة بالصغائر ولا تبطل الحسنات بشؤم المعاصي إلاباالكفر، بقوله تعالى:وَمَن يَكْفُرْ بِالْإِيمَانِ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهُ،والفسق ليس في معنى الكفر فلا يلحق به الإحباط.(شرح الفقه الأكبر ١٥٢،استحلال المعصية ولوصغيرة كفر)

وفي شرح العقائد: والكبيرة لاتخرج العبد المؤمن من الإيمان...نعم! إذا كان بطريق الاستحلال والاستخفاف كان كفراً لكونه علامة للتكذيب. (شرح العقائد ٨٢)

٢)(سورة البقرة :ايت ١١۴)

وباسل یا هغه ته نږدې لمونځ نه کول دا د عوامو تعزیرات دي، اسلامي هدايات نه دي، البته په نورو مسلمانانو باندې ضروري ده چې د همداسې خلکو سره پریکون (قطع تعلق) وکړي، (۱) په غم او خوشحالی کې غیر مطلوب شرعي مراسم ورسره ونه پالي. **وهوالموفق**

## د زاني، ديوث او مطلقه له ساتونکي سره غم، ښادي، عليک سليک ختمول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې غلام مرتضی له اوږدې مودې راهيسې زمونږ په عزت باندې لوبې کوي، هغه چې د کله راهيسې زمونږ کور ته تګ راتګ شروع شو نو له هر څه دمخه يې زما همشيره غلام سکينه وتښتول او دوه کاله په غلط کارۍ کې مبتلا وو، له دې وروسته زما اوښي ساول خان غلام سکينې ته طلاق ورکې، دوه کاله وروسته بيا راغی زما د والدينو سره اوسيږي، ما والدينو ته هر ډول نصيحت وکړو، مگر هغوی ونه منلو او هغه يې له ځان سره وساتلو، په همدې وخت کې غلام مرتضی زما له کوچنی خور غلام مسکينه سره ناروا تعلقات جوړ کړه، ما د کلي په عزتمندو سره والدينو ته نصيحت وکړو چې دا بد معاش انسان دی، له غلام مرتضی سره يې هم خبرې وشوې چې ته له دې ځايه ولاړ شه مگر دوی ونه منل، قسم يې وخوړلو او منکر شو چې زما له هغې سره ناورا تعلقات نشته، بالاخر هغه غلام مسکينه هم وتښتول، يو کال وروسته هغه غلام مسکينې ته طلاق

---

۱) اخبرنی عبد الرحمن بن عبد الله بن کعب بن مالک أن عبد الله بن کعب قال سمعت کعب بن مالک يحدث حديثه حين تخلف عن رسول الله ﷺ في غزوة تبوک ... ونهی رسول الله ﷺ المسلمين عن کلامنا أيها الثلاثة من بين من تخلف عنه، قال فاجتنبنا الناس. (صحيح المسلم)

وقال العلامة النووي رحمه الله تعالى: وفي هذا هجران أهل البدع والمعاصي. (حاشية النووي على صحيح المسلم ۲:۳۲۱، باب حديث توبة کعب بن مالک وصاحبيه)

ورکړو. هغه اوس بیا زما د والدینو سره اوسیږي، له مشرې همشیره (مطلقې) سره یې هم غلط تعلقات بیا جوړ کړي، د کلي هر خاص او عام په دې پوه دی، اوس د کلي خلک مونږ د جنازې له لمانځه او په جماعت سره له لمانځه منع کړي یو چې تاسو خو زناکاري شروع کړې ده، ددې متعلق مونږ ته شرعي حکم بیان کړئ؟ بینواتوجروا.

المستفتي: نامعلوم. ۱۹۸۵ع/ ۲/۷.

**الجواب:** د پورته لیکلو د صدق او ثبوت په شرط په واکمنانو او په بااثره عوامو باندې ضروري ده چې همدغه تبنتوونکی او د مستفتي والدین د همدې کلي ښځه وشړي (وباسي)، (۱) کنه نو له هغوی سره دې غم، ښادي، علیک سلیک ختم کړي، (۲) داسې بې غیرتي او دیوثي برداشت کول د اسلام خلاف او مخالفت دی. **وهوالموفق**

---

۱) في الصحيح للإمام مسلم: (سمعت رسول الله يقول من رأى منكم منكراً فليغيره بيده، فإن لم يستطع فبلسانه، فإن لم يستطع فبقلبه، وذلك أضعف الايمان) قال القاضي عياض رحمه الله تعالى: هذا الحديث أصل في صفة التغيير، فحق المغير أن يغيره بكل وجه أمكنه زواله به قولًا كان أوفعلًا فيكسر الات الباطل ويريق المسكر بنفسه أويأمر من يفعله وينزع الغصوب ويردها إلى أصحابها بنفسه أوبأمره إذا أمكنه. (حاشية النووي على صحيح المسلم ۱:۵۱، كتاب الإيمان، باب بيان كون النهي عن المنكر من الإيمان)

۲) في صحيح البخاري: (باب مايجوز من الهجران لمن عصى، وقال كعب حين تخلف عن النبي ﷺ "ونهي النبي ﷺ المسلمين عن كلامنا وذكر خمسين ليلة. وقال الحافظ ابن حجر رحمه الله تعالى: أراد بهذه الترجمة بيان الهجران الجائز، لأن عموم النهي مخصوص لمن لم يكن لهجره سبب مشروع ، فتبين هنا السبب المسوغ للهجر وهو لمن صدرت منه معصية، فيسوغ لمن اطلع عليها منه هجره عليها ليكف عنها. (فتح الباري ۱۰:۴۹۷، كتاب الأدب، باب مايجوز من الهجران لمن عصى)

## د شریعت څخه له انکار کوونکي، له حکومت څخه په دروغو استغاثه کوونکي او مسلمانانو ته له تکلیف رسوونکي سره د ترک موالات حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د کلي په شاملاتو کې یو شمیر بارسوخه خلکو نوې لاره وباسلې ده، په هغې باندې د درې کسانو د کومو ځمکې چې نږدې وې. لار منعه کړه، په همدې باندې یې د همدې کسانو خلاف استغاثه دایره کړه او په څلورم کس یې هم استغاثه دایره کړه، د عدالت څخه حاکم استغاثه دروغجنه وبلل او خارج یې کړه، په دې استغاثه کې په څلورم کس باندې په دروغو استغاثه شوې وه اوس:

(۱) د استغاثه دایروونکي کس شرعي حکم څه دی؟

(۲) هغه د شریعت د فیصلې لپاره له هغه سره هیڅ ځای د تللو لپاره تیار نه دی،

مهرباني وکړئ ددې ځواب ولیکئ؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي: رحمت خان، اټک ..۱۷/ رمضان المبارک ۱۹۷۹ع

**الجواب:** د شریعت څخه انکار کوونکی (۱) او حکومت ته په دروغو استغاثه کوونکی (۲) مسلمانانو ته د بې ځایه تکلیف رسوونکی سخت ....

---

۱) قال الله تعالى: ﴿وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ﴾...قال ابن مسعود والحسن هي عامة في كل من لم يحكم بما أنزل الله من المسلمين واليهود والكفار أى معتقدا ذلک ومستحلًا له فأما من فعل ذلک وهو معتقد أنه راکب محرّم فهو من فساق المسلمين وأمره الى الله تعالى.

(تفسير القرطبي ۶:۱۸۰،سورة المائدة:ایت ۴۴)

۲) وفي التفسير المظهري: ﴿وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُم بَيْنَكُم بِالْبَاطِلِ﴾ كالدعوى الزور والشهادة بالزور أوالحلف بعد إنكار الحق أو الغصب...(دحاشیې پاتې برخه په بل مخ)

ګنهګار دی، (۱) د هغه سره پرهکون پکار دی (۲)وهوالموفق

## د امام توهین کوونکي او د قرآن نه مراعت کوونکي ظالم سره د ترک موالات حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې يو کس خادم حسين پر لاره را روان وو، په هغه باندې څلورو پنځو کسانو حمله وکړه، هغه جومات ته وتښتېدلو، دا ظالم له پېزار سره جومات ته دننه شو، هلته مولوي صاحب ماشومانو ته درس ورکولو، مولوي صاحب هغو ته قرآن واسطه کړ ليکن هغوی ونه منلو او مولوي صاحب يې د جومات څخه وويستلو، د خادم حسين وينې د جومات په ديوالونو ولګيدلې، د همدې ظالمانو په باره کې شرعي حکم څه دی؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: خادم حسين عباسي، بيروټ، براسته مری، کوهاله

**الجواب:** په خادم حسين باندې ظلم کوونکي، د امام توهين کوونکي او د قرآن

---

(د حاشيې پاتې برخه)..... ﴿وَتُدۡلُوا۟ بِهَاۤ إِلَى ٱلۡحُكَّامِ﴾...قال مجاهد يعنى لا تخاصم وانت ظالم ،﴿لِتَأۡكُلُوا۟ فَرِیقࣰا مِّنۡ أَمۡوَ ٰلِ ٱلنَّاسِ بِٱلۡإِثۡمِ وَأَنتُمۡ تَعۡلَمُونَ﴾.
(التفسير المظهري ۱:۲۰۹، سورة البقرة، ايت ۱۸۸)

۱) عن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: المسلم أخو المسلم لا يخونه ولايكذبه ولايخذله، كل المسلم على المسلم حرام عرضه وماله ودمه.
(جامع الترمذي ۲:۴۲، باب ماجاء في شفقة المسلم على المسلم، أبواب البر والصلة)

۲) وفي المرقاة: فإن هجرة أهل الاهواء والبدع واجبة على مرّالاوقات مالم يظهر منه التوبة والرجوع إلى الحق.
(مرقاة المفاتيح ۶:۲۶۲، باب ما ينهى عنه من التهاجر والتقاطع واتباع العورات)

نه مراعت کوونکي مجرمين دي، (۱) د هغوی سره په غم او خوشحالی کې پرېکون مناسب دی. (۲) وهوالموفق

## بلا وجه الزام لګول او له چا د پرده له لیرې کوونکي سره ترک موالات حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې (۱) يو کس په بل باندې د غلا تور ولګولو کوم چې د انسانيت خلاف دی، په داسې حالت کې دشريعت څه حکم دی، په داسې حال کې چې د غلا هيڅ ثبوت نه وي؟ (۲) يو کس په ډک مجلس کې ووېل که چيرته فلانی ښځه زما سره په چينه باندې مخامخ شي؛ نو زه به هغه لوڅه لغړه کړم، د هغه څه حکم دی؟ آيا په شريعت کې چاته اختيار شته چې هغه د ښځې د ذات متعلق داسې خبرې وکړي؟ بينوا توجروا.

المستفتي: حاشير خان، مری...۸۶ع/۸/۱۰

**الجواب:** الزام لګول اود بې حجابه کولو اراده کول ناروا او حرام کارونه دي، (۳)

---

۱) عن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ :المسلم اخوالمسلم لايظلمه ولايخذله ولايحقره...بحسب امرىء من الشر أن يحقر أخاه المسلم ،كل المسلم على المسلم حرام دمه وماله وعرضه.
(صحيح المسلم ۲:۳۱۷، کتاب البروالصلة والادب، باب تحريم ظلم المسلم)

۲) في التعليق الصبيح: فإن هجرة أهل الأهواء والبدع دائمة على مرالأوقات مالم يظهر منه التوبة والرجوع إلى الحق، فإنه ﷺ لما خاف على كعب بن مالك وأصحابه النفاق حين تخلفوا عن غزوة تبوك أمر بهجرانهم خمسين يوماً وقد هجرنساء ه شهراً.
(التعليق الصبيح على مشكوة المصابيح ۵:۲۶۲، كتاب الآداب،باب ما ينهى عنه من التهاجر والتقاطع واتباع العورات)

۳) عن أبي هريرة قال قال رسول الله ﷺ: المسلم... (دحاشيې باتې برخه په بل مخ)

په داسې کسانو باندې توبه وباسل ضروري دي،(۱) کنه نو عوام الناس دې له هغه سره پريکون وکړي.(۲) والله أعلم.

## پردې منکوحه د ځان سره د ساتونکي او د هغه له مرسته کوونکو سره د پريکون حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې سلطان محمد واده کړی دی، بله ښځه چې د ګل محمد منکوحه ده، د خپل ځان سره يې ساتلې ده، مونږ (اهل سرياني) سلطان محمد ته وويل چې دا د شريعت معامله ده چې ته شرعًا منکوحه ښځه د طلاق پرته له ځان سره نه شې ساتلی، لهذا هغه واپس کړه او شرعًا دا ښځه له تا سره نه شي اوسيدلی، کنه نو مونږ له تا سره په ګډه لمونځ، جمعه، جنازه، اخترونه او وغيره نه اداء کوو، اوس دغه معامله له

---

(د حاشيې پاتې برخه)... أخوالمسلم لايخونه ولايكذبه ولا يخذله، كل المسلم على المسلم حرام عرضه وماله ودمه.
(جامع الترمذي ۲:۴۲، ابواب البر والصلة، باب ماجاء في شفقة المسلم على المسلم)

۱) قال الله تبارك وتعالى: يآ أيهاالّذين امنُوا تُوبُوآ الى الله تَوبَةً نَصُوحًا.
(سورة التحريم آيت نمبر ۸)
وقال العلامة النووي رحمه الله تعالى: قال العلماء التوبة واجبة من كل ذنب.
(رياض الصالحين ۳۳ باب التوبة)

۲) قال العلامة السهارنفوري رحمه الله تعالى: (ولايحل لمسلم أن يهجر أخاه فوق ثلث ليال) قال السيوطي رحمه الله تعالى: والمراد حرمة الهجران إذا كان الباعث عليه وقوع تقصير في حقوق الصحبة والاخوة وآداب العشرة كاغتياب وترك نصيحة، وأما ماكان من جهة الدين والمذهب فهجران أهل البدع والأهواء واجب إلى وقت ظهور التوبة.
(بذل المجهود ۵:۲۶۱ كتاب الآداب، باب في هجرة الرجل أخاه)
وفي المرقاة: فإن هجرة أهل الاهواء والبدع واجبة على مرّ الأوقات مالم يظهر منه التوبة والرجوع إلى الحق. (مرقاة المفاتيح ۹:۲۶۲، باب ماينهى عنه من التهاجر والتقاطع)

ځو هفتو ښځه روانه ده، سره له دې چې سلطان محمد ډېر هوليږ هم دی او د نکاح رجسټر کوونکی هم دی، نو مونږ خلک نه له هغه ښځه راشن اخلو او نه له هغه سره په دنيوي معاملاتو لکه ښادي، غم او وغيره کې يو ځای کيدل او ملاقات کوو، اوس کوم خلک چې له هغه سره مرسته کوي او له مونږ سره مرسته نه کوي. له هغوی سره څه معامله وکړی شي؟ ايا دغه کس زمونږ سره په ديني شعائرو کې لکه لمونځ، روژه، او د جنازې لمونځ کې شرکت کولی شي او که داسې کسان له عبادت ګاه څخه وويستل شي؟ بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم ...۱۹۷۶ع ۱۳/۱۰

**الجواب:** د صدق او ثبوت په شرط د دغه کس (سلطان محمد) او دده له مرسته کوونکو سره ترک موالات (پريکون) روا دی، په قرآن[۱] او حديث [۲] سره ثابت دی، البته که دغه خلک مستحلين نه وي د دوی له جومات او جماعت څخه منع کول حرام دي، قال الله تعالى: **وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ مَّنَعَ مَسَاجِدَ اللَّهِ أَنْ يُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُ** الاية[۳] **وهوالموفق**

## د وريندارې ساتونکې او له هغې سره د ناروا تعلقاتو ساتونکې حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو د دې مسئلې په باره کې چې داؤد ولد

---

۱) قال الله تعالى: وَعَلَى الثَّلَاثَةِ الَّذِينَ خُلِّفُوا حَتَّىٰ إِذَا ضَاقَتْ عَلَيْهِمُ الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ وَضَاقَتْ عَلَيْهِمْ أَنفُسُهُمْ وَظَنُّوا أَن لَّا مَلْجَأَ مِنَ اللَّهِ إِلَّا إِلَيْهِ ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ لِيَتُوبُوا.
(سورة التوبة :ايت ۱۱۸)

۲) وفي صحيح البخاري : نهى رسول الله ﷺ المسلمين عن كلامنا أيها الثلثة من بين من تخلف عنه فاجتنبنا الناس وتغيروا لنا حتّى تنكرت في نفسي الأرض فما هي التى اعرف فلبثنا على ذلک خمسين ليلة.
(صحيح البخاري ۲:۶۳۵ كتاب المغازى ،باب حديث كعب بن مالک)

۳) (سورة البقرة :ايت ۱۱۴)

حاضر له لسو کلونو یا کم او زیات له خپلې مشرۍ ورینداري، کومه چې د لسو کالو راهیسې کونده ده، د هغې سره په ګډه ژوند کوي، د داؤد او دده د ورينداري ژوند، خوراک څښاک، ویده کیدل او بیداریدل هر ه یو ځای دي، داؤد خپلو دوو میرمنو (کورودانو) ته هم طلاق ورکړی دی، د خلکو اوس د دوی دواړو په ناروا تعلقاتو باندې اشتباه ده، دا وخت دغې اشتباه د ثبوت شکل غوره کړی دی،داوخت عینې شاهدان موجود دي چې مذکور کس له دغې ښځې سره ناروا تعلقات ساتلي دي، داؤد نه د هغې ښځې سره نکاح کوي او نه دهغې څخه ځانته ژوند کوي.آيا داکس دمسلمانانو په غم،ښادی،جنازې لمانځه او په جماعت سره په فرض لمانځه وغیره کې شرکت کولی شي؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي غلام حیدر، پشاور ۱۹۷۸ع/ ۹/ ۴

**الجواب:** د صدق او ثبوت په شرط دغه کس (داؤد) ولد حاضر فاسق او فاجر دی، (۱) د ګنهګار په صورت کې په هر مسلمان باندې ضروري ده چې له هغه سره پریکون (ترک موالات) وکړي. (۲) **وهوالموفق**

## د خوابې لوڅوونکې وهونکې او ټکوونکې حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یو کس خپله خوابښې یعنې د ښځې (کوروداني) مور په ناروا طریقه ووهل، وې ټکول

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله وفاسق) من الفسق وهوالخروج عن الاستقامة ولعل المراد به من يرتكب الكبائر كشارب الخمر والزاني وآكل الربا ونحو ذلك. (ردالمحتار ۱:۴۱۴، كتاب الصلوة، باب الإمامة)

۲) قال الله تعالى: وَعَلَى الثَّلَاثَةِ الَّذِينَ خُلِّفُوا حَتَّىٰ إِذَا ضَاقَتْ عَلَيْهِمُ الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ وَضَاقَتْ عَلَيْهِمْ أَنفُسُهُمْ.

قال العلامة القرطبي رحمه الله تعالى: وفي هذا دليل على هجران أهل المعاصي حتى يتوبوا. (تفسير القرطبي ۸:۲۶۰، سورة التوبة، آيت ۱۱۸)

تردې چې د خپلې ښځې مور يې لوځه کړه. آيا شرعًا په دغه کس باندې کوم حرج شته او که نه؟ که چيرته نشته نو د هغه سره څه وکړو؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي: جناب عليم خان، هزاره.... يکم رمضان ۱۹۸۹ع

**الجواب:** دغه کس د ايذاء او اهانت له وجې فاسق دی. (١) په ده باندې توبه کول او واپس کېدل ضروري دي (٢). **وهوالموفق**

## د سپين رنګو ښځو له ساتونکو سره پريکون کول ضروري دي

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې دلته زياتره خلکو سپين رنګې ښځې ساتلي دي، دا ضرور ګڼي چې موږ ناروا کار کړی دی، ليکن استعمال يې د خپلو ښځو په شان کوي، له دوی سره ترک موالات څنګه دی؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي: مولانا فخرالدين، برمنګهم، انګلينډ. ۱۹۷۳ع/۸/۱۵

**الجواب:** له همدې خلکو سره ترک موالات (٣)، او په هغوی باندې د وس سره سم

---

١) عن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: المسلم أخوالمسلم لايخونه ولايكذبه ولا يخذله، كل المسلم على المسلم حرام عرضه وماله ودمه. (جامع الترمذي ۲: ۴۲، أبواب البر والصلة، باب ماجاء في شفقة المسلم على المسلم)

٢) وفي تفسير القرطبي: يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ تُوبُوٓا۟ إِلَى ٱللَّهِ تَوْبَةً نَّصُوحًا. أمر بالتوبة وهي فرض على الأعيان في كل الأحوال وكل الأزمان...وقال الكلبي: التوبة النصوح الندم بالقلب والاستغفار باللسان والاقلاع عن الذنب والاطمئنان على أنه لايعود. (تفسير القرطبي ۱۸: ۱۷۴، سورة التحريم: ايت ۸)

٣) قال الله تعالى: وَعَلَى ٱلثَّلَٰثَةِ ٱلَّذِينَ خُلِّفُوا۟ حَتَّىٰٓ إِذَا ضَاقَتْ عَلَيْهِمُ ٱلْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ وَضَاقَتْ عَلَيْهِمْ أَنفُسُهُمْ. قال العلامة القرطبي رحمه الله تعالى: وفي هذا دليل.. (دحاشيې باتې برخه په بل مخ)

انکار ضروري دی. (۱) په دې کې ډېرې زياتې ذاتې ګټې دي. **وهوالموفق**

## د يتيمانو په جايداد باندې له قبضه کوونکي د هغوی له ويروونکي اخطار ورکوونکي سره د ترک موالات حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو په دې مسئله کې چې (۱) يو کس سلمان خان ډېر لمونځ کوونکی او په ډېر لوړ (اوچت) آواز د کلمې ويونکی دی، ليکن له ځلوېښتو کلونو راهيسې دی د يتيمانو په جايداد باندې قابض دی د کومو پلار چې د غربت له وجې بل ځای ته تللی وو او هلته يې تو له کورنۍ مړه شوه، صرف يو زوی يې ژوندی دی کوم چې سلمان خان ويرولی اخطار يې ورکړی او په پرده کې يې د وژلو اخطار ورکړی، په جايداد باندې يې ورته ناروا قبضه کړې ده. يو ځل د څو ورځو لپاره هغه خپله ښځه پرېښودل کومه چې وړې اوسيدله او ژړل په يې هغې ته يې طلاق ورکړو.

(۲) د دغه کس يوه ښځه وه، دی ۳۵ کاله مخکې په يوه ښځه باندې مين (عاشق شو کومه چې واده شوې وه، بيا يې د هغې له مېړه څخه طلاق واخيست په خپله يې له هغې سره نکاح وکړه او لومړۍ ښځه يې د هغو يتيمانو په جايداد باندې يې ياره او مددګاره پرېښودله کومه چې تر نن پورې د غربت په حالت کې خپله ګوزاره کوي او اوس د يتيمانو په جايداد باندې د بشپړې قبضې کولو لپاره نوې نوې لارې استعمالوي، لهذا د دغه غاصب په باره کې څه حکم دی؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: صوبيدار محمد اشرف، راولپنډی. ۱۹۷۵ع/ ۱۴/۱۰

---

(د حاشيې پاتې برخه)..... على هجران أهل المعاصى حتى يتوبوا. (تفسير القرطبى ۲۶۰:۸ سورة التوبة، آيت ۱۱۸)

۱) عن أبي سعيد الخدرى رضي الله تعالى عنه عن رسول الله ﷺ قال: من رأى منكم منكراً فليغيره بيده، فإن لم يستطع فبلسانه، فإن لم يستطع فبقلبه، وذلک أضعف الإيمان. (مشكوة المصابيح على هامش مرقاة المفاتيح ۳۲۸:۹، باب الأمر بالمعروف)

**الجواب:** د صدق او ثبوت په شرط له دغه کس سره د توبې تر وخته پورې ترک موالات او پريکون کول پکار دي (۱) **وهوالموفق**

## د سړيو په شان شکل او صورت، د وضع او قطع جوړونکې بد چلنده ښځې د والدينو او نورو محارمو حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې په ايبټ آباد کې يو کس د خپلې سکنې لور په ماشومتوب کې شکل او صورت بدل کړی دی د سړيو (نارينه وو) شکل يې غوره کړی دی، سر يې غوڅ (کټ) کړی دی، د سړيو لباس يې اغوستی دی، اوس هغه د ۱۵ کلونو خوانه انجلۍ ده او عاقله بالغه ده. دې ښځې د خپل اصلي نوم پر ځای د سړي نوم ايښی دی، ښځې او سړي يې ګمراه کړي دي، دا ښځه په غم ښادۍ کې ګډون کوي له سړيو سره کار لري، ورسره ملاويږي، د همدې ښځې والدين او نور رشته داران هغه له دې ناوړه عمل څخه نه منع کوي، خلک د همدې ښځې له ناروا حرکتونو څخه تنګ راغلي دي، د هغې د والدينو او رشته دارانو لپاره څه حکم دی؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: نامعلوم... ۱۹۷۶ع/ ۱/ ۱۹.

**الجواب:** د صدق او ثبوت په شرط د همدې ښځې ټول محارم ديوث، بې غيرته او واجب التعزير دي، **لأن الديوث كما في شرح التنوير: هو من لا يغار على امرأته**

---

۱) في المرقاة: فإن هجرة أهل الأهواء والبدع واجبة على مر الأوقات ما لم يظهر منه التوبة والرجوع إلى الحق، فإنه ﷺ لما خاف على كعب بن مالك وأصحابه النفاق حين تخلفوا عن غزوة تبوک، أمر بهجرانهم خمسين يوماً، وقد هجر نساءه شهراً. (مرقاة المفاتيح ۹:۲۶۲، باب ما ينهى عنه من التهاجر والتقاطع واتباع العورات)

أومحرمه(۱) **وهوالموفق**

## تا په خانه کعبه کې خره ځرولي د داسې جاهلانه خبرې کوونکي حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې يو کس عمره اداء کړې، دويم کس د هغه ځخه پوښتنه وکړه چې هلته تا څه وليدل. هغه چې څه ليدلي وو صحيح صحيح يې بيان کړه، بس يوه خبره يې نه وه کړې سائل حج کړى و، هغه وويل چې تا هلته خره ځرولي وو، د عمرې اداء کوونکي په زړه کې د خانه کعبې ډېر احترام دى، ليکن د حج کوونکي وويل چې تا په خانه کعبه کې خره ځرولي، د هغه په باره کې څه حکم دى؟ **بينوا توجروا**

المستفتي: نامعلوم.... ۱۵ ستمبر ۱۹۶۹ء

**الجواب:** د دغه کس يعنې د سائل (سوال کوونکي) خبره جاهلانه خبره ده، البته يوه عام کس ته داسې خبره کول موجب تعزير نه دي، **بخلاف الأشراف والخواص**(۲) **وهوالموفق**

## له غير معذور روژه خور سره د ترک موالات حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې يو د روژې نه ساتونکي کس خپله ښځه (ميرمن) په رمضان کې د ورځې د خوراک په پخولو

---

۱) (الدر المختار ۲۰۲:۳، باب التعزير)

۲) قال العلامة الحصكفي: لايعزر بيا حمارٌ يا خنزير ياكلب...لظهور كذبه واستحسن في الهداية التعزير لوالمخاطب من الأشراف، وتبعه الزيلعي وغيره. (الدر المختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: عبارة الهداية: وقيل في عرفنا يعزر لأنه يعد شينا، وقيل إن كان المسبوب من الأشراف كالفقهاء والعلوية يعزر لأنه يلحقهم الوحشة بذلك، وإن كان من العامة لايعزر وهذا أحسن.

(ردالمحتار ۲۰۲:۳، باب التعزير)

باندې مجبوره کوي او د هغې په انکار سره په هغې باندې سختي (تشدد) کوي له کوره يې وباسي، والدين چې کله هغه ته احساس ورکوي نو هغوی ته هم ناوړه کنځل کوي، له دغه کس سره څه وکړی شي؟ **بينوا توجروا**

المستفتي: مرزا خان عباسي، مری... ۱۱/ شوال ۱۴۰۰هه

**الجواب:** له غير معذور روژه خور سره ترک موالات يعنې د سلام کلام او وغيره پريښودل ضروري دي، په هر مسلمان باندې همدا رويه ساتل ضروري ده، **نظيره ثلثة الذين خلفوا(۱) وهوالموفق.**

## د فاسقانو او بدمعاشانو له جومات څخه منع کول او د هغوی سره ترک موالات کول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د فاسقانو او بدمعاشانو له جومات څخه د منع کولو څه حکم دی؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: غلام مصطفي، ايبټ آباد، هزاره... ۲۹/ رمضان ۱۴۰۰هه

**الجواب:** د قرآن او احاديثو له مخې د فاسقانو او بدمعاشانو له جومات څخه منع کول ظلم او حرام دي، (۲) د متقيانو لپاره د همدې عوامي تعزير څخه پرهيز

---

۱) أخبرني عبدالرحمن بن عبدالله بن كعب بن مالك أن عبدالله بن كعب وكان قائد كعب من بنيه حين عمي، قال سمعت كعب بن مالك يحدث حديثه حين تخلف عن رسول الله ﷺ في غزوة تبوك.....ونهى رسول الله ﷺ المسلمين عن كلامنا أيها الثلاثة من بين من تخلف عنه قال فاجتنبنا الناس. (صحيح المسلم)

وقال العلامة النووي رحمه الله تعالى: وفي هذا هجران أهل البدع والمعاصي. (حاشية النووي على صحيح المسلم ۲: ۳۶۱، كتاب التوبة، باب حديث توبة كعب بن مالك وصاحبيه)

۲) قال العلامة القرطبي رحمه الله تعالى: (وَمَنْ أَظْلَمُ..(دحاشيې باتې برخه په بل مخ)

کول ښکار دي، البته له فاسقانو سره ترک موالات یعني د سلام کلام پرېښودل

بيع او شراء (معاملات) کې پرېښودل مشروع دي (۱) **وهوالموفق**

## د د یوث له کلي څخه د وباسلو حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې زموږ په کلي کې يو دیوث انسان دی. د هغه له ښځې سره خلک زنا کوي. دی خپلې ښځې ته هيڅ نه وايي. سره له دې چې ښه پرې خبر دی. په داسې خلکو سره چونکه د ټولنې (معاشره) د خرابېدو وېره ده. ايا د هغه په حيله بهانه سره له کلي څخه وباسل روا دي او که نه؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: زاهد حسين، بټ خيله، ملاکنډ ايجنسي ۱۲ / صفر ۱۴۱۰ هـ

---

(د حاشیې پاتې برخه) مِمَّن مَّنَعَ مَسٰجِدَ اللهِ اَن يُذكَرَ فِيهَا اسمُهُ وَسَعٰى فِي خَرَابِهَا)....
وقيل المراد من منع من كل المسجد إلى يوم القيمة ،وهوالصحيح.

وعن عبدالله بن كعب قال سمعت بن مالك يحدث حديثه حين تخلف عن رسول الله ﷺ في غزووة تبوک......وأتى رسول الله ﷺفاسلّم عليه وهو في مجلسه بعدالصلوة فأقول في نفسي هل حرّک شفتيه بردالسلام أم لا؟ثم أصلّي قريباً منه وأسارقه النظر فإذا أقبلت على نظر اليّ الخ.
(صحيح مسلم ۲: ۳۶۰،باب حديث توبة كعب بن مالک وصاحبيه)

۱) قال العلامة العيني رحمه الله تعالىٰ :هذا باب في بيان مايجوز من الهجران لمن عصى ، وقال المهلب :غرض البخاري من هذاالباب أن يبين صفة الهجران الجائز وإن ذلک متنوع على قدرالأجرام ،فمن كان كثيراً فينبغي هجرانه واجتنابه وترک مکالمته كماجاء في كعب بن مالک وصاحبيه.
(عمدة القاري ۲۲: ۱۴۴، كتاب الأدب ،باب مايجوز من الهجران لمن عصى)

**الجواب:** په با اثره خلکو باندې ضروري ده چې همداسې دیوث په زوره وباسي او د کمزورو خلکو لپاره یې د حیلې په ډول وباسل ضروري دي (۱) **وهوالموفق**

## د امام توهین کوونکي فاسق کس سره د ترک موالات حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یو کس خانداني امام ته په یوه غلط کار د اعتراض په کولو مور خور او ښځې ته کنځل وکړه او په جومات کې یې د خلکو پر وړاندې د امام د وهلو کوشش کړی په کوم سره چې د سیمې په خلکو کې جنجال پیدا شوی، مذکور کس یې له اسلام څخه خارج بللی او له هغه سره یې تولنیز پرېکون کړی، د همدې مسئلې شرعي حکم څه دی؟ **بینواتوجروا.**

**المستفتي:** محمد رفیق، بمعرفت قاضي محمد یونس انور، لاهور ۱۴۰۰ه/ ۱/ ۱۰

**الجواب:** د امام توهین ناروا او موجب د فسق دی، **قال رسول الله صلی الله علیه وسلم:** **سباب المسلم فسوق (رواه مسلم)**(۲) د تېښګار په صورت کې او د معافی نه غوښتلو

---

۱) **في المرقاة:** (عن أبي سعيد الخدري رضي الله تعالى عنه أن رسول الله ﷺ قال من رأى منكم منكراً فليغيره بيده) أي بأن يمنعه بالفعل بأن يكسر الآلات ويريق الخمر ويرد المغضوب إلى مالكه (فإن لم يستطع) أي التغيير باليد وإزالته بالفعل لكون فاعله أقوى منه (فبلسانه) أي فليغيره بالقول وتلاوة ما أنزل الله من الوعيد عليه وذكر الوعظ والتخويف والنصيحة. (مرقاة المفاتيح ۹: ۳۲۸، باب الأمر بالمعروف)

في التعليق الصبيح: فإن هجرة أهل الأهواء والبدع دائمة على مر الأوقات مالم يظهر منه التوبة والرجوع إلى الحق.

(التعليق الصبيح على مشكوة المصابيح ۵: ۲۶۲، كتاب الأدب باب ماينهى عنه من التهاجر والتقاطع واتباع العورات)

۲) (صحيح المسلم ۱: ۵۸، كتاب الإيمان، باب قول النبي ﷺ: سباب المسلم فسوق)

په صورت کې له دغه کس سره ترک موالات او ترک کلام روا دی. وله نظائر[۱] وهوالموفق

## له نیشنل مسلم لیک او د افغانستان له خلقیانو او پرچمیانو سره د ترک موالات حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره کې چې د افغانستان د خلقيانو او پرچميانو چې دلته كوم دوستان دي، د هغوی سره په قطع تعلق باندې ګنهګار دي او كه نه؟ بينواتوجروا

المستفتي: مفتي محمد سردار، مدرس دارالعلوم عربيه تل ...۸۸ع/ ۱/ ۱۸

**الجواب:** د نيشنل او مسلم ليک دواړو دواړو ارادې له اسلام سره متصادمې دي او دواړه اسلامي نظام ته شكست وركول غواړي، كه چيرته ممكنه وي همدې تولو ډلو (پارټيو) سره دې ترک موالات وشي[۲] وهوالموفق

## له قادیانیانو سره مکمل ټولنیز پریکون

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره کې چې يو كس له

---

۱) عن عبدالله بن مغفل رضي الله تعالىٰ عنه أنه كان جالساً إلىٰ جنبه ابن أخ له، فخذف فنهاه، وقال إن رسول الله ﷺ نهى عنها، وقال إنها لاتصيد صيداً ولاتنكئ عدوًّا وانّها تكسرالسنّ وتفقاء العين، قال فعاد ابن أخيه يخذف، فقال أحدّثک أن رسول الله ﷺ نهى عنها عدت ثم تخذف، لاكلمک أبداً (ابن ماجة)

وفي حاشيته: وفيه جواز الهجران من أهل المعاصي إن أصرّوا عليها.

(سنن ابن ماجة ۳، باب تعظيم حديث رسول الله ﷺ)

۲) أن عبدالله بن كعب قال سمعت كعب بن مالک يحدث حديثه حين تخلف رسول الله ﷺ في غزوة تبوک..... ونهى رسول الله ﷺ المسلمين عن كلامنا أيها الثلاثة من بين من تخلف عنه قال فاجتنبنا الناس.

وقال العلامة النووي رحمه الله تعالىٰ: وفي هذا هجران أهل البدع والمعاصي.

(صحيح المسلم ۲: ۳۶۱، كتاب التوبة، باب حديث توبة كعب بن مالک وصاحبيه)

قادیانیانو سره لاندې ذکر شوي معاملات کوي:
(۱) د روپیو په قرض ورکول او اخیستل (۲) سترې مشې (مصافحه)
(۳) د ودونو په خوشحالۍ کې ګډون
(۴) په جنازو کې ګډون کول، د دغه متعلق څه حکم دی؟ بینواتوجروا.

المستفتي: سمیع الحق، پشاور ۱۲/ ذي القعده ۱۳۹۴هه

**الجواب:** که چیرته همدې قادیانیانو د حکومت فیصله (د دوی د کافر کېدو متعلق) منلې وي: نو د هغوی سره معاملات او مواسات روا شوي دي، (۱) البته په هغوی باندې سلام اچول یا د سلام ځواب ورکول (۲) یا د هغوی ذبیحه خوړل (۳) یا په هغوی باندې جنازه کول حرام شوي دي (۴) **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة أشرف علی التهانوي: د کفارو سره درې قسمه معاملات کېږي، (۱) موالات (۲) مدارات (۳) مواسات ...... او د مواسات حکم دا دی چې د اهل حرب سره ناجائز دی او د غیر اهل حرب سره جائز. د سورة ممتحنه آیت: «لَا يَنْهَاكُمُ اللَّهُ عَنِ الَّذِينَ لَمْ يُقَاتِلُوكُمْ فِي الدِّينِ وَلَمْ يُخْرِجُوكُم مِّن دِيَارِكُمْ أَن تَبَرُّوهُمْ وَتُقْسِطُوا إِلَيْهِمْ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ» کې ددې تصریح ده او په دې آیت کې دا مواسات مجازا تولی سره تعبیر شوی دی.

وفي الهندیة: ولابأس بأن یکون بین المسلم والذمی معاملة إذاکان ممالابدمنه.
(فتاوی هندیة ۵:۳۴۸، کتاب الکراهیة، الباب الرابع في أهل الذمة)

۲) قال العلامة الحصکفي: فلا یسلّم علی کافر لحدیث: لاتبدؤا الیهود ولا النصاری بالسلام ..... ولو سلّم یهودي أو نصراني أومجوسي علی مسلم فلا بأس بالرد ولکن لایزید علی قوله وعلیک. (الدرالمختار ۵:۲۹۲، کتاب الحظر والإباحة، فصل في البیع)

۳) قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالی: لاتحل ذبیحة غیر کتابي من وثني ومجوسي ومرتد الخ. (الدر المختار ۵:۲۰۹، کتاب الذبائح)

۴) قال الله تعالی: وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰ أَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ أَبَدًا وَلَا تَقُمْ عَلَىٰ قَبْرِهِ ۖ إِنَّهُمْ كَفَرُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَمَاتُوا وَهُمْ فَاسِقُونَ ...... (دحاشیې باتې برخه په بل مخ)

## له قادیانیانو او مرزائي نوازو سره پرېکون او د دوی له جومات یا جماعت څخه د منع کولو حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې مرزایان کوم چې د غیر مسلم اقلیت ګڼل شوي دي نو:

۱: ایا اوس د هغوی سره پرېکون ختمېدلی شي او که نه؟ که چیرته نه وي؛ نو له هندو، سیک، عیسایي یا نورو غیر مسلمو سره تولنیز پرېکون ولې نشته؟

۲: که چیرته د تولنیز پرېکون حکم تراوسه نافذ وي؛ نو د مرزایي نوازو سره د پرېکون حکم تراوسه شته او که نه؟

۳: کوم کس چې د مرزایي نوازو سره پرېکون نه کوي د هغه متعلق څه حکم دی؟ هغه د جومات یا جماعت څخه ویستل څنګه دي؟

۴: مثلا د زید ورور مرزائي دی، زید خپل مرزائي ورور ته کافر او مرتد ویلي دي مګر دنیوي تعلقات له هغه سره ساتي، د دغه زید ملامت وغیره کول څنګه دي؟

**نوټ:** له مرزایانو سره د دنیوي معاملاتو پرېکون مراد دی، دیني پرېکون خو برحال دی که ذبیحه شوه، مناکحت، سلام دعا او وغیره، دنیوي لکه تجارت، ملازمت مزدوري او وغیره

المستفتي: سید عنایت الله شاه بخاري، کیمل پور... ۷/ نومبر ۷۴ع

**الجواب:** ماته د مجلس عمل د پرېکړې (فیصلې) هیڅ علم نشته، البته د مجلس عمل (د کوم چې زیاتره علماء برحق دي) د دوی فیصله حسب خداوندي ارشاد ﴿وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ﴾ واجب الاطاعت ګرځي، (۱) همدارنګه واضحه دې وي چې

---

(د حاشیې پاتې برخه) وقال العلامة القرطبي رحمه الله تعالى :قال علمائنا هذا نص في الامتناع من الصلوة على الكفار. (الجامع لأحكام القرآن ۸: ۲۰۲، سورة التوبة، آيت ۸۳)

(۱) قال الله تبارک وتعالى: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ﴾ (سورة النساء آيت ۵۹)......(د حاشیې پاتې برخه)....

د مرزايي نوازو له جومات يا جماعت څخه وباسل حرام دي، قال الله تعالى: وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ مَنَعَ الخ (۱) البته له هغوی څخه ځان ساتل او احتياط کول ډېر ضروري دي محترمه: حسب وعده د مولانا صاحب څخه معلومات وشول، هغه وفرمایل چې حکومت کومه فيصله کړې ده د هغې نفاذ او د مرزايانو له منلو وروسته له مرزايانو سره د ذميانو په شان تعلق ساتل کېږي، (۲) د هغوی سره ملازمت (دنده) او وغیره روا شوي (۳) او پرېکون ختم شوی او دا يې هم وفرمایل چې د

---

(د حاشيې پاتې برخه) وقال العلامة القرطبي رحمه الله تعالى: (وَأُولِي الأَمْرِ) أهل القرآن والعلم وهو اختيار مالك رحمه الله تعالى ونحوه قول الضحاك قال: يعني الفقهاء والعلماء في الدين. (التفسير القرطبي ۵: ۲۴۹، سورة النساء آيت ۵۹)

وفي التفسير المظهري: وكذا يشتمل الفقهاء والعلماء والمشائخ بل أولى لأنهم ورثة الأنبياء وخازنوا أحكام الله وأحكام رسوله، أخرج ابن جرير والحاكم وغيرهما عن ابن عباس هم أهل الفقه والدين وفي لفظ هم أهل العلم.

(التفسير المظهري ۲: ۱۵۲، سورة النساء، آيت ۵۹)

۱) سورة البقرة، آيت ۱۱۴)

۲) وفي التعريفات الفقهية: والذمي هو المعاهد من الكفار لأنه أومن على ماله ودمه ودينه بالجزية. (التعريفات الفقهية ۳۰۰، الذال)

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ولايجوز أن يحدث بيعة ولاكنيسة ولا صومعة ولابيت نارولامقبرة ولاصنما حاوي، في دارالاسلام....ويميز الذمي عنافي زيّه بالكسر، لباسه وهيئته ومركبه وسرجه وسلاحه.

(الدر المختار ۳: ۳۹۶، باب العشر والخراج والجزية، فصل في الجزية)

۳) وفي الهندية: المسلم إذا أجر نفسه من كافر ليخدمه جاز ويكره، وقال الفضلي لايجوز للخدمة ومافيه الإذلال بخلاف الزراعة والسقي.

(فتاوى هندية ۴: ۴۳۵، كتاب الإجارة، الباب الحادي عشر في الإستيجار للخدمة)

مرزايي توازو ملازمت كول خو مخكې هم ممنوع نه وو، دغه پرېكون له مرزايانو سره منحصر وو **وهوالموفق**.

## له معتدې سره د خلوت كوونكي او په گناه باندې د ټينگار كوونكي كس او د هغه له مرسته كوونكو سره د پرېكون حكم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې اكرم د عدالت وړاندې خپلې ښځې ته درې طلاقونه وركړه (د عدالت په ريكارډ (ثبت) كې د مطلق طلاق ذكر شوى دى) ځكه چې د مروجه قانون مطابق درې طلاقونه په يو طلاق باندې حمل شوي، د طلاق وروسته مطلقه د عدت تيرولو لپاره د پلار كور ته لاړه، په دې وخت كې د مطلقې پلار د مهر او د جهيز بيرته وركولو مقدمه په عدالت كې درج كړه، ډير تاريخونه تير شوه، په يوه تاريخ باندې ناڅاپه ښځې په عدالت كې وويل چې زه له اكرم سره اوسيدل غواړم، مگر زما پلار او ورور ماته د اوسېدو اجازه نه راكوي، عدالت د خپل قانون له مخې ښځه خپل ميړه ته وسپارل او هغه د ميړه سره لاړه، سره له دې چې په عدت كې څو ورځې پاتې وې، د اكرم په دغه غير شرعي كار باندې د كلي خلك غوسه شول چې مطلقه بالثلثه څنگه له ځان سره ساتي؟ معامله تر ډسترك خطيب پورې ورسيده، اكرم د خطيب پر وړاندې وويل چې ما يوه خبره پټه كړې وه هغه دا چې ما د طلاق په وخت كې ان شاء الله ويلي و، نورو دوه متشرع كسانو شاهدي ادا كړه چې ده د (خطيب) څخه مخكې محمد اكرم دا بيان كړى دى چې زه درې طلاقونه وركوم او په هغو كې د ان شاء الله ذكر نه و، خير! په اخير كې اكرم وويل چې زه درى طلاقونه په رښتيا وركوم او تاسو ته فيصله درسپارم، خطيب صاحب هغه ته تاريخ وركړ او يوه ډله يې جوړه كړه په كومه كې چې تول نيک سري دي، په معلوم تاريخ باندې اكرم د ډلې پر وړاندې وويل چې زه د مطلقې پلار ته د سپارلو لپاره تيار يم، لهذا د ډلې په مشوره فيصله وشوه:

١ چې مطلقه به د ماز ديگر په وخت كې پلار ته سپارل كيږي

۲ : جهيز او حق مهر به ورته سپارل کيږي

۳ : د مطلقې پلار ته د قانوني کار حق نشته

دويمه ورځ اکرم ده خطيب پر وړاندې وويل چې اوس انجلۍ د پلار کور ته نه ځي، نو اکرم له مطلقې سره وخت تيروي، پوښتنه دا ده چې

۱ : اکرم د مطلقې سره په عدت کې ژوند تيرولی شي او که نه؟

۲ : آيا د مسلمانانو سره په جماعت کې شريکيدلی شي او که نه؟

۳ : خلک د هغه سره تولنيز پريکون کولی شي او که نه؟

۴ : د طلاق ورکوونکي د مرستندويانو او ملګرو سره څه وشي؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي : اهاليان اټک ..... ۱۴۰۰هـ/ ۷/ ۱۱

**الجواب:** د ان شاء الله ويلو تکذيب چې کله مدعي نه کوي نو د حاکم او محکم تکذيب بې قاعدې دی (۱)

۲ : په عدت کې له ښځې سره خلوت ممنوع دی نه مساکنت (اوسيدل) (۲)

---

۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى :ويقبل قوله إن ادعاه وأنكرته. (الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدين : (قوله إن ادعاه وأنكرته)أى ادعى الاستثناء.... وقيد بإنكارها لأنه محل الخلاف إذلولم يكن له منازع فلا إشكال أن القول قوله كماصرّح به في الفتح.(ردالمحتار ۲: ۵۵۴،باب التعليق،مطلب فيما لوادعى الإستثناء وأنكرته الزوجة)

۲) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى :ولابدّ من سترة بينهما في البائن لئلا يختلي بالأجنبية ومفاده أن الحائل يمنع الخلوة المحرمة.....ولهما أن يسكنا بعدالثلاث في بيت واحد إذالم يلتقيا التقاء الأزواج ولم يكن فيه خوف فتنة.(الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى :فإن السترة لابد منها....والظاهر لحرمة الخلوة بالأجنبية.(ردالمحتار ۲: ۶۷۵،باب العدة،فصل في الحداد)

۳ : د جومات څخه منع کول د کوم نیک یا فاجر سړي ظلم او حرام دی (۱)

۴ : که چیرته د جرم ارتکاب تسلیم شي یا په شهادت سره ثابت شي نو د دغه تینګار په صورت کې پریکون ضروري دی (۲)

۵ او دغه له مرسته کوونکو سره هم بیا پریکون کول پکار دی (۳) **وهوالموفق**

---

۱) قال الله تعالٰی : وَمَن اَظلَمُ مِمَّن مَّنَعَ مَسٰجِدَالله اَن يُّذكَرَفِيهَا اسمُهُ وَسَعٰى في خَرَابِهَا. وقال العلامة القرطبي رحمه الله تعالٰی : وقيل المراد من منع كل مسجد إلى يوم القيمة وهو الصحيح.

(الجامع لأحكام القرآن للقرطبي ۲ : ۷۴، سورة البقرة آيت : ۱۱۴)

۲، ۳) وفي المرقاة : فإن هجرة أهل الاهواء والبدع واجبة على مرّالأوقات مالم يظهر منه التوبة والرجوع إلى الحق.

(مرقاة المفاتيح ۹ : ۲۶۲، باب ماينهى عنه من التهاجر والتقاطع)

الله الله

# فتاوی فریدیه

## نهم جلد

## باب أحکام الآلات الجدیدة

# باب أحكام الآلات الجديدة

## په راډيو باندې د سندرو اورېدل

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې په راډيو سره د سړيو يا د ښځو په آواز کې د سندرو په باره کې مو خبر کړئ چې اورېدل يې روا دي او که ناروا؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي: ډاکټر خالد حسين، ميرعلي، وزيرستان..... ۲۸/۵/۷۲ع

**الجواب:** د راډيو په ذريعه اگر که عين اواز نه آورېدل کيږي، بلکې عکس يې اورېدل کيږي ليکن په خوند کې هيڅ فرق نشته، لهذا حکم د دواړو يو شان دی، ويشير إليه حديث: كأنه ينظر إليها. (۱) **وهو الموفق**

## د راډيو ټيپ ريکارډ استعمال او په کور کې د ساتلو حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې زمونږ په مينځ کې ددې مسئلې په باره کې د علماوو ترمنځ اختلاف دی چې په کوم کور کې راډيو يا ټيپ ريکارډ وي، په هغو باندې که سندرې غږوي او که نه، دغه کور ته د رحمت پرښتې نه داخليږي او ځينو ويلي دي چې په راډيو سره تلاوت او خبرونه اورېدل روا دي، شرعي حکم يې څه دی؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي: مولوي محمد رضا، کوئټه.....۵/ مئی ۱۰۸۶ع

---

۱) عن ابن مسعود رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: لاتباشر المرأة المرأة فتنعتها لزوجها كأنه ينظر إليها، متفق عليه.

(مشكوة المصابيح ۲۶۸، باب النظر إلى المخطوبة)

**الجواب:** د عام عرف په بناء دا آلات د لهو دي د هغو په کور کې ساتل ناروا دي، (۱) كما صرّح به في ثمرة الأوراق، البته کله چې د کوم کس متعلق دا معلومه شي چې هغه دغه شيان د صحيح مقصد لپاره په کور کې ايښي دي؛ نو بيا ورته ممنوع ويل ښه نه دي (۲) **وهوالموفق**

## د ټي وي استعمالول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د ټي وي استعمال روا دی که ناروا؟ **بينواتوجروا**

المستفتي: مولوي عبد القيوم، کيمل پور ۹/ ۹۷ع

**الجواب:** ټي وي بذات خود يوه آله ده د هغې ساتل نه مطلوب دي او نه ممنوع. د ممنوع کېدو فتوی له اوريدو او ليدلو سره متعلق د مفاسدو په بناء ورکول شوې ده، کله چې له همدې مفاسدو څخه حفاظت حاصل شي؛ نو د ممنوعيت حکم بې معنی شو. (۳) **وهوالموفق**

---

۱) في الخلاصة :ولم امسک في بيته شيئا من المعازف والملاهي کره ويأثم وإن کان لا يستعملها لأن إمساک هذه الأشياء يکون للهو عادة.
(خلاصة الفتاوی ۴:۲۳۸، کتاب الکراهية،الفصل الثاني في العبادات)

۲) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالیٰ: إن آلة اللهو ليست محرمة لعينها بل لقصد اللهو منها اما من سامعها أومن المشتغل بها وبه تشعر الإضافة ألاترى أن ضرب تلک الآلة بعينها حل تارة وحرم أخرى باختلاف النية بسماعها والأمور بمقاصدها.
(ردالمحتار ۵:۲۴۷،کتاب الحظر والإباحة ،قبيل فصل في اللبس)

وقال المفتي کفايت الله رحمه الله تعالیٰ: د ريډيو مشين په کور کې لګول په دې شرط جائز دی چې په هغې کې صرف خبرونه او مباح تقريرونه اوروَلی شي، ګانې ، سندرې او ناجائز تقريرونه ........(د حاشيې پاتې برخه په بل مخ)

## د بې حیایی او مختلفو مفاسدو په وجه د ټي وي کتل ناروا دي

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې په موجوده وخت کې د ټي وي کتل څنګه دي؟ که چیرته کتل یې حرام دي نو علماء کرام ولې ورته ګوري، د البلاغ میاشتینی مجله چې له کراچی څخه خپریږي د هغې مطابق د هر ډول مذهبي پروګرام کتل په ټي وي باندې ګناه ده. مهرباني وکړئ مسئله واضحه کړئ؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي: نور محمد، چکوال، جهلم ۸۵ع/ ۷/ ۲۸

**الجواب:** ټي وي د مختلفو مفاسدو لپاره سبب دی. مقصود بالذات تري د تقریرونو اوریدل نه دي بلکې بې حیائي ده، د هغه کتل ناروا دي. (۱) د یو شمیر علماوو د ټي وي په ښیښه (سکرین) باندې راتلل په جواز باندې استدلال نه جوړیږي **وهوالموفق**

## د ټي وي د خرڅولو او اخیستلو حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو د ټي وي په باره کې چې د هغه اخیستل د هغه کتل کله چې په هغه کې د ژوندیو شیانو عکسونه راځي، د شریعت له مخې روا دي او که نه؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي: قاري محمد حنیف، ملتان ۱۹/ربیع الثانی ۱۴۰۴ هـ

---

(د حاشیې پاتې برخه)..... وانه وریدل شي، په ریډیو باندې قرآن مجید ویل او د ریډیو په ذریعه قرآن کریم اوریدل مباح دي.

(کفایت المفتي ۹: ۲۱۸، کتاب الحظر والإباحة)

۱) قال الدکتور وهبة الزحیلي رحمه الله تعالی: سدّ الذرائع أصل من أصول الشریعة الإسلامیة وحقیقته: منع المباحات التي یتوصل بها إلی مفاسد أومحظورات.

سدّالذرائع لایقتصرعلی مواضع الاشتباه والاحتیاط، وإنمایشمل کل مامن شأنه التوصل به إلی الحرام.....وضابط منع الذریعة، أن تکون من شأنها الإفضاء إلی المفسدة لا محالة قطعاً أو کثیراً. (الفقه الإسلامي وأدلته ۷: ۵۲۵۸، بشأن الذرائع)

**الجواب:** په هغه ښیښه (آئینه) کې اګر که عکس لیدل کیږي مګر چونکه په همدغه عکس سره د اصل په شان نفساني خواهشات پوره کیږي. لهذا د حدیث په بناء کأنه ینظر الیها(۱) د دواړو حکم یو دی او چونکه دغه آله عموماً د لهو لعب په ارادې سره اخیستل کیږي، لهذا عامه فتوی د عدم جواز صحیح ده (۲)
**وهوالموفق**

## په ټېپ وي باندې د تلاوت په اوریدو کې کوم ثواب شته

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې په ټېپ وي باندې تلاوت اوریدل څنګه دي؟ ایا دا د ثواب باعث ګرځي؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي جناب بغداد. وزیرستان

**الجواب:** په ټېپ وي باندې د تلاوت په اوریدلو کې نه کوم ثواب شته او نه کوم عذاب، **لأن المسموع ههنا عکس صوت القاری کالصدی دون أصله** (۳) **وهوالموفق**

---

۱) عن ابن مسعود رضي الله تعالی عنه قال قال رسول الله ﷺ: لاتباشر المرأة فتنعتها لزوجها کأنه ینظر إلیها، متفق علیه.
(مشکوة المصابیح ۲۶۸، کتاب النکاح، باب النظر إلی المخطوبة)

۲) قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالی: ان ما قامت المعصیة بعینه یکره بیعه تحریماً وإلا فتنزیهاً .... وجازحمل خمر ذمي بأجر لاعصرها لقیام المعصیة بعینه.
(الدرالمختار)
وقال العلامة ابن عابدین: لعل المراد هنا عصرالعنب علی قصد الخمریة فإن عین هذا الفعل معصیة بهذا القصد. (ردالمختار ۵: ۲۷۷ کتاب الحظر والإباحة، فصل في البیع)

۳) قال العلامة الکسائي رحمه الله تعالی: بخلاف السماع من الببغاء والصدی، فإن ذلک لیس بتلاوة. (بدائع الصنائع ۱: ۴۴۰، کتاب الصلوة، سبب وجوبها)

## په راډيو، ټي وي، ټيپ ريکارډ او لاسپيکر باندې د تلاوت په اورېدو کې فرق (توپير)

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې په ټي وي، راډيو، ټيپ ريکارډ باندې د قرآن په اورېدو کې څه فرق (توپير) دی؟ همدارنګه په لاسپيکر باندې تلاوت څه حکم لري؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: جناب بغداد، وزيرستان ۱۸/ شوال ۱۴۰۴ هـ

**الجواب:** دلاسپيکر په ذريعه اصلي آواز پورته کيدلی شي. **عند أهل الفن**[۱] او په دې نورو آلاتو سره د آواز عکس اوريدل کيږي، **ولي في كون الأول أصل الصوت نظراً لأن المشاهدة أن الصوت يسمع بعد سكوت المتكلم على مكبر الصوت، فأفهم، وهو الموفق**

## د (الله اکبر) فلم کتل ناروا دي

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د الله اکبر فلم کتل روا دي او که ناروا؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: محمد رحمن فاروقي، کراچي. ۲۴/۳/۷۶

**الجواب:** د دغه فلم کتل ناروا او حرام دي، [۲] د اسلام دښمنانو لومړی (اول) د

---

۱) قال الشيخ الاسلام حسين احمدالمدني رحمه الله تعالى: د آله مكبر الصوت (لاسپيکر) متعلق د فن د ماهرينو نه په هندوستان او يورپ کې تحقيق وشو او معلومه شوه چې آواز هم هغه دی د آلې په وجه هغې کې صرف وسعت او قوت پيدا کيږي. (آلات جديده کے شرعی احکام: ۱۲۷)

۲) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: دلت المسألة أن الملاهي كلها حرام ويدخل عليهم بلا إذنهم لإنكار المنكر، قال ابن مسعود: صوت اللهو والغناء ينبت النفاق في القلب كما ينبت الماء النبات (الدر المختار)

وقال العلامة ابن عابدين: (قوله ودلت.... (باقي حاشيه په بل مخ)

کتابت په ذریعه رحمة للعلمین د غله او شاعر په نوم یاد کړی و، په هغې کې له ناکامی وروسته دویمه حربه یې په کار واچول، دغه چالاک دښمن په داسې رنګ کې دغه فلم وړاندې کوي چې بالاخر د مسلمانانو په ایمان باندې د ډاکې په اچولو کې کامیاب شي **وهوالموفق**

## په وي سي آر او سینما کې د فلم په کتلو کې هیڅ فرق نشته

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې نن سبا وي سي آر عام دی او خلک په هغه باندې فلم کتل ګناه نه ګني، بلکې یو شمیر کسانو هغه په اسلام کې روا بللی دی، د هغوی اړوند څه حکم دی؟ **بینواتوجروا.**

**المستفتي:** علي سجاد، ریاض، سعودي عرب .... ۷/ رمضان المبارک ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** د وي سي آر او سینما په کتلو کې هیڅ فرق نشته، لکه څرنګه چې د

---

(د حاشيې پاتې برخه) المسألة الخ) لأن محمداً أطلق اسم اللعب والغناء فاللعب وهواللهو حرام بالنص قال عليه الصلوة والسلام لهو المؤمن باطل إلا في ثلاث....وكذا قول الإمام ابتليت دليل على أنه حرام.

(رد المحتار ۵:۲۴۵، كتاب الحظر والإباحة)

وقال العلامة الطحطاوي رحمه الله تعالى:(وكره كل لهو) أى لعب وعبث فالثلاثة بمعنى واحد كما في شرح التأويلات والإطلاق شامل لنفس الفعل واستماعه كالرقص والسخرية والتصفيق وضرب الأوتار من الطنبور والبربط والرباب والقانون والمزمار والصنج والبوق فإنها كلها مكروهة لأنها زي الكفار.

(الطحطاوي على الدر المختار ۴:۱۹۸، كتاب الحظر والإباحة ،فصل في البيع)

غیر محرم بدن ته کتل او د هغه د اصل اواز اوریدل ممنوع دي، (۱) همدارنګه بناء پر حدیث کأنما ینظر إلیه (۲) د غیر محارمو عکسونو ته کتل او د اواز عکس اوریدل هم ممنوع دی. لوجود المنشأ المنع في الأخرین أیضاً (۳) وهوالموفق

## د ټي وي سره د نورو محرماتو استعمالونکي حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې په کور کې تلویزیون ساتل، په هغه باندې خبرونه اوریدل او د معلوماتي پروګرامونو کتل څنګه دي؟ ددې ګناه شته؟ بینوا توجروا.

المستفتي: محمد صدیق، نریاب، هنګو... ۸۹ع ۶/ ۳۱

**الجواب:** چونکه ټي وي په عام ډول د لهو لعب لپاره استعمالیږي، لهذا د هغه

---

۱) عن أبي سعید رضي الله تعالیٰ عنه قال قال رسول الله ﷺ: لاینظر الرجل إلی عورة الرجل ولاالمرأة إلی عورة المرأة.

(مشکوة المصابیح ۲۶۸، باب النظر الی المخطوبة)

۲) وعن ابن مسعود رضي الله تعالیٰ عنه قال قال رسول الله ﷺ: لاتباشر المرأة لتنعتها لزوجها کأنما ینظر إلیها.

(سنن أبي داؤد ۲: ۲۹۲، کتاب النکاح، باب مایؤمر به من غضّ البصر)

۳) قال المفتي محمدشفیع رحمه الله تعالیٰ: د کوم شي آواز چې په اصل کې اوریدل حرام دي د هغې اوریدل په ګراموفون کې هم قطعاً بلا اختلافه حرام دي، مثلاً د ښځو ګانې اګرچې بغیر د مزامیر وي او د سړیو د سندرو سره د مزامیر اود ګډا ډمتوب سره، دغسې د یو مسلمان غیبت یا په هغه باندې بهتان یا یوه دروغ خبره لکه څرنګه چې اصل اوریدل او بل ته اورول حرام دي دغسې په دې آله کې هم اتفاقا او اجماعا حرام دي. کما لایخفي.

(آلات جدیده کے شرعی احکام: ۱۳۹)

استعمال د فتوی له مخې ناروا دی، البته کوم کس چې د متعلقه محرماتو څخه ځان ساتلی شي نو د هغه لپاره ناروا نه دي (۱) **وهوالموفق**

## په کور کې د ښځو لپاره د راډيو ساتلو حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې په کور کې د ښځو لپاره د راډيو ساتل روا دي که ناروا؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: شير خان، چارسده.. ۷۶ع/ ۱۰/ ۱۱

**الجواب:** کله چې په تجربې وغيره سره ثابته شي چې ښځې په هغې باندې سندرې اوري يا ګډېږي نو د داسې ښځو لپاره د هغوی په کور کې ساتل ناروا ګرځي (۲) **وهوالموفق**

## د راډيو په خبرونو باندې له سوچ کولو مخکې اعتماد ناروا دی

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې ماته په

---

۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ومن ذلک ضرب النوبة للتفاخر فلو للتنبيه فلا بأس به. (الدر المختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: إن آلة اللهو ليست محرمة لعينها بل لقصد اللهو منها اما من سامعها أومن المشتغل بهاوبه تشعر الإضافة ألاترى أن ضرب تلک الآلة بعينها حل تارة وحرم أخرى، بإختلاف النية بسماعها، والأمور بمقاصدها.

(ردالمحتار ۵: ۲۴۷، كتاب الحظر والإباحة، قبيل فصل في اللبس)

۲) وفي الخلاصة: ولو أمسک في بيته شيئاً من المعازف والملاهي كره ويأثم وإن كان لايستعملها لأن إمساک هذه الأشياء يكون للهو عادةً.

(خلاصة الفتاوى ۴: ۲۳۸، كتاب الكراهية، الفصل الثاني في العبادات)

راډيو باندې خبرونه او د هيواد حالات اورېدل روا دي که ناروا؟ بينوا توجروا.

المستفتي: شير خان، چارسده.... ۷۴ع/ ۱۰/ ۱۱

**الجواب:** اوریدل يې روا دي، (۱) ليکن په هغو باندې د سوچ کولو وړاندې اعتماد ناروا دی (۲) **وهوالموفق.**

## په ټي وي د بادشاه يا مولوي صاحب تقرير اورېدل او عکس ته يې کتل

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې کله چيرته په ټي وي باندې فحش سندرې او ناوړه ليکچر نه وي، نو عام قومي پروګرام يا اخبار او تقريرونه اوريدل څنګه دي؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي: شاهد اقبال، ذره بازار..... ۷۷ع/ ۱۰/ ۱۷

**الجواب:** په ټي وي د کوم بادشاه (صدر) يا د مقرر تقرير اورېدل نه امر مطلوبه دی او نه امر ممنوعه دی، بلکې مباح او روا کار دی، په ځانګړي ډول کله چې له مفاسدو څخه خالي وي، (۳) باقي د عکس او تصوير کتل بذات خود امر ممنوع نه دی. **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: إن آلة اللهو ليست محرمة لعينها بل لقصد اللهو منها إمامن سامعها أومن المشتغل بها وبه تشعر الإضافة ألاترى أن ضرب تلك الآلة بعينها حل تارة وحرم أخرى باختلاف النية بسماعها والأمور بمقاصدها.
(ردالمحتار ۵: ۲۴۷، كتاب الحظر والإباحة قبيل فصل في اللبس)

۲) قال الله تبارک وتعالى: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِن جَاءَكُمْ فَاسِقٌ بِنَبَإٍ فَتَبَيَّنُوا أَن تُصِيبُوا قَوْمًا بِجَهَالَةٍ فَتُصْبِحُوا عَلَىٰ مَا فَعَلْتُمْ نَادِمِينَ. (سورة الحجرات آيت: ۶)
وقال الحافظ ابن كثير رحمه الله تعالى: يأمر تعالى بالتثبت في خبر الفاسق ليحتاط له لئلا يحكم بقوله ،فيكون في نفس الأمر كاذباً أومخطئاً.
(تفسير ابن كثير ۴: ۲۶۴، سورة الحجرات آيت: ۶)

۳) د لومړی حاشيې حواله ده)

## د راډیو، ټي وي د لهو او لعب د آلتو جوړول او مرمت کول ناروا دي

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره کې چې زما يو دوست د راډیو، ټي وي، تلويزيون، ټيپ ريکارډ، وي سي آر او وغيره جوړولو کار کوي، د هغه په غوښتنه تاسو ته عرض دی چې د شريعت له مخې دغه کار څنګه دی؟ څکه که چيرته شرعاً په دې کې بدي (قباحت) وي نو له دې څخه احتراز کولی شي؟ بينواتوجروا.

المستفتي: اظهار الحق، پشاور......۲۳/ شوال ۱۴۰۳هـ

**الجواب:** آلات بذات خود نه حسن دي نه قبيح، البته د خارجي عوارضو له وجې په هغو کې حسن يا قبحه پيدا کېدی شي (۱) او چونکه دغه آلات په عام ډول په لهو لعب او عياشئ کې استعماليږي، لهذا د هغو جوړول يا مرمت کول ناروا دی (۲) **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى :ومن ذلک ضرب النوبة للتفاخر فلو للتنبيه فلا بأس به. (الدرالمختار)

وقال العلامة الشامي رحمه الله تعالى :وهذا يفيد أن آلة اللهو ليست محرمة لعينها بل لقصد اللهو منها إما من سامعها أو من المشتغل بها وبه تشعر الإضافة ألاترى أن ضرب تلک الآلة بعينها حل تارة وحرم أخرى باختلاف النية بسماعها والأمور بمقاصدها.

(ردالمحتار ۵:۲۴۷،کتاب الحظر والإباحة،قبيل فصل في اللبس)

۲) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى:أن ما قامت المعصية بعينه يكره بيعه تحريماً وإلا فتنزيهاً .... وجازحمل خمر ذمي بأجر لاعصرها لقيام المعصية بعينه.(الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى :لعل المراد هنا عصر العنب على قصد الخمرية فإن عين هذا الفعل معصية بهذا القصد.

(ردالمحتار ۵:۲۷۷،کتاب الحظر والإباحة،فصل في البيع)

## د راډیو او ټي وي متعلق مختلف سوالونه

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د شريعت له مخې په تلويزيون او راډيو کې څه فرق دی؟

(۱) د همدې استعمالوونکي پسې لمونځ کول روا دی که ناروا؟

(۲) د هغو استعمال ګناه کبيره ده که صغيره، ممنوع دی که مباح؟

(۳) په هغو خبرونه اوريدل، يا د حضرت تهانوي رَحِمَهُ اللهُ د درس قرآن، يا د لاهور اسلامي کانفرنس او همدارنګه د نورو پروګرامونو ليدل څنګه دي؟

(۴) که چيرته د غير مشروع نشرياتو (خپرونو) له وجې د هغو استعمال ممنوع دی نو بيا هر ډول د حرب او قتال آلات ساتل ولې ممنوع نه دي؟ لکه چې په دې سره هم هر وخت د کوم مسلمان د ناروا قتل صدور ممکن بلکې يقيني دی، جواب له دليل سره وليکئ؟ **بينوا توجروا**

المستفتي سيد فضل معبود، عثمان خيل، درګی... ۹/ ربيع الاول ۱۳۹۵ هـ

**الجواب:** د راډيو په ذريعه د اواز عکس رسيدلی شي او د تلويزيون په ذريعه د اواز او بدن دواړو عکس رسيدلی شي. پس د راډيو په ذريعه خبرونه وغيره د روا اوازونو اوريدل روا شول. د سرود او ناروا اوازونو اوريدل ناروا شول (۱)

**يجرى على العكس حكم الأصل**

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: وهذا يفيد أن آلة اللهو ليست محرمة لعينها بل لقصد اللهو منها إمامن سامعها أومن المشتغل بها وبه تشعر الإضافة ألاترى أن ضرب تلك الآلة بعينها حل تارة وحرم أخرى باختلاف النية بسماعها والأمور بمقاصدها.

(رد المحتار ۵: ۲۴۷، كتاب الحظر والإباحة، قبيل فصل في اللبس.

لحدیث: كأنما ينظر اليها (رواه ابوداؤد)(١) أنكر عليه الصلوة والسلام على المتخيل أيضًا. او د تلویزیون په ذریعه که چیرته روا اواز د سري ښځه واورېدل شي نو د هغه په کتلو او اورېدلو کې هیڅ حرج نشته، که چېرته ښځې ته ګوري او اوري يې نو د مخکني حديث د دلالت په بناء ناروا او منکر شول، ولما حرم النظر إلى الثوب ان كان تصف حجم البدن به كما في ردالمحتار ٥: ٣٢١ (٢) فتكون النظر الى العورة ممنوعة أيضًا، فافهم

(٢)، د همدې دوارو غیر مشروع استعمالوونکی فاسق دی، (٣) د هغه پسې اقتداء کول (د صالحینو لپاره) مکروه ده (٤) وهوالموفق

---

١) عن ابن مسعود رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: لاتباشر المرأة المرأة فتنعتها لزوجها كأنما ينظر إليها.
(سن أبي داؤد ٢: ٢٩٢، كتاب النكاح، باب مايؤمر به من غض البصر)

٢) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: ولوكانت (ثياب المرأة) تصف (ماتحتها) يكون ناظراً إلى أعضائها ....والعلة والله أعلم خوف الفتنة....ويحتمل أن تكون العلة كون ذلك استمتاعاً بمالايحل بلاضرورة.
(ردالمحتار ٥: ٢٦٣، كتاب الحظر والإباحة، فصل في النظر والمس)

٣) في التاتارخانية: وفي فتاوى أهل سمرقند: استماع صوت الملاهي كالضرب بالقصيب وغير ذلك حرام من الملاهي وقد قال عليه السلام: الملاهي معصية والجلوس عليها فسق والتلذذ بها من الكفر.
(فتاوى تاتارخانية ١٨: ١٨٩، كتاب الكراهية، الفصل الثامن عشر في الغناء واللهو)

٤) قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: وينبغي أن يكون محل كراهة الاقتداء بهم عند وجود غيرهم وإلافلا كراهة كمالايخفى.
(البحر الرائق ١: ٣٤٩، باب الإمامة)

## په لاسپیکر باندې د خطبې او جمعې لمونځ او د ښځو لپاره د خطبې اورېدلو مسئله

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې په لاسپيکر باندې د خطبې او لمانځه څه حکم دی؟ ايا د خطبې اوريدل په ښځو باندې هم واجب دي؟ **بينوا توجروا**

السمتفتي: متعلم حقانيه....۸/ جمادی الثاني ۱۴۰۴هه

**الجواب:** کله چې د اوازونو د ټکر (تصادم) خطر نه وي نوروادی او په ښځو باندې نه دخطبې اوريدل واجب دي او نه پرې د جمعې لمونځ واجب دی. (۱) **وهوالموفق**

## په ټيپ ريکارډ باندې د تلاوت په اوريدلو کې هيڅ ثواب نشته

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې سورت يسين په کيسټ (فيته) کې ثبت (ريکارډ) شوی. د سهار په وخت کې د ثواب په نيت اوريدل د ثواب کار دی او که نه دی؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: حاجي مسلم خان، تنګی، چارسده.... ۱۹۹۲ع/۹/ ۵

**الجواب:** دقرآن د عکس په اورېدو کې نه ثواب شته نه عذاب دی (۲) **وهوالموفق**

---

۱) في الهندية: لاتجب الجمعة على العبيد والنسوان والمسافرين والمرضى. (فتاوى هندية ۱: ۱۴۴، الباب السادس عشر في صلاة الجمعة)

وقال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى: وشرط وجوبها الإقامة والذكورة ....فلا تجب على مسافر ولا على امرأة.

(البحر الرائق ۲: ۱۵۱، باب صلاة الجمعة)

۲) قال العلامة الكاساني رحمه الله تعالى: بخلاف السماع من الببغاء والصدى، فإن ذلک ليس بتلاوة. (بدائع الصنائع ۱: ۴۴۵، سجدة التلاوة، فصل في بيان من تجب عليه السجدة)

وقال المفتي کفايت الله رحمه الله تعالى: په...(دحاشيي پاتې برخه په راوانه صفحه)

## په جومات کې د ټيپ ريکارډ په ذريعه وعظ اورېدل

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې په جومات کې د ټيپ ريکارډ په ذريعه وعظ اورېدل روا دي او که نه؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: نامعلوم

**الجواب:** نه ممنوع دي نه مطلوب دي. **وهوالموفق**

## د راډيو په ذريعه د روژې، اختر او صبح صادق معلومولو مسئله

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د راډيو په ذريعه د روژې، اختر او صبح صادق ثابتول روا دي او که نه؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: نامعلوم

**الجواب:** په ديني امورو کې له علماء کرامو پرته د همدې امورو فيصله کول خطرناک دي (۱) **وهوالموفق**

## په ټي وي باندې د خانه کعبې، حج، اذان، تلاوت او نورو ديني معلوماتو کتلو حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې يو مولوي

---

(د حاشيې پاتې برخه)... ريډيو باندې قرآن مجيد لوستل او د ريډيو په ذريعه قرآن کريم اوريدل مباح دي.

(کفايت المفتي ۹: ۲۱۸، کتاب الحظر والإباحة، سولهوان باب ريڈيو اور لاؤڈ سپيکر کے بيان ميں)

۱) قال العلامة القرطبي رحمه الله تعالى: فَاسْئَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ (النحل: ۴۳) وأجمعوا على أن الأعمى لابدله من تقليد غيره ممن يثق بميزه بالقبلة إذا أشكلت عليه، فكذلك من لاعلم له ولابصربمعنى مايدين به لابدله من تقليد عالمه، وكذلك لم يختلف العلماء أن العامة لايجوز لهاالفتيا، لجهلهابالمعاني التي منها يجوز التحليل والتحريم. (الجامع لأحكام القرآن ۱۱: ۲۴۱، سورة النحل آيت: ۴۳)

صاحب ټي وي ته ډمخانه وويل، په داسې حال کې چې په ټي وي باندې ديني معلومات، د کلام پاک تلاوت، اذان، خانه کعبه او حج هم کتل کيږي. ايا رښتيا هغه ډمخانه او د ګناه شی دی؟ او د ذکر شويو شيانو په هغه باندې کتل روا دي او که نه؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي: زمان خان، کيماړی کراچی ۱۹/ شوال ۱۴۱۱هه

**الجواب: ومنه الصدق والصواب** ټي وي بذات خود د اسلحې په شان يوه آله ده. که چيرته په روا شيانو کې استعمال شي؛ نو د غزا د اسلحې په شان روا کيږي او که چيرته په ناروا کارونو کې استعمال شي؛ نو د قطاع الطريق د اسلحې په شان ناروا کيږي[۱] او چونکه مشهور دويم شق دی، لهذا فتوی د عدم جواز ورکول کيږي، په اشرف المخلوقات باندې ضروري ده چې اطاعت وکړي که نه نو اسفل سافلين به شي [۲] **وهوالموفق**

## د راډيو او ټي وي جوړوونکي آمدن حرام دی

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې په شريعت کې د راډيو او ټي وي جوړونکي آمدن حلال دی که حرام؟ **بينوا توجروا.**

**المستفتی:** مولوي سيد امير، تخت بهائي مردان ۲۸/ جمادی الثانی ۱۴۰۴ھ

**الجواب:** چونکې په عام ډول دغه آلات د لهو لعب په ډول استعماليږي، لهذا

---

۱) قال العلامة المرغيناني رحمه الله تعالى: ويكره بيع السلاح في أيام الفتنة....وقد بيناه في السير وإن كان لايعرف أنه من أهل الفتنة لابأس بذلك لأنه يحتمل أن لايستعمله في الفتنة فلايكره بالشک.
(الهداية ۴: ۴۷۲، كتاب الكراهية، فصل في البيع)

۲) قال الله تبارک وتعالى: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ. (سورة النساء آيت: ۵۹)

جوړول یې په معصیت کې د مرستې (کومک) له وجې حرام دي.(۱) والله أعلم

## په ټي وي باندې د فحش او بې حیایي پروګرامونو کتلو حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو د دې مسئلې په باره کې چې دلته په انګلینډ کې په هر کور کې د زړه خوشحاله کولو لپاره تلویزیون عام دی. اوس دوی یو پروګرام خپور (نشر) کړی دی کوم چې بې انتهاء په بې حیایي باندې مشتمل دی، غیرت یې نه مني چې مونږ مور، پلار او بچیان ټول یو ځای په یوه کمره کې هغه وګورو، د هغه د کتلو څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

المستفتي: محمد اعظم، بولټن، انګلینډ ....... ۱۹/صفر ۸۹ع

**الجواب:** چونکه د تلویزیون په ذریعه په غیر محرمو باندې داسې نظر لګیږي کوم چې موجب فتنه او د شهوت باعث دی. ګویا براه راست او د تلویزیون په ذریعه په کتلو سره یو شانته لذت (خوند) او شهوت پوره کېدلی شي، لهذا په تلویزیون باندې پروګرام کتل د اسلامي اصولو په بناء باندې ناروا دي، في رد المحتار ۵ مخ ۳۲۷، الثاني لم أر مالو نظر إلى الأجنبية من المرآة أو الماء وقد صرحوا في حرمة المصاهرة بأنها لا تثبت برؤية فرج من مرآة أو ماء لأن المرئي مثاله لا عينه بخلاف مالو نظر من زجاج أو ماء هي فيه لأن البصر ينفذ في الزجاج والماء فيرى ما فيه، ومفاد هذا أنه لا يحرم نظر الأجنبية من المرآة أو الماء الا أن يفرق بأن حرمة المصاهرة

---

۱) قال الله تبارک وتعالی: وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ. (سورة المائدة آیت: ۲)
وفي المرقدة: (عن جابر رضي الله تعالى عنه قال لعن رسول الله ﷺ اكل الربا ومؤكله وكاتبه وشاهديه) قال النووي فيه تصريح بتحريم كتابة المترابيين والشهادة عليهما وبتحريم الإعانة على الباطل.
(مرقاة المفاتيح ۶: ۵۹، باب الربا)

بالنظر ونحوه شدد في شروطها لأن الأصل فيها الحل بخلاف النظر لأنه انما منع منه خشية الفتنة والشهوة، وذلك موجود هنا، انتهى، ويدل عليه أيضاً ما فيه ۵: ۳۲۸، ولو كانت (ثياب المرأة) تصف (ما تحتها) يكون ناظراً الى اعضاءها ويؤخذ مما هنا تقييده بما اذا كان بغير شهوة فلو بها منع مطلقاً، انتهى(۱) وجه الدلالة أنه لما حرم النظر الى اعضائها عند الستر بالثياب المخصوصة فالنظر إليها بلا ثياب أشد فتنة منه فافهم، وهو الموفق

## په راډیو، ټیپ ریکارډ او ټي وي باندې د تلاوت یا د سندرو اورېدو حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې په ټیپ ریکارډ یا تلویزیون باندې د تلاوت اوریدل یا د سندرو اورېدل څه حکم لري او ایا د تلاوت ثواب په دې صورت کې شته دی؟ او ایا د سندرو په اورېدلو باندې په دې صورت کې ګناه شته؟ بينوا توجروا.

**المستفتي:** عزیز الرحمن، متعلم حقانیه اکوړه خټک ... ۴/ جمادی الثانی ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** چونکه د دغو آلاتو په ذریعه اصل اواز نشي اوریدل کیدی بلکې عکس اورېدل کیږي، لهذا په همدې آلاتو سره اوریدل نه بذات خود موجب ثواب دي او نه موجب عذاب دي، (۲) لیکن کله په عکس سره هغه ناروا خواهشات پوره کوي کوم چې په اصل سره پوره کیدی شي نو دغه عکس هم ناروا شو،

---

۱) ردالمحتار ۵: ۲۶۳، کتاب الحظر والإباحة، فصل في النظر والمس)

۲) قال العلامة الكاساني رحمه الله تعالى: بخلاف السماع من الببغاء والصدى فإن ذلک ليس بتلاوة.

(بدائع الصنائع ۱: ۴۴۵، کتاب الصلوة، سبب وجوبها)

لحديث أبي داؤد كأنما ينظر اليها الخ(١) وهوالموفق.

## په جومات کې په ټیپ ریکارډ سره وعظ اورېدل

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې که چیرته په ټیپ ریکارډ کې د وعظ او نصیحت پیته (کیسټ) واچول شي نو د هغې په جومات کې اورېدل ممنوع دي او که نه؟ **بينواتوجروا.**

**المستفتي:** مولانا آغا محمد طيب، بلوچستان ... ۶/ رمضان المبارک ۱۳۹۹ھ

**الجواب:** که چیرته له ایذاء (ضرر) څخه خالي وي نو نه ممنوع دی او نه مطلوب دی، که نه نو ممنوع دی (٢). **وهوالموفق**

## په جومات کې په راډيو باندې د تلاوت، تقرير، د اختر او روژې د سپوږمۍ خبر اورېدل

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د قرآن مجيد تلاوت، يا د يو چا تقرير اورېدل، يا د اختر، لوی اختر يا د رمضان شريف د سپوږمۍ د خبر لپاره په جومات کې د راډيو اورېدل څنګه دي؟ دا خو به د جومات توهين نه وي؟ راډيو خو په ظاهره مشين دی، خو فلم سندرې، ترانې او نغمې ناروا کيدلی شي؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: نامعلوم ... ۸/ رمضان المبارک ۱۳۸۸ھ

---

١) عن ابن مسعود رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: لاتباشر المرأة المرأة فتنعتها لزوجها كأنما ينظر إليها.
(سنن أبي داؤد ٢: ٢٩٢، كتاب النكاح، باب مايؤمر به من غض البصر)

٢) فقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: أجمع العلماء سلفاً وخلفاً على استحباب ذكر الجماعة في المسجد وغيره إلا أن يشوّش جهرهم على نائم أومصل أو قارئ.
(ردالمحتار ١: ٤٨٨، باب مايفسد الصلاة ومايكره فيها، مطلب في رفع الصوت بالذكر)

**الجواب:** دا مقاصد له ځايي (مقامي) علماوو څخه حاصلېدلی شي، همدارنګه په راډيو سره له جومات څخه د باندې هم کېدلی شي. لهذا راډيو (کومه چې د عام لهو لعب له آلاتو څخه ده) جومات ته يې د وړلو هيڅ ضرورت نشته (۱) وهوالموفق

## په لاسپيکر باندې د لمانځه او اذان حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې په تيرو ورځو کې مې يوه فتوى له نظره تيره شوه په کومه کې چې د عمدة الرعاية په حواله د مولانا عبدالحی مرحوم او څو الفاظ د مفتي شفيع درج شوي وو چې که چيرته امام په لاسپيکر باندې د امامت په حالت کې قرآن شريف وايي نو دا ډول د قرآن شريف ويل په لمانځه کې روا نه دي، هو! اذان وغيره روا دی، همدارنګه په دې حالت کې دامام پسې اقتداء کول هم ناروا ده، سره له دې چې ډير غټ غټ علماء په لاسپيکر باندې لمونځ کوي، تاسو مو په ځواب باندې ونازوئ؟ **بينواتوجروا**

المستفتي غلام محمد، مردان ..... ۲۸ / ذی الحجه ۱۳۹۹ هه

**الجواب:** د لاسپيکر او نورو نويو موجوده الاتو حکم دا دی چې بذات خود دغه الات نه مقصود دي او نه ممنوع، لحديث أبي داؤد: وماسکت عنه فهو عفو (۲)

---

۱) عن واثلة بن الأسقع رضي الله تعالیٰ عنه أن النبي ﷺ قال: جنبوا مساجدكم صبيانكم ومجانينكم وشراءكم وبيعكم وخصوماتكم ورفع أصواتكم وإقامة حدودكم وسلّ سيوفكم.

(سنن أبي ماجة: ۵۵، أبواب المساجد والجماعات، باب مايكره في المساجد)

۲) عن ابن عباس رضي الله تعالیٰ عنهما قال كان أهل الجاهلية يأكلون أشياء ويتركون أشياء تقذراً، فبعث الله نبيه ﷺ وأنزل كتابه وأحلّ حلاله وحرّم حرامه، فما أحلّ فهو حلال وما حرّم فهو حرام، وماسكت عنه فهو عفو.

(سنن أبي داؤد ۲: ۵۳۹، قبيل كتاب الطب، باب مالم يذكر تحريمه)

او دویمه یوه قاعده دا هم ده: لأن الأصل الاباحة في الأشياء[1] لهذا د لاسپیکر او نورو آلاتو بذات خود استعمال روا دی، البته که چیرته د لهو لعب یا د نورو خلاف شریعت امورو سبب گرځي؛ نو د هغو استعمال ناروا دی. [2] همدارنګه په لمانځه کې د ضرورت په وخت کې د لاسپیکر استعمال روا دی او د لاسپیکر د استعمال په وخت کې اقتداء هم صحیح ده، هكذا حكم تلاوة القرآن والعوظ والتقرير وغيرذلك[3] وهوالموفق

## د سندرو اورېدو لپاره د راډیو اخیستونکی مجرم دی که نه؟

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې يو كس د

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: وصرّح في التحرير بأن المختار أن الأصل الإباحة عندالجمهور من الحنفية والشافعية، وتبعه تلميذه العلامة قاسم، وجرى عليه في الهداية من فصل الحداد.
(ردالمحتار ۱: ۷۷، كتاب الطهارة، مطلب المختار أن الأصل في الأشياء الأباحة)

۲) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ومن ذلك ضرب النوبة للتفاخر، فلو للتنبيه فلا بأس به. (درمختار)
وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: وهذا يفيد أن آلة اللهو ليست محرمة لعينها، بل لقصد اللهو منها إمامن سامعها أومن المشتغل بها، وبه تشعرالإضافة، ألاترى أن ضرب تلك الآلة بعينها حلّ تارة وحرّم أخرى باختلاف النية بسماعها و الأمور بمقاصدها. (رد المحتار ۵: ۲۴۷، كتاب الحظر والإباحة، قبيل فصل في اللبس)

۳) قال المفتي كفايت الله رحمه الله تعالى: ما خوځله ددې آلې په لمونځ كې د استعمال حكم ليكلى دى ......هغه دا چې في حد ذاته ددې آلې د عدم جواز هيڅ وجه نشته په دې وجه د جمعې او د اخترونو خطبه او د وعظ او تقرير په مجلس كې ددې استعمال مباح دى، د لمونځ په لويو مجمعو كې ځوک چې تكبير خلكو ته رسوي د هغوى د آواز اوچتولو لپاره هم استعماليږي؛ نو هيڅ باک نشته.
كفايت المفتي ۹: ۲۱۱، كتاب الحظر والإباحة)

عربستان څخه راډيو راوړې ده، اوس که چيرته په هغې راډيو باندې نور خلک سندرې اوري نو د هغه په حق کې ګناه شته او که نه؟

المستفتي: غلام رسول وزير، وانا کيمپ ديره... ۱۴۰۰هـ/ ۳/ ۲.

**الجواب:** سره له منع غږوونکي او اوريدونکي مجرم دي، راوړونکي مجرم نه دي، والدليل عليه أن الراديو آلة لا حسن فيها ولا قبح فيها من حيث هي كالسيف، فالمجرم هو المباشر دون المتسبب(١) فافهم، وهو الموفق.

## په راډيو باندې د ښځو په اواز کې د خبرونو يا اعلاناتو اوريدو حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې په راډيو کې د ښځو په آواز باندې که خبرونه وي که ضروري اعلانونه وي، د سړي لپاره د هغو اوريدل صحيح دي او که نه؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي: ذاکر الله، پشاور... ۱۴۰۰هـ/ ۴/ ۲۱.

**الجواب:** د سړي لپاره د غير محرم ښځې اواز اوريدل ناروا دي (٢)، **وهو الموفق**

---

١) وفي شرح المجلة: إذا جمع المباشر والمتسبب أضيف الحكم إلى المباشر.
(شرح المجلة على هامش درر الحكام ١: ٨٠، المادة ٩٠)
وفي الأشباه: إذا اجتمع المباشر والمتسبب أضيف الحكم إلى المباشر.... فلا ضمان على من دفع إلى صبي سكيناً أو سلاحاً ليمسكه فقتل به نفسه.
(الأشباه والنظائر ١٦٣، القاعدة التاسعة عشرة)

٢) قال العلامة اللكهنوي: الاستفسار: صوت المرأة هل هو عورة؟
الاسبشار: اختلف فيه، فقيل: إنها عورة..... وفي فتح القدير: صرح في النوازل: أن نغمة المرأة عورة، وبنى عليها، أن تعلمها القرآن من المرأة أحب من تعلمها من الأعمى، ولهذا قال النبي ﷺ: التسبيح للرجل والتصديق للنساء، فلا يحسن أن يسمعها الرجل... وقيل: إنه ليس عورة ورجحه في الدر المختار،.... (باقي حاشيه په بل مخ)

## د ټي وي اخيستل او د هغه پروګرامونو او عکسونو ته د کتلو حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو د دې مسئلې په باره کې چې په موجوده وخت کې د ټي وي اخيستل، د هغه په پروګرامونو کې دلچسپي اخيستل او د ډرامو او وغيره کتل روا دي او که ناروا؟ او دغه عکسونه کوم چې مونږ ګورو حقيقت دی که تصوير دی او نن سبا خو په ټي وي باندې ښه پروګرامونه هم شته دي؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي: عبد المتين ډاګی، تصحيل صوابی، مردان ... ۱۴۰۰ھ/ ۱/ ۲۸

**الجواب:** په تلويزيون کې د آئينه په شان عکس ليدل کيږي نه اصل صورت، پس چونکه په دغه صورت سره هم نفساني لذت پوره کيدی شي، **لهذا حديث: إنما ينظر اليها (رواه أبوداؤد)** (۱) وغيره په بناء باندې په دغه آله سره نظر بالشهوة ناروا او منکر دی. (۲) **وهوالموفق**

---

(باتي حاشيه) واعتمد عليه ابن نجيم المصري في الأشباه، وفي غمز عيون البصائر: في شرح المنية: الأشبه أنّ صوتها ليس بعورة، وإنما يؤدي إلى الفتنة.
(نفع المفتي والسائل ۲۰۰، ۴۰۱، مايتعلق بالنظر والمس)

۱) عن ابن مسعود رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: لاتباشر المرأة لتنعتها لزوجها كأنما ينظر إليها.
(سنن أبي داؤد ۱: ۲۹۲، كتاب النكاح، باب مايؤمر به من غضّ البصر)

۲) قال العلامة ابن عابدين: (قوله النظر إلى ملاءة الأجنبية بشهوة حرام)... لو كان على المرأة ثياب لابأس بأن يتأمل جسدها مالم تكن ملتزقة بها تصف ماتحتها لأنه يكون ناظراً إلى ثيابها وقامتها، فهو كنظره إلى خيمة هي فيها ولو كانت تصف يكون ناظراً إلى أعضائها... فإن نظره بشهوة إلى ملاءتها أوثيابها وتأمله في طول قوامها ونحوه قد يدعوه إلى الكلام معها ثم إلى غيره، ويحتمل أن تكون العلة كون ذلك استمتاعاً بمالايحل بلاضرورة. (ردالمحتار ۵: ۲۶۳، كتاب الحظر والإباحة، فصل في النظر والمس)

## د سینما کتونکو حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د سینما کتلو څه حکم دی؟

المستفتي: کامران راشدی ..... ۶/ ربیع الثانی ۱۴۰۵ هـ

**الجواب:** د سینما کتل حرام دي، په هغې کې سرود اوربدل کیږي (۱) او غیر محارم صورتونه پکې لیدل کیږي. (۲) په همدې عکس سره د اصل په شان ناروا خوند اخیستل کېدی شي، ومستدله ما رواه أبوداؤد کأنما ینظر الیها. (۳) وهوالموفق

## له سینما څخه د ترلاسه شویو روپو په اجرت کې د اخیستو حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې زید یو تعلیم یافته انسان دی، هغه د بکر له ماشومانو سره په پرایویټ (شخصي) ډول د مکتب کار کوي او بکر زید میاشتنی تنخوا ورکوي، مګر د بکر روپۍ له

---

۱) عن أبي أمامة رضي الله تعالى عنه قال قال النبي ﷺ....أمرني ربي بمحق المعازف والمزامیر. (مشکوة المصابیح ۳۱۸،باب بیان الخمر و وعید شاربها)

۲) قال الله تبارک وتعالى: قُل لِّلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ ۚ ذَٰلِكَ أَزْكَىٰ لَهُمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا يَصْنَعُونَ.

(سورة النور آیت ۳۰،پاره ۱۸)

وعن بریدة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ لعلي: یاعلي! لاتتبع النظرة النظرة فإن لک الأولى ولیس لک الآخرة.

(مشکوة المصابیح ۲۶۹، کتاب النکاح، باب النظر إلى المخطوبة)

۳) عن ابن مسعود رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله ﷺ: لاتباشر المرأة المرأة لتنعتها لزوجها کأنما ینظر إلیها.

(سنن أبي داؤد ۱: ۲۹۲، کتاب النکاح، باب مایؤمر به من غض البصر)

سینما څخه ترلاسه شوي دي، يعنې هغه د سینما مالک دی، آیا د زید لپاره د همدې روپیو اخیستل روا دي؟ هغه په خپل استعمال کې مصرفولی شي؟ که چیرته نه شي کېدلی نو د دغو روپیو مصرف غریب رشته دار جوړیدلی شي یا که هغو ته يې اخیستل هم حرام دي؟ د قرآن او حدیث په رڼا کې جواب راکړئ؟
**بینوا توجروا**

المستفتي نامعلوم

**الجواب:** که چیرته یقیناً یا په غالب ګمان سره معلومه شي چې دا له سینما څخه حاصل شوی مال دی نو نه اخیستل يې ضروري دي (۱) او که چیرته شکي وي او یا معلومه شي چې په قرض یا په تجارت وغیره سره ترلاسه شوی دی: نو اخیستل يې روا دی. **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى :الحرام ينتقل ،فلو بأمان وأخذ مال حربي بلا رضاه وأخرجه إليناملكه ،وصح بيعه ،لكن لايطيب له ولا للمشتري منه، وفي حظر الأشباه: الحرمة تتعدد مع العلم. (الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى :مانقل عن بعض الحنفية من أنّ الحرام لا يتعدي ذمتين سألت عنه الشهاب بن الشلبي؟ فقال؟ هو محمول على ما إذا لم يعلم بذلك، أما لو رأى المكاس مثلاً يأخذ من أحد شيئاً من المكس،ثم يعطيه آخر ،ثم يأخذ من ذلك الآخر آخر فهوحرام.

(رد المحتار ۴:۱۴۵، كتاب البيوع ،باب البيع الفاسد ،مطلب الحرمة تتعدد)

# باب مسائل الکهرباء وعدّادها

## (د بجلی او میټر مسائل)

### د حکومت له اجازې پرته له خپل میټر څخه نورو ته بجلی ورکول

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې حکومت حکم جاري کړی چې د یو میټر څخه کچه تارونه نورو ځایونو ته ورنه کړئ، اوس زید میټر لګولی دی او عمر ورته وایي چې وروره ماته د خپل میټر څخه برق راکړه او مصرف به یې په ګډه ادا کوو. ایا عندالله دغه دواړه مجرمان دي؟

بینواتوجروا.

المستفتي: قاري فدا محمد، مانسهره..... ۲۵/ اګست ۱۹۷۵ع

**الجواب:** دا قانوني جرم دی مذهبي جرم نه دی، لخلوه عن الخداع والسرقة وغيرهما، ولأنه تمليك من جانب الحكومة لاباحة، والمالك جازله التمليك (۱) وهوالموفق.

---

۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالی: ولايمنع الشخص من تصرفه في ملكه إلا إذا كان الضرر بجاره ضرراً بيّناً فيمنع من ذلك وعليه الفتوی. (الدر المختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالی: والحاصل أن القياس في جنس هذه المسائل أن يفعل المالك مابداله مطلقاً لأنه متصرف في خالص ملكه.

(ردالمحتار ۴: ۴۰۱، كتاب القضاء، باب التحكيم، مسائل شتّی)

وفي شرح المجلة: الماء والكلأ والنار مباحة والناس في هذه الأشياء الثلاثة شركاء ...فمن سبق إلی شيئ من ذالک من وعاء أو غيره وأحرزه فهو أحق به وهو ملک له دون من سواه، يجوز له تمليكه بجميع وجوه التمليک.

(شرح المجلة ۴: ۱۷۵، المادة ۱۲۳۴، الباب الرابع في بيان شركة الإباحة، الفصل الأول)

## د بجلۍ له میټر څخه زیات استعمال کول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې د بجلۍ له میټر څخه زیات استعمالول او قیمت کم ورکول روا دي؟ **بينواتوجروا**.

المستفتي: ساقي محمد، نوشهره... ۲۴/ ذی القعده ۱۳۹۶هـ

**الجواب:** د حکومت د رعایت مطابق د بجلۍ مصرفول روا دي، زیات قابل غور دی (۱) **وهوالموفق**

## د میټر په بندولو د پاخه شوي خوراک څښاک حکم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې په موجوده وخت كې يو شمير خلک میټر په کورونو کې بند کړي، وجه دا بيانوي چې په بند میټر باندې مصرف ډیر کم راځي، په خلاص میټر باندې ډیر زیات مصرف راځي، ایا په دغه میټر باندې د خوراک څښاک پخول روا دي او که نه؟ **بينواتوجروا**.

المستفتي: حکیم غلام حسن، مانیری پایان، صوابی......۲۴/ ۱۰/ ۱۹۸۹ع

---

۱) في شرح المجلة: مخالفة المستأجر مأذونيته بالتجاوز إلى مافوق المشروط توجب الضمان وأما مخالفته بالعدول إلى مادون المشروط أو مثله لاتوجبه.....تعدى الاجير هوأن يعمل عملًا أو يتحرك حركة مخالفين لأمرالآجر صراحةً كان أودلالةً، المراد بالعمل المخالف لأمرالاجر دلالة أن يعمل الأجير في المستأجر فيه عملًا لايرضى به المالك....لأن كل عمل لم يكن ماذونًا فيه إذا كان من شأنه أن لايرضى به المالك يكون منهيًا عنه دلالة، فدخل في العمل المخالف لأمرالآجر دلالةً.
(شرح المجلة ۲: ۷۰۹، المادة ۶۰۵، الكتاب الثاني في الإجارات، الباب الثامن)

**الجواب:** دغه اقدام خيانت دی، (۱) ليکن په دې سره دغه خوراک څښاک نه حراميږي (۲) **وهوالموفق**

## د حکومت څخه د بجلي يا د مالکې غلا کول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې د موجوده حکومت څخه د بجلی يا د مالکې وغيره غلا کول روا دي او که نه؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي جناب تاج محمد . کوهاټ

**الجواب:** الملح قبل الاحراز جاز أخذه خفية لأن المسلمين شركاء فيه لحديث ورد بذلك(۳) بخلاف الثاني، الاأن يقال أنها..............

---

۱) وفي مجموعة قواعدالفقه :الخيانة مخالفة الحق بنقص العهد في السر ونقيض الخيانة الأمانة .(مجموعة قواعدالفقه ۲۸۵،بحث الخاء)

۲) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالیٰ :(قوله اکتسب حراماً الخ) توضيح المسألة ما في التاتارخانية حيث قال :رجل اکتسب مالًا من حرام ثم اشترى قبل الدفع بها ودفعها أو اشترى قبل الدفع بها ودفع غيرها أو اشترى مطلقًا ودفع تلك الدراهم لو اشترى بدراهم آخر و دفع تلك الدراهم ،قال أبونصريطيب له ولايجب عليه أن يتصدق إلا في الوجه الأول ،وإليه ذهب الفقيه أبوالليث.....وقال الکرخي في الوجه الأول والثاني لايطيب وفي الثلاث الأخيرة، يطيب، وقال أبوبکر لايطيب في الکل لکن الفتوى الآن على قول الکرخي دفعاً للحرج عن الناس.

(ردالمحتار ۴: ۲۴۴،مطلب اذا اکتسب حراماً ثم اشترى فهوعلى خمسة أوجه)

۳) وفي المشکوة :عن عائشة رضي الله تعالىٰ عنها... (پاتې حاشيه په بل مخ)

نار محرزة(١) فافهم، وهو الموفق.

## د بجلۍ د زيات بيل په راتلو باندې د مصرف كوونكي لخوا د تليفون محكمې ته د كمو روپيو وركول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې ما په هوټل كې د بجلۍ كنكشن لګولى، تر شپږو مياشتو پورې بند وو، بيا يو ځل د بجلۍ بيل ۱۲ زره روپۍ راغلو كوم چې بېخي زيات دى او ما دومره بجلۍ نه ده استعمال كړې، كه چېرته زه د هغه په بدل كې د تليفون محكمې ته كمې روپۍ وركړم نو آيا په شرعي ډول ګنهګار به يم او كه نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: جناب زربت خان، دى مال هوټل،

ايبټ آباد....۲۶/ شوال ۱۳۹۹هـ

**الجواب:** مظلوم له ظالم څخه خپل حق په روا او پټ ډول تر لاسه كولو كې شرعي مجرم نه دى. ماخوذ از شامي كتاب الكراهية(٢)......

---

(د حاشيې پاتې برخه) أنها قالت يارسول الله !ما الشيئ الذي لايحل منعه؟ قال: الماء والملح والنار.

(مشكوة المصابيح ۲۶۰، باب إحيار الموات، الفصل الثالث)

١) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله المسلمون شركاء في ثلاث) أي شركة إباحة لاشركة ملك، فمن سبق إلى شيئ من ذلك في وعاء أو غيره و أحرزه فهو أحق به وهو ملك له دون من سواه....وإن أخذه أحد منه بغير إذنه ضمنه.....(قوله النار)..... إذا أوقدها في موضع مملوك فإن له منعه من الإنتفاع بملكه، فأما إذا أراد أن يأخذ من فتيلة سراجه لو شيئاً من الجمر فله منعه لأنه ملكه.

(رد المحتار ۶:۳۱۲، كتاب إحياء الموات، فصل الشرب)

٢) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ليس لذي الحق أن يأخذ غير جنس حقه و جوّزه الشافعي وهو الأوسع. (الدر المختار)..... (پاتې حاشيه په بل مخ)

وکتاب الحجر[۱] وھو الموفق

(د حاشيې پاتې برخه) وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالٰى: أن عدم جواز كان في زمانهم، أما اليوم فالفتوى على الجواز....وفيه وجد دنانير مديونه وله عليه دراهم فله أن يأخذه لإتحادهما جنسا في الثمنية.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۵: ۳۰۰، كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالٰى: (قوله يعنى بلا أمره) لأن للدائن أن يأخذ بيده إذا ظفر بجنس حقه بغير رضا المديون فكان للقاضي أن يعينه....قال الحموي أن عدم جواز الأخذ من خلاف الجنس كان في زمانهم لمطاوعتهم في الحقوق والفتوى اليوم على جواز الأخذ عند القدرة من أى مال كان لاسيما في ديارنا لمداومتهم العقوق.

(ردالمحتار ۵: ۱۰۵، كتاب الحجر)

(ومثله في الفقه الإسلامي وأدلته ۷: ۵۴۵۱، كتاب السرقة)

# باب مسائل البيشى

## (د کمیټی مسائل)

## کمیټی (هره میاشت د شریکانو په اجتماعي روپیو د پچې (قرعه اندازي) په ذریعه د تقسیمولو) حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې مثلاً دیرش کسان جمع شوي دي، هر یو یوه ورځ سل سل روپۍ ورکوي او په لسو ورځو کې دیرش زره روپۍ جمع کیږي، بیا پچه اچول کیږي نو د یوې ورځې. بیا په همدې ډول سل سل روپۍ اچوي او لس ورځې وروسته بیا پچه اچوي. بیا د یو چا وخیږي، تردې چې ټول کسان پوره شي. هریو کس ته خپلې دیرش دیرش زره روپۍ رسیږي، چاته مخکې او چاته وروسته، دغه معامله روا ده او که ناروا؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي: مصباح الدین، صده، کوهاټ... ۱۹۱۹/۳/۲۳ع

**الجواب:** چونکه دغه پچه اچول (قرعه اندازي) د پاک خاطر او بې انتظامي لیرې کولو لپاره ده نه د تملیک او تملک لپاره، لهذا په ظاهره په دې کې کوم کراهت نشته (۱) **وهوالموفق**

---

۱) وفي حاشية الهداية: كمايكون القرعة في القسمة لتطيب القلوب، وصورتها أن يكتب أسامي الشركاء ويجعلها بطاقات ويطوي كل بطاقة ويجعلها شبه البندقة ويدخلها في طين ثم يخرجها ثم يدلكها ثم يجعلها في وعاء أوفي كمه ثم يخرج واحداً بعد واحد. (الهداية ۳:۱۶۵، حاشيه نمبر ۱، كتاب الشهادة، باب من يقبل شهادته ومن لايقبل) وقال العلامة العيني: (كالقرعة) في أنها ليست بحجة..... وأراد به القرعة التي بعد القسمة لتعيين الأنصباء، وأنها ليست بحجة ومع هذا يجوز استعمالها في تعيين الأنصباء. (البناية على الهداية ۱۱:۴۱۳، كتاب الشهادة، باب من يقبل شهادته ومن لايقبل) وفي شرح المجلة: كيفما يتصرف صاحب..... (باقي حاشيه په بل مخ)

## د کمېټۍ په شریکانو کې د یوه شریک د مړ کېدو مسئله

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې نن سبا کاروباري خلک عموما کمېټه اچوي، د هغې طریقه داسې ده چې معلوم کسان هره ورځ لس یا پنځوس روپۍ مثلا جمع کوي، بیا د میاشتې په اولنیو تاریخونو کې پچه (قرعه) راووځي، د چا نام چې راووځي ټولې روپۍ هغه ته ورکوي، په هره میاشت کې همدا معمول روان وي، هر یوه ته خپلې روپۍ ضرور ورکول کیږي، مګر په نمبر سره ورکول کیږي، اوس سوال دا دی چې شرعاً دغه مروجه طریقه روا ده که نه؟ او د یو شریک د مړ کیدو په صورت کې مسئله څه ده؟ مهرباني به مو وي په خواب سره مو ونازوی؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي: اسلم خان اورکزئی، کرم ایجنسی ...... ۱۹۱۹/۳/۳ء

**الجواب:** دغه معامله بذات خود روا ده، دا قیمار نه دی، په دې کې ماته خوړل نشته، صرف مخکې وروسته کېدلی شي. (۱) البته که چېرته په دغو شریکانو

---

(د حاشیې پاتې برخه) الملک المستقل بملکه یتصرف أیضاً في الملک المشترک أصحابه بالاتفاق کذلک.... یجوز لأحد أصحاب الحصص التصرف مستقلاً في الملک المشترک بإذن الآخر.

(شرح المجلة ۴: ۱۱، ۱۲، المادة ۱۰۶۹، ۱۰۷۱، الفصل الثاني في بیان کیفیة التصرف في الأعیان المشترکة)

۱) قال الإمام ابن الهمام رحمه الله تعالیٰ: فکما أن تعلیق الاستحقاق بخروج القرعة قمار فکذلک تعیین المستحق بخلاف قسمة المال المشترک لأن للقاضي هناک ولایة التعیین من غیر قرعة وإنما یقرع تطییباً للقلوب ونفیاً لتهمة المیل عن نفسه فلایکون ذلک في معنی القمار.

(فتح القدیر ۷: ۲۲۹، کتاب الدعوی، باب مایدعیه الرجلان)

کې کوم يو له ګټلو مخکې مړ شي نو د هغه ټول قسطونه د هغه ورثه وو ته دي واپس کړی شي او کوم شريک چې د ګټلو وروسته مړ شي؛ نو د هغه له ورثه وو دي د داخل شويو روپيو پرته واپس واخلي، (١) کنه نو دغه معامله قيمار شو (٢).

**وهوالموفق.**

---

١) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: يبدء من تركة الميت الخانية عن تعلق حق الغير بعينها ......بتجهيز .....ثم تقدم ديونه التي لها مطالب من جهة العباد.
(الدر المختار ٥: ٥٣٥، كتاب الفرائض)

٢) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: لأن القمار من القمر الذي يزداد تارة وينقص أخرى، وسمي القمار قماراً لأن كل واحد من المقامرين ممن يجوز أن يذهب ماله إلى صاحبه، ويجوز أن يستفيد مال صاحبه وهو حرام بالنص.
(ردالمحتار ٥: ٢٨٥، كتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع)

# باب التصرف فى الملكية

## په خپل ملکیت کې داسې تصرف کول په کوم سره چې ګاونډي ته ښکاره ضرر رسیږي

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې که چيرته يو کس په خپل ملکيت کې تصرف کول غواړي، ليکن په دغه تصرف سره نږدې ګاونډي ته ښکاره ضرر رسيږي، آيا دا ډول تصرف د شرعي اصولو له مخې روا دی او که ناروا؟ **بينوا توجروا**

المستفتي: نامعلوم......۱۹۷۵ء/ ۵/ ۱۳

**الجواب:** دا تصرف ناروا دی، لمافی ردالمحتار ۴: ۲۲،من تصرف فی خالص ملکه لایمنع ولو أضرّ بغیره لکن ترك القیاس فی محل یضرّ بغیره ضرراً بیناً،وقیل وبه أخذ کثیرمن المشائخ وعلیه الفتوی(۱) وقال بعد أسطر: قلت الضرر البین یزال ولو قدیما، کما أفتی به علامة المهنداری(۲) وبمعناه فی شرح الأشباه: ۷۶(۳).

**نوټ**: ضرر بين هغه ضرر دی کوم چې ښکاره وي، دليل ته محتاج نه وي، همدارنګه له هغه څخه ځان ساتل کېدی نه شي **وهوالموفق**

---

۱) ردالمحتار ۴:۲۴۵،باب المتفرقات،مطلب دیغ داره وتأذی الجیران)

۲) ردالمحتار ۴:۲۴۵،باب المتفرقات،مطلب الضرر البین یزال ولو قدیماً)

۳) وفي شرح الأشباه: الضرر یزال،أصلها قوله علیه الصلاة والسلام: لاضرر ولاضرار...... وفسّره في المغرب: بأنه لایضرّ الرجل أخاه ابتداءً ولا جزاءً.
(شرح الأشباه ۸۵،القاعدة الخامسة، الضرر یزال)

## د یو چا په شرعي ملکیت کې له اجازې پرته تصرف ناروا دی

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د یو خاص قوم درمن خیل یوه ژرنده ده او د هغې لپاره یو نهر هم دی، د دریاب اوبه په دغه نهر کې بهیږي او شاو خوا ځمکو ته هم بهیږي، آیا دغه قوم د خپلې ژرندې لپاره دبل قوم کهتبه خیل په ځمکه کې له اجازې پرته نهر کندلی شي؟ **بینوا توجروا**

المستفتي: میر شاهد الله، وزیرستان...... ۱۹۷۲ع/۷/۱۹

**الجواب:** واضحه دي وي چې د چا په شرعي ملکیت کې له اجازې پرته تصرف کول ناروا دی، (۱) والمسئلة واضحة ولا اختلاف فیها **وهو الموفق.**

## په خپله ځمکه کې د کور جوړوونکي په زوره منع کول

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې یو کس د کلي په خلکو کې تنگ شو، بېرون په خپل فصل کې کور جوړوي، دده گاونډیان په ده باندې دغه کور بندوي، آیا دده گاونډیانو ته په شریعت کې دا حق شته چې هغوی په ده باندې کور بند کړي؟ ځکه چې هغوی دده له ضرر څخه ډار شوي دي. **بینوا توجروا.**

المستفتي: نامعلوم ......... ۴/ جون ۱۹۷۵ع

**الجواب:** **محترم المقام دامت برکاتهم، السلام علیکم،** واضحه دي وي چې په خپله

---

۱) قال العلامة الحصكفي: لايجوز التصرف في مال غيره بلا إذنه ولا ولايته.
(الدر المختار ۵: ۱۴۰ كتاب الغصب، مطلب فيما يجوز من التصرف بمال الغير بدون إذن صريح)
وفي شرح المجلة: لايجوز لأحد أن يتصرف في مال الغير بلا إذنه.... فتصرف الغير في مال الغير ممنوع إلا تكون وصاية أو ولاية أو تدعوا ضرورة فيجوز.
(شرح المجلة ۱: ۲۶۲، المادة نمبر ۹۶)

خمکه کې کور جوړول هيڅ ضرر نه دی. (١) لهذا له دې څخه منع کوونکی ظالم دی، كما في شرح المجلة: ٦٥٨، الضرر الفاحش هو كل مايمنع الحوائج الأصلية يعني المنفعة الأصلية المقصودة من البناء كالسكنى أو يضرّ البناء بأن يجلب عليه وهنًا ويكون سبب انهدامه (٢) وبمعناه في جامع الفصولين (٣) وهو الموفق.

## آيا په خپله ځمکه د ونې لګول او په خپل کور کې په لوړ آواز د راډيو غږول ضرر دی؟

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره کې چې زيد په خپل ملکيت کې داسې کړي مثلا (١) په خپله ځمکه کې د ونو لګول، (٢) په خپل کور کې په لوړ (اوچت) آواز سره د راډيو وغيره اوريدل په کوم سره چې بل همسايه ته په يقيني ډول تکليف دی. د شريعت له مخې زيد ته په خپله ځمکه

---

١) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ولايمنع الشخص من تصرفه في ملكه إلا إذا كان الضرر بجاره ضرراً بيّنًا فيمنع من ذلك وعليه الفتوى. (الدر المختار)
وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: المراد بالبيّن وهو مايكون سببًا للهدم أو يخرج عن الإنتفاع، بالكلية وهوما يمنع الحوائج الأصلية كسدّ الضوء بالكلية.
(رد المحتار ٤، ٤٠١، باب التحكيم، مسائل شتّى، مطلب اقتسموا داراً وأراد كل منهم فتح باب)

٢) شرح المجلة لسليم رستم باز رحمه الله تعالى ٦٥٨، المادة نمبر ١١٩٩)

٣) في جامع الفصولين: أصابه بالقسمة ساحة لا بناء فيها وأصاب الآخر البناء فأراد ذوالساحة أن يبنى فيها ويرفع بناءه، فقال ذوالبناء إنک تسدّ علىّ الريح والشمس فلا أدعک ترفع البناء فله منعه لا في ظاهر الرواية لأن ذا الساحة منعه عن الانتفاع بملكه ولولم يتلف عليه ملكًا ولامنفعةً فلا يمنع منه، كرجل له شجرة يستظل بها جاره أراد قلعها لايمنع منه ولو تضرر به جاره إذ رب الشجرة بالقلع يمنعه عن الإنتفاع بملكه.
(جامع الفصولين ٢: ١٩٤، الفصل الخامس والثلاثون فيما يمنع عنه ومالا يمنع)

کې د ونو لګول وغیره روا دي او که نه؟ د بلې ځمکې له ضرر څخه مراد د بل کس د ځمکې طرفته د نم تلل دي او د ځمکې په فصل (حاصل) کې د کافي نقصان باعث جوړ شوی دی؟ بینواتوجروا.

المستفتي: مولانا ثناء الله، ورانه کرک ... ۱۹۸۶ع/۴/۳۰

**الجواب:** ضرر نمبر (۱) ضرر بیّن نه دی. البته د ونو سیوری ضرر بیّن ګنل شوی دی، (۱) لیکن په صورت مسئوله کې هغه موجود نه دی او ضرر نمبر (۲) نه ضرر بیّن دی او نه غیر بیّن، لأن مرادهم من الضرر مایضر البناء والزرع دون الضرر الشرعي، فليراجع الى شرح المجلة ۶۵۶ م ۱۱۹۹، ۱۲۹۹ (۲) وهوالموفق.

## په خپله ځمکه کې له تیاري شوي چینې څخه د خلکو منع کول

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې ایا یو کس په خپله ځمکه کې له تیارې شوې چینې څخه خلک ایسارولی شي؟ بینواتوجروا.

**المستفتي:** بذریعه حضرت مفتي صاحب مد ظله ... ۲۱/ جمادی الثانیه ۱۳۹۶ھ

---

۱) في شرح المجلة: الضرر الفاحش هوكل مايمنع الحوائج الأصلية يعني المنفعة المقصودة من البناء كالسكنى أو يضرّ البناء بأن يجلب عليه وهنًا ويكون سبب انهدامه.... يدفع الضرر الفاحش بأيّ وجه كان مثلاً لو اتخذ في اتصال دار دكان حداد أوطاحون وكان من طرق الجديد و دوران الطاحون يحصل وهن للبناء أو أحدث في جانبها فرن أو معصرة فتأذى صاحب الدارمن دخان الفرن ورائحة المعصرة حتى تعذرت عليه السكنى، فهذا كله ضرر فاحش يدفع ويزال بأى وجه كان.
(شرح المجلة لسليم رستم باز رحمه الله تعالى ۶۵۸، المادة نمبر ۱۱۹۹-۱۲۰۰)

۲) في شرح المجلة: من امتدت أغصان شجر بستانه إلى دار جاره أوبستانه فلجاره أن يكلفه تفريغ هوائه بالربط والقطع. (شرح المجلة: ۶۵۶، المادة: ۱۱۹۶)

**الجواب:** که چیرته دغه قوم له بل ځای څخه اوبه ترلاسه کولی شي؛ نو دوی د همدغې چینې مالک له خپل ملکیت څخه له تلو راتلو څخه منع کولی شي، کما فی شرح التنویر: ولو کانت البیر أو النهر فی ملک رجل فله أن یمنع مرید الشفعة من الدخول فی ملکه إذا کان یجد ماءً بقربه، وفی رد المحتار ۵ : ۲۸۸، قال العلامة المقدسی لم أر تقدیر القرب وینبغی تقدیره بالمیل کما فی التیمم() وهو الموفق.

## د کتاب حقوق په خپل نوم د لیکلو حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې نن سبا که چیرته یو څوک مثلا کوم کتاب په ډیر کوشش ولیکي او چاپ یې کړي، نو که چیرته دویم کس د هغه مقبولیت او ګټه ووینې په خپله یې هم چاپ کړي او د هغه د طبع حقوق په خپل نوم کړي، لومړنی (اصل) کس د دغه کتاب له چاپ کولو څخه قانونًا محروم کړی دی، په دې صورت کې که چیرته لومړی کس د حفظ ماتقدم په ډول خپل کتاب رجسټر کړي اګر که بلا ضرورت یې ظاهر نه کړي ترڅو چې نورو ته د رجسټری د عام جواز علم ونه شي، نو روا دی او که ناروا؟ بیا که چیرته په خپل شي سره د ضرورت معاش حاصلول وغواړي نو هغه څنګه کړي؟ **بینوا توجروا**

المستفتي: اکرام الحق، راولپنډی ... ۱۸/ اګست ۱۹۷۳ع

---

۱) ردالمحتار ۵: ۳۱۲، کتاب إحیاء الموات، فصل الشرب)

وفي خلاصة الفتاوی: وإن کان الحوض في دار رجل أو في بستانه فاسقی آخر منه، لیس لصاحب الدار والبستان أن یأخذ ذلک منه إلا أن لصاحب الملک أن یمنعه من الدخول في ملکه، ولکل واحد أن یقول إن لی حقًا في دارک فإما أن توصلني إلی أوتمکني من الدخول، وهذا إذا کان مستقی غیر ذلک.

(خلاصة الفتاوی ۴: ۲۰۰، کتاب الشرکة، الفصل الأول في حکم المیاه)

**الجواب:** شرعاً دا اخیستل او خرڅول او دا منع تول ناروا دي (۱) وللتفصیل مقام آخر، وهوالموفق

## بلا جواز د یو چا له بالاخانې څخه منع کول او بکته اوسېدونکي په پورتني منزل کې له تصرف کولو منع کول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د زید په یوه اباد ګودام باندې دپاسه بالاخانه او درې چنه دي کوم چې له ویش (تقسیم) پرته عاریةً یا د فیصله په وخت کې بکر ته د اوسېدو لپاره ورکړی شوې ده، له دوه نیم کلونو راهیسې ګودام او له ۸۰ کلونو څخه هغه بالاخانه آباده کړې ده، اوس زید د بکر منع کول غوښتلي دي او بالاخانه په ذاتي ډول د خپل سکونت لپاره غواړي، ایا په شرعي ډول زید بکر منع کولی شي یا دا که د بکر هم څه حقوق شته چې د شریعت له مخې د هغو لحاظ وشي؟ د درې چتونو په تصرف باندې زید د شریعت له مخې خنډ اچولی شي که نه؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي: میا فضل اکبر، زیارت کاکا صاحب

**الجواب:** ترڅو چې زید دا ثابته نه کړي چې بکر مستعير دی؛ نو له دې څخه مخکې بکر نه شي منع کولی، ځکه چې په ظاهره د بکر لپاره حق تعلی او ملک

---

۱) قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالى :وفي الأشباه لایجوزالاعتیاض عن الحقوق المجردة کحق الشفعة.

(الدر المختار ۱۵ : ۴، کتاب البیوع ،مطلب لایجوز الإعتیاض عن الحقوق المجردة)

وفي الهندیة: أما شرائط الانعقاد: فأنواع......ومنهافي المبیع وهو أن یکون مملوکاً في نفسه فلاینعقد بیع الکلأ......وأن یکون متقوماً شرعاً.

(فتاوی هندیة ۳، ۲، ۳، کتاب البیوع ،الباب الاول)

بالاخانه ثابت دی (۱)

(۲) که چیرته په دغه دري چتونو کې سفل ته هم کوم نقصان رسیدلی شي؛ نو خنه اچولی شي (۲)فقط

د تتابع جزئیات نه ترلاسه کېدو له وجې د قواعدو په بناء جواب لیکل شوی دی

**وهوالموفق**

**د پلرونو اونیکونو د سلو کلونو څخه د قیام کوونکي کور د ملکیت مسئله**

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې که چیرته یو کس د پلرونو او نیکونو لخوا له سلو کلونو څخه زیات په یوه کور کې

---

۱) قال العلامة ابن عابدين: أن وضع اليد والتصرف من أقوى ما يستدل به على الملک، ولذا تصح الشهادة بأنه ملكه....وليس للإمام أن يخرج شيئًا من يد أحد إلا بحق ثابت معروف.... فإن استمرار اليد عليها والتصرف فيها تصرف الملاک في أملاكهم أوالنظار فيما تحت أيديهم الأزمان المتطاولة قرائن ظاهرة أوقطعية على اليد المفيدة....إن الأراضي التي في أيدي الناس بمصر والشام المجهول انتقالها إليهم تقر في أيدي أربابها ولايتعرض لهم فيها بشيئ أصلاً.... باحتمال أنها كانت مواتًا فاحييت أو أنها انتقلت إليهم بوجه صحيح. (ردالمحتار۳: ۲۸۱،باب العشروالخروج والجزية،مطلب القول لذي اليد أن الأرض ملكه)

۲) في الهندية:وإذا كان علو لرجل وسفل لآخر....فليس لصاحب العلو أن يبني علوه ولا أن يضع عليه جذعًا لم يكن ولايحدث كنيفًا إلا برضاه صاحب السفل عند أبي حنيفة رحمه الله تعالیٰ، وقالا جاز لكل واحد منهما أن يصنع مالايضرّبه، وقيل هذا تفسير لقول أبي حنيفة رحمه الله تعالیٰ يعنى أن أباحنيفة رحمه الله تعالیٰ إنما منع عمامنع إذا كان مضرًا،وأما إذا لم يكن فلم يمنع، كما هو قولهما، فكان جواز التصرف لكل واحد منهما فيما لايتضرّر به الآخر فصلًا مجمعًا عليه.

(فتاوى هندية ۳: ۴۴۳، كتاب أدب القاضي،الباب الثاني والثلاثون في المتفرقات)

اوسيدونكي وي او د دغه كور ابادي هم د هغه پلرونو او نيكونو كړې وي، نو ايا دغه كس د شريعت له مخې د دغه كور مالك جوړېدلى شي؟ **بينواتوجروا.**

المستفتي: مزرا اكبر، چارسده.....١٣/ جمادى الاول ١۴٠٣ هـ

**الجواب:** په كوم ځاى كې آبادي كول او په هغه ځاى كې نسلاً بعد نسلاً اوسيدل موجب د ملک نه دي، (١) **لعدم البيع والشراء وقبول الوصية والهبة ولعدم إحياء الموات، وهوالموفق.**

## د ځمكې په دوكې سره د انتقال كوونكي او د زامنو په نوم د تمليک كوونكي حكم

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې د زيد پلار بكر له زيد سره سازش وكړو، د زيد څخه يې ځمكه د دوكې په ذريعه په بې خبرى كې د يو بل كس په نوم انتقال كړه او زيد په بې خبرى كې په هغې باندې دستخط وكړو، روپۍ بكر وصول كړې، يوه مياشت وروسته بكر هغه مشتري ته وويل چې زما يو بل زوى عمير د شفعې دعوه كړې ده، لهذا ښه به دا وي چې ته روپۍ واپس بيرته واخلې، هغه روپۍ واپس بيرته واخيستې او بكر ځمكه د خپل بل زوى په نوم انتقال كړه، سره له دې چې دغه ځمكه د زيد د مور په نوم ثبت شوې وه، لهذا شرعي حكم صادر كړى؟ **بينواتوجروا!**

المستفتي: شاه مير، ميرانشاه..... ١٩٧۵ع/ ١٠/ ١٣.

---

١) وفي شرح المجلة: أسباب التملک ثلاثة، الأول: الناقل من مالک إلى مالک آخر كالبيع والهبة، الثاني: كون واحد خلف آخر كالإرث، الثالث، إحراز شيئ مباح لا مالک له. (شرح المجلة ۴: ١٨۵، الباب الرابع في بيان شركة الإباحة، الفصل الثاني في بيان كيفية استملاک الأشياء المباحة)

وفي جامع الفصولين: أما التمليک فكبيع وشراء واجارة واستيجار وهبة وصدقة وإقرار وإبراء. (جامع الفصولين ٢: ٢، الفصل السادس والعشرون في مايبطل من العقود بالشرط)

**الجواب:** د صدق او ثبوت په شرط دغه بکر (دوکه ورکوونکی) مجرم دی. (۱) نه ددې ځمکې مالک دی او نه يې د زامنو په نوم تمليک کولی شي (۲) **وهوالموفق**

## په زور د حکومت لخوا ځمکه اخيستل او د بې کوره خلکو لپاره په هغې کې د کور جوړول

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د شريعت له مخې حکومت ته په زوره د ځمکو له څښتنانو څخه د ځمکې اخيستل او بزګرو (مزارعينو) ته په ورکولو سره د ځمکې د څښتنانو مالکيت ختم شوی دی او د بزګرو د ملکيت حق ثابت شوی دی او که نه؟ **بينواتوجروا**

المستفتي: حاجي سکندر. مانسهره.... ۱۲/ جون ۱۹۷۹ء

**الجواب:** دغه دواړه اقدامونه غير اسلامي دي او دا د دين له اصولو سره په ټکر کې او د فساد برپا کوونکي اقدامات دي. (۳) البته د بې کوره خلکو لپاره

---

۱) قال الإمام البخاري رحمه الله تعالیٰ: وقال ابن أبي أوفی: الناجش أكل الربوا خائن وهو خداع باطل لايحل، قال النبي ﷺ: الخديعة في النار.
(صحيح البخاري ۱: ۲۸۷، كتاب البيوع، باب النجش)

۲) في شرح المجلة: الأمر بالتصرف في ملك الغير باطل.... لايجوز لأحد أن يتصرف في مال الغير بلا إذنه .... وعدم الجواز شامل لجميع أنواع التصرف من استعمال.... وجميع ما يجزيه من العقود تمليكًا بعوض أو بغيره، يتوقف على إجازته.....فتصرف الغير في مال الغير ممنوع إلّا أن تكون وصاية أو ولاية أو تدعوا ضرورة فيجوز.
(شرح المجلة ۱: ۲۶۲، المادة نمبر ۹۵، ۹۶)

۳) قال العلامة ابن عابدين: وليس للإمام أن يخرج شيئًا من يد أحد إلا بحق ثابت معروف. (ردالمحتار ۳: ۲۸۱، باب العشر والخراج، ليس للإمام أن يخرج شيئا من يد أحد)
وأيضًا قال: لا أن يأخذه الحاكم لنفسه أو لبيت.... (باتي حاشيه په بل مخ)

باقاعده مکان یا د مکان په اندازه د ځمکې اخیستل طوعًا یا کرهًا روا دي، ویشهد بیع الحاکم طعام المحتکرین عند الضرورة(۱) وهوالموفق

## د بل چا د ځمکې طرفته د مائل شویو ښاخونو په زوره د پرې کولو حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د زید په خپل فصل کې په حد کې دننه یوه ونه ولاړه ده، د کومې یو ښاخ چې د عمر د فصل طرفته مائل شوی دی او سیوری یې جوړ کړی دی. اوس عمر وایي چې دغه ونه له بیخه وباسه، آیا دده وینا صحیح ده؟ فتوی د کتابونو د حوالې سره راکړئ؟ بینواتوجروا.

المستفتي : غلام الله، جندول، دیر

**الجواب:** د عمرو لپاره دا حق ثابت نه دی چې د هغه ونه غوڅه (پرې) کړي، یدل علیه ما فی شرح المجلة ۶۵۶، أما اذا أدعی أن ظل الشجرة مضر بمزروعات بستانه فلا تقطع الشجرة(۲) بې شکه د دغه ښاخ تړل یا پرې کول بالرضاء یا بالقضاء یا بغیرهما د

---

(د حاشیې پاتې برخه) المال کما یتوهمه الظلمة، إذ لایجوز لأحد من المسلمین أخذ مال أحد بغیر سبب شرعي.

(رد المحتار ۳: ۱۹۵، باب التعزیر، مطلب في التعزیر بأخذ المال)

۱) قال المرغیناني رحمه الله تعالی: وهل یبیع القاضي علی المحتکر طعامه من غیر رضاه قیل هو علی الإختلاف الذي عرف في بیع مال المدیون، وقیل یبیع بالإتفاق لأن أباحنیفة رحمه الله تعالی یری الحجر للدفع ضرر عام وهذا کذلک.

(الهدایة ۴: ۴۷۲، کتاب الکراهیة، فصل في البیع)

وقال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالی: فإن لم یبع بل خالف أمر القاضي عزره بما یراه رادعًا له، وباع القاضي علیه طعامه وفاقًا علی الصحیح.

(الدر المختار ۵: ۲۸۲ کتاب الحظر والإباحة، فصل في البیع)

۲) شرح المجلة لسلیم رستم باز رحمه الله تعالی: ۶۵۶)

فقهاء كرامو د تفصيل مطابق روا دي، فليراجع الى شرح المجلة ۶۵۶،() جامع الفصولين ۲: ۲۹۶،()فقط.

## حکومت ته د يوچا دمملوکه ځمکې بالعوض يا بلا عوض په زوره اخيستل

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره کې چې د برطانيه د حکومت په وخت کې برصغير کې يو قانون نافذ شو چې حكومت ته دا اختيار دی چې کله او چيرته وغواړي په مزروعه يا غير مزروعه ځمکو باندې قبضه کوي هغه يې په خپل استعمال کې د راوستلو اجازه لري. د ځمکو د څښتنانو رضا ضروري نه ده، مالكانو ته وروسته په کوم وخت کې د نيتې له معلوميدو پرته برای نام عوض ورکول شوی دی او هغه هم له کلونو انتظار وروسته، په زياتره صورتونو کې د مالكانو چونکه د آمدن همدا يوه ذريعه ده؛ نو ځکه د هغو له اخيستلو وروسته په ژوند کې بدي (ناوړه) ورځې ليدل شوي دي، په پاکستان کې هماغه تور قانون جاري دی.

حکومت في الحال په کوهاټ کې يوه غټه زرخيزه ځمکه په زور ترلاسه کړې ده

---

۱) وفي شرح المجلة :من امتدت أغصان شجر بستانه إلى دار جاره لو بستانه ،فلجاره أن يكلفه تفريغ هوائه بالربط لو القطع أی إذا القطع إذا أمكمن تفريغ الهواء من الأغصان بربطها فللجار أن يطالب صاحب الشجرة بالربط بالقطع ، وإلاطالبه بالقطع، وإن أمكنه مدّ بعض الأغصان إلى الشجرة وربطها فليس له أن يطالبه بقطع ذلك البعض ،كذا في فتاوى علي آفندي .(شرح المجلة ۶۵۶،المادة ۱۱۹۶)

۲) في جامع الفصولين :خرج شعب نخلته إلى جاره فللجار قطعها لتفريغ هوائه ،قالوا: هذا على وجهين ، فلو أمكمن تفريغه بشد الشعب على النخلة كله اوتفريغ بعضه بشد بعضها فله أن يأخذ ربّ النخلة بالشدّ لابالقطع فيما أمكن التفريغ بشدّه، وأما ما لايمكن تفريغه فله أن يأخذ ربّ النخلة بالشدّ لا بالقطع فيما أمكن التفريغ بشدّه، وأما مالايمكن تفريغه إلا بقطعه فالأولى أن يستأذن ربها فيقطع بنفسه أو يأذن له به ولو أبى يرفع إلى القاضي فيجبره على القطع .

(جامع الفصولين ۲: ۱۹۶ ،الفصل الخامس والثلاثون فيما يمنع عنه ومالايمنع)

كومه چې د ډيرو خلكو ملكيت دی، په مالكانو كې يتيمان، كونډې او بې چاره هم شامل دي، د كومو د وخت تيريدل چې همدې ځمكې په فصل باندې دي، ټول مالكان د خپلې ځمكې په پرېښودلو باندې خوش نه دي، وخت په وخت يې په دلالو سره معروضات كړي دي، ليكن هيڅ نه اورېدل كيږي، پوښتنه دا ده چې (۱) آيا په اسلامي فقه كې د همدې ملكيت د تحفظ څه شی موجود دی؟ كه چيرته مطلوبه تحفظ چيرته موجود وي نو د كرم له مخې د حوالو سره اصل عبارت، د اعراب او ترجمې سره وليكئ ترڅو سمه ساه واخلو؟ **بينوا توجروا.**

المستفتي: ميا لعل شاه، تهكال بالا، پشاور

**الجواب:** د حكومت لپاره روا نه دي چې له شرعي ضرورت پرته د چا مملوكه ځمكه واخلي، برابره ده كه بلا عوض وي او يا بالمعاوضه وي. **كما في الأشباه والنظائر ۲۰۲، وقد قدمناه عن رسالة أبي يوسف الى هارون الرشيد أن الامام ليس له أن يخرج شيئًا من يد أحد الا بحق ثابت معروف()وهوالموفق.**

**د انګريزانو دقاتل دجايداد په ضبط كولوسره دهغه دملكيت ختميدو مسئله**

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء كرامو ددې مسئلې په باره كې چې د انګريزانو په زمانه كې كله چې قاتل مفرور شو؛ نو حكومت د هغه جايداد ضبط كړ او بيا يې په وروسته كې د پټواري په ذريعه ليلام كړ، د هغه متعلق څه حكم دی چې دا د هغه ملكيت دی او كه نه؟ د قاضي يا د حكم پر ورانديې ځومره موده وروسته

دعوه ساقطېدلی شي؟ **بينوا توجروا**

المستفتي: محمد عمر صاحب، لنډيواه، لكي مروت..... ۱۴۰۱ھ/ ۶/ ۶

۱) الأشباه والنظائر ۱۲۴، القاعدة الخامسة، تصرف على الرعية منوط بالمصلحة)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالىٰ: وليس للإمام أن يخرج من يد أحد إلا بحق ثابت معروف.

(ردالمحتار ۳: ۲۸۱، كتاب الجهاد، باب العشر والخراج والجزية)

**الجواب:** چونکه د استیلاء کفار مثلا سبب ملک دی، (۱) لهذا د غه اخیستل او اخیستل موجب د ملک دی، البته د استیلاء د ختمېدو وروسته دا مشتري دي خپل قیمت واخلي، هغه ځمکه دي مخکني مالک یا د هغه ورثه وو ته دي واپس کړي، لما فی شرح التنویر ۳ : ۳۳۸، وبالثمن الذی اشتراه به لو اشتراه منهم تاجر أی من العدو( ) فافهم اوحاکم اعلی چې څومره وخت ورکړي وي هغه معتبر دی (۲) وهوالموفق

## د شاتو ملکیت او د هغو د شېې په وخت کې د حاصلولو حکم

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددي مسئلې په باره کې چې د شاتو مچۍ که چیرته یو ځای کوم چې د کوم کس ملکیت وي، هغه مالک یوه کوټه جوړه کړې وي، د ورځې په وخت کې له هغې څخه د شاتو اخیستل مشکل دي: نو د شپې په وخت کې د هغو شات اخیستل روا دي او که نه؟ **بینوا توجروا.**

المستفتي : عبد الرؤف شیوه ضلع مردان ..... ۱۷/ جولائي ۱۹۷۹ع

**الجواب:** د شاتو مالک هغه کس یا قوم دی کوم چې د متعلقه ځمکې مالک دی (شامي ۵ : ۲۲۴)(۴)

---

۱) قال العلامة الحصکفي :وإن غلبوا على أموالنا ولو عبداً مؤمناً وأحرزوها بدارهم ملکوها.(الدرالمختار ۳: ۲۶۶،باب استیلاء الکفار ،مطلب في أن الأصل في الأشیاء الإباحة)

۲) الدرالمختار ۳: ۲۶۸،باب استیلاء الکفار)

۳) قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالى :قد استفید من کلام الشارح أن عدم السماع بعد هذه المدة إنما هو للنهي عنه من السلطان فیکون القاضي معزولاً عن سماعها لما علمت من أن القضاء یتخصص ،فلذا قال إلا بأمر أی فإذا أمر بسماعها بعد هذه المدة تسمع .....الثاني : أن النهي حیث کان للقاضي لاینافي سماعها من المحکم. (رد المحتار ۴: ۲۸۱، کتاب القضاء ،مطلب هل یبقى النهي بعد موت السلطان)

۴) قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالى :عسل النحل في ...(باتي حاشیه په بل مخ)

د شپې په وخت کې د شاتو په حاصلولو کې هیڅ ایذاء نشته، بخلاف اصطیاد الطیورفی مکناتها باللیل(۱) وهوالموفق.

## د بل چا په ملکیت کې د شاتو پرې کول کله چې د ځمکې مالک هغه ته معلوم نه وي

**سوال:** څه فرمایلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د یو کس په ونه کې د شاتو مچیو ځاله کړې وي، هغه یو کس د همدې ونې څخه پرې کړه او مالک خبر نه و، نو دغه شات د هغه لپاره حلال دي او که حرام؟ **بینواتوجروا.**

المستفتي: جناب شمس الرحمن، گجرات، مردان... ۱۸/۶/۱۹۷۲ع

**الجواب:** دا شات د ځمکې د مالک حق دی اگر چه هغه خبر نه وي، فی ردالمحتار: عسل النحل فی أرضه ملکه مطلقاً ۲: ۲۱۹(۲) وهوالموفق.

---

(د حاشیې پاتې برخه) أرضه ملکه مطلقا لأنه صارمن إنزالها. (درمختار)

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ: (قوله ملکه مطلقا) أی وإن لم یعدها لذالک.

(رد المحتار ۴: ۲۴۴، کتاب البیوع، باب المتفرقات، فروع)

وفي شرح المجلة: إذا اتخذ النحل موضعاً في أرض إنسان فحصل منه عسل کثیر فهو لصاحب الأرض وفیه العشر ولیس لأحدعلیه سبیل)

(شرح المجلة للأتاسي ۴: ۲۲۷، المادة ۱۳۰۵)

۱) قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالیٰ: اخذ الطیر لیلاً مباح والأولی عدم فعله.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ: (قوله والأولی الخ) لمافیه من تخفیف الألم عنه. (ردالمحتار ۶: ۳۳۷، کتاب الصید)

وفي السراجیة: أخذ الطیر باللیل مباح لکن الأولی أن لایفعل.

(فتاوی سراجیة ۳۷۳، کتاب الصید، باب الاصطیاد)

۲) ردالمحتار ۴: ۲۴۴، باب المتفرقات، قبیل باب مایبطل بالشرط ولایصح تعلیقه به)

## د دهريانو په غلبې سره له افغاني مالکانو څخه د ځمکو اخيستل په دهقانانو باندې په ويشلو سره ملکيت ختمېدی نه شي

**سوال:** څه فرمايلي دي علماء کرامو ددې مسئلې په باره کې چې د افغانستان په اسلامي حکومت باندې دهريان قابض شوي دي، هغوی له مالکانو څخه ځمکې اخيستې دي په دهقانانو باندې يې ويشلي دي، ايا دغو دهقانانو ته شرعًا له همدې ځمکو څخه استفاده روا ده او که نه؟ بينوا توجروا.

المستفتي: عبد الواحد نقشبندي، پارا چنار ... ۱۴۰۰هـ/ ۶/ ۱۸

**الجواب:** چونکې د دهريانو په غلبې سره دار الاسلام دار الحرب نه ګرځي، لهذا دغه ځمکې الآن کما کان د مخکنيو مالکانو مملوک دي. (مأخوذ از شامي کتاب غلبة الکفار وغيره)(١) وهو الموفق.

---

١) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: لاتصير دار الإسلام دار حرب إلا بأمور ثلاثة، بإجراء أحكام أهل الشرک وباتصالها بدار الحرب وبأن لايبقى فيها مسلم أو ذمي آمنًا بالأمان الأول على نفسه. (درمختار)

وفي رد المحتار: (قوله لاتصير دار الإسلام دار حرب الخ) أى بأن يغلب أهل الحرب على دار من دورنا أو ارتد أهل مصر وغلبوا و أجروا أحكام الكفر أونقض أهل الذمة العهد، وتغلبوا على دارهم، ففي كل من هذه الصور لاتصير دار حرب إلا بهذه الشروط الثلاثة، وقالا: بشرط واحد لاغير وهو إظهار حكم الكفر وهو القياس ..... إذا تحققت تلک الأمور الثلاثة في مصر المسلمين ثم حصل لأهله الأمان، ونصب فيه قاض مسلم ينفذ أحكام المسلمين عاد إلى دار الإسلام فمن ظفر من الملاک الأقدمين بشيئ من ماله بعينه، فهوله بلاشيئ ..... قلت: حاصله أنه لما صار دار حرب صار في حكم ما استولوا عليه في دارهم. (ردالمحتار ۳: ۲۷۷، باب المستأمن، مطلب فيما تصيربه دار الإسلام دارحرب وبالعكس)

دفتاوی فريديه نهم جلد پای ته ورسيدو بعون الله تعالی